# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب العلم (اول)

**تالیف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی
**ترتیب وتحقیق** ← مولانا نور البشر صاحب استاذ جامعه فاروقیه کراچی
**ترجمه** ← مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**جلد ۳**

### خصوصیات

① د احادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ د گرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ د حدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې د احدیث په کوم کوم ځائې کښې دي

**خورونکی** فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

جلد-3

دکتاب نوم کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب العلم (اول)

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان مدظله العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا نور البشر صاحب بارك الله لی عمره

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس
ایم اے اسلامیات وعربی پیښور یونیورسټی



د ملاويدو پتې د فیصل کتب خانه پیښور څخه علاوه

- رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک
- علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
- مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
- مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
- مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
- راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
- مکتبه عمریه تاج میر روډ چمن بلوچستان
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن بلوچستان ۰۳۳۳۷۹۵۸۶۹۶
- مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
- صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۲۱
- مکتبهٔ رحمانیه قندهار افغانستان ۰۷۹۷۷۳۵۲۸۱
- مکتبه عبدالحي قندهار افغانستان ۰۷۰۰۸۲۴۳۳۴
- اسدالله کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۰۷۴۷۷۶۲۷
- مکتبهٔ غفاریه قندهار افغانستان ۰۷۰۰۳۴۱۷۴۹
- مکتبهٔ رشیدیه قندهار افغانستان ۰۷۷۲۲۱۰۷۰۹
- مکتبهٔ حبیبیه قندهار افغانستان ۰۷۹۹۴۴۷۴۱۳
- مکتبه القدس قندهار افغانستان ۰۷۰۷۹۴۸۵۵۹
- قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۲۱۹۲۰۳
- عبدالمجید کتب خانه جلال آباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
- شاهین کتب خانه خوست افغانستان
- بلال کتب خانه خوست افغانستان
- اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

# فهرست مضامین

## ۳- بَابُ مَنْ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْعِلْمِ

## ۴ـ بَابُ قَوْلِ الْمُحَدِّثِ حَدَّثَنَا وَأَخْبَرَنَا وَأَنْبَأَنَا

| صفحه | مضمون | شميره |
|---|---|---|
| | | |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۷-بَاب مَا یُذْکَرُ فِی الْمُنَاوَلَةِ وَکِتَابِ أَهْلِ الْعِلْمِ بِالْعِلْمِ إِلَی الْبُلْدَانِ

## ۸- بَابُ مَنْ قَعَدَ حَيْثُ يَنْتَهِي بِهِ الْمَجْلِسُ وَمَنْ رَأَى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيهَا

## ۹- بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعَى مِنْ سَامِعٍ

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## ۱۱- بَابِ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُهُمْ بِالْمَوْعِظَةِ وَالْعِلْمِ كَيْ لَا يَنْفِرُوا

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۱۴-بَابُ الْفَهْمِ فِي الْعِلْمِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| صفحه | مضمون | شمیره |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## ۲۴=بَابُ مَنْ أَجَابَ الْفُتْيَا بِإِشَارَةِ الْيَدِ وَالرَّأْسِ

| صفحه | مضمون | شميره |
|---|---|---|

## ۲۵=بَاب تَحْرِيضِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَىٰ أَنْ يَحْفَظُوا الْإِيمَانَ



## ۲۶=بَاب الرِّحْلَةِ فِي الْمَسْأَلَةِ النَّازِلَةِ وَتَعْلِيمِ أَهْلِهِ



## ۲۷=بَاب التَّنَاوُبِ فِي الْعِلْمِ



## ۲۸=بَاب الْغَضَبِ فِي الْمَوْعِظَةِ وَالتَّعْلِيمِ إِذَا رَأَى مَا يَكْرَهُ

# فہرس اسماء من ترجم لهم علی حروف الهجاء

بسم الله الرحمن الرحيم

# غرض د مرتب

اللهم لك الحمد لا نحصى ثناء عليك أنت كما أثنيت على نفسك ○ اللهم لك الحمد كما ينبغى لجلال وجهك وعظيم سلطانك ○ اللهم ما أصبح بنا من نعمة أو بأحد من خلقك فمنك وحدك لا شريك لك ○ اللهم لك الحمد ولك الشكر ○ اللهم صل وسلم و بارك على سيدنا و شفيعنا و مولانا محمد نبيك الأمى وعلى آله و أصحابه و تابعيهم ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين ○

أما بعد!

د الله تعالى ډير زيات كرم او نوازش دې چه هغه خاص پخپل فضل سره د ,,كشف البارى،، د دريم جلد مكمل كولو توفيق راكړو.دا جلد د ,,كتاب العلم،، د ړومبى نصف په تشريحاتو باندې مشتمل دې.او څلورم جلد به انشاءالله تعالى د ،،كتاب العلم،،د آخرى نصف په شرح او توضيح باندې مشتمل وى.

په دې جلد كښې هم الحمدلله دهغه ټولو امورو التزام باقاعده ساتلې شوې دې.د كومو اهتمام چه په تيرو شوو جلدونو كښې شوې وو.بلكه د بابونو په مينځ كښې مناسبت، د ابوابو د تراجمو د اغراضو، او مقاصدو توضيح او تراجم د رجال وغيره كښې د تيرو شوو جلدونو په مقابله كښې دڅه قدرې توسع نه كار اخستلې شوې دې.

,,كشف البارى،، ته چه الله تعالى د عالمانو په حلقه كښې كوم عظيم مقبوليت وركړې دې دا خاص د الله رب العزت فضل او دهغه مهربانى ده.او بيا د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت بركاتهم هغه علمى مقام او مرتبه ده.د كوم نه چه ټولې علمى حلقې واقف دى. دا كتاب د حضرت صاحب د ټول ژوند د تدريسى تجربو عطر او خلاصه ده.هم دا وجه ده. چه د ملك د هرګوټ نه د كتاب مقبوليت كيږى.او ورځ تر ورځه ئې مطالبه (غوښتل) زياتيږى. مونږ دهغه اهل علم حضراتو ډير زيات شكر ګزار يو.كومو عالمانو چه ددې كتاب د تحقيقى انداز تعريف اوكړو.او زمونږ حوصله ئې اوچته كړله.خاص طور باندې د علم د سمندر عظيم شناور (لامبو وهونكې) او غواص (غوپې وهونكې)، زمونږ محترم استاذ شيخ الاسلام حضرت مولانا محمد تقى عثمانى صاحب دامت بركاتهم، او د ميدان علم شهسوار او د سلف د علومو امين حضرت مولانا مفتى نظام الدين صاحب شامزئ حفظهم الله تعالى ډير زيات احسان مند يو.چه هغوى په كشف البارى باندې زبردستې تبصرې اوليكلې.ددې د ترتيب او تدوين او تحقيق او مراجعت تعريف ئې اوكړو.او د كتاب افاديت ئې ښكاره كړو.ددې نه زمونږه په حوصلو كښې اضافه اوشوه.الله تعالى دې دوى ته جزائې خير وركړى او ددوى د عاطفت (او مهربانئ) سورې دې زمونږ په سرونو باندې هميشه دپاره قائم او دائم ساتى.او د علم تږى دې ددوى د علومو نه تر قيامته پورې سيراب ساتى. آمين.

مونږ ته د خپلې علمی کمزورئ او د تحقیق په میدان کښې د خپلې ناتجربه کارئ نه صرف احساس دې بلکه ددې مکمل اعتراف هم دې.البته توکلاً علی الله د حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم په حکم، او د دوی په توجهات او دعاګانو سره مو ددې عظیم خدمت بیړئ اوچته کړې ده. ډیره ممکن ده.چه په دې کښې دڅه قصد نه بغیر غلطئ صادر شوې وی.د اهل علم حضراتو په خدمت کښې مؤدبانه ګزارش دې.چه په کتاب کښې څه قسمه غلطئ باندې نظر پریوځی.نو احقر مرتب دې ددې نه خبر کړی.اوددې نه علاوه د کتاب د ترتیب او تحقیق په سلسله کښې که د کوم صاحب علم په ذهن کښې څه تجویز وی.نو مونږ ته دې راولیګی.مونږ به د ټولو عالمانو ډیر احسان مند او شکر ګزار یو.

ددې کتاب د پروف ریډنګ او د طباعت د تیارئ په سلسله کښې د محترمو معززینو مولانا حبیب الله زکریا ، مولانا سلیم الله زکریا صاحبان (چه دجامعه فاروقیه استاذان دی) او د مولانا شفیع الله صاحب (استاذ دارالعلوم کراچی) زه احسان مند یم.دې حضراتو ته دې الله تعالی جزائې خیر ورکړی.او علمی او عملی ترقئ دې ورکړی.

په آخر کښې د ټولو قارئینو نه د حضرت شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم دپاره د خصوصی دعاګانو درخواست دې.چه الله تعالی دې د حضرت د عاطفت (او مهربانئ) سورې زمونږ په سرونو باندې همیشه دپاره قایم او دائم ساتی.او په ملك او بیرون ملکونو کښې چه د علمی افاداتو کومه سلسله د نصف صدی نه جاری ده.دا دې تر قیامته پورې جاری او قائم ساتی.

او د احقر مرتب او ددې معاونینو دپاره هم خصوصی دعا کوئ.چه دا آسان کړی.او زر تر زره د مکمل کولو توفیق راکړی.او پخپل دربار کښې د قبولیت شرف ورکړی.او زمونږ دپاره، زمونږ استاذانو، مشائخو،مورپلار،او متعلقینو دپاره د آخرت ذخیره او ذریعه د نجات جوړه کړی.آمین.

نورالبشر بن محمد نورالحق عفاالله عنهما

استاذ و رفیق شعبهٔ تصنیف جامعه فاروقیه کراچی



بسم الله الرحمن الرحيم

# كِتَابُ العِلم

**د وحی، ایمان او علم په مینځ کښې ترتیب او مناسبت:** امام بخاری رحمه الله د ،،کتاب الایمان،، نه د فراغت نه پس ،،کتاب العلم،، شروع کړې دې.د ،،کتاب العلم،، د مقدم کولو وجه دا ده. چه ایمان په اول واجب کیدو سره سره علی الاطلاق افضل الامور هم دې.چه ایمان د علمی اوعملی هر خیر مبداء او د هر کمال منشا ده.

بیا څونکه ایمان د ټولو اعمالو د قبولیت دپاره اساس او بنیاد دې.او ددې په تقاضو باندې هغه وخت پورې عمل نشي کیدې.تر کومه پورې چه علم نه وی.په دې وجه نې ددې نه پس ،،کتاب العلم،، ذکرکړو.ځکه چه د ټولو څیزونو صحت او د هغې حکم، په علم باندې موقوف دې.د علم په ذریعه د صحیح او سقیم فرق معلومیږی. البته د کتاب الوحی دټولو نه مقدم کولو وجه مونږ وړاندې ذکرکړې ده. (1) چه سره د ایمان نه د دین د ټولو شرائعو مدار په وحی باندې دې.په دې وجه نې دا د ټولو نه مقدم کړې ده. (2)والله اعلم.

**د علم حقیقت او ددې قسمونه:** ددې نه پس پوهه شئ چه په ،،علم،، کښې اختلاف دې.چه آیا دا بدیهی دې.او که نظری دې؟ د قاضی ابن العربی او امام فخرالدین رازی رحمهما الله رائې دا ده.چه علم بدیهی دې.د تعریف ضرورت نشته. (3)

امام الحرمین او ددوی شاګرد امام غزالی رحمهما الله فرمائی.چه دا نظری دې.او نظری کیدو سره سره متعسرالتحدید دې.نو ددې تعریف او تحدید، تقسیم او مثالونو په ذریعه کیږی. (4)

حالانکه د متکلمینو یو جماعت وائی.چه علم نظری دې.او ممکن التحدید دې.(5) په دې وجه ددې ډیر تعریفونه شوی دی. لکه چه

① بعضو حضراتو ددې تعریف کړې دې.«صفة توجب لمحلها تمييزا بين المعاني لا يحتمل النقيض»

② بعضو حضراتو تعریف کړې دې.«هو صفة يتجلى بها المذكور لمن قامت هي به» ددې نه علاوه نور تعریفونه هم شوی دی.(6)

---

(1) كشف الباری (۲۰۷\۱، ۲۰۹) بدء الوحی (۵۵۸\۱) کتاب الإیمان)_

(2) عمدة القاری (۲\۲) کتاب العلم)_

(3) انظرعارضة الأحوذی (۱۱٤\۱۰) فاتحة أبواب العلم والتفسير الكبير للرازی (۲۰۳\۲) المسألة السابعة في أقوال اناس فی حد العلم تحت قوله تعالى ﴿وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا...﴾ _

(4) عمدة القاری (۲\۲)_ وإتحاف السادة المتقين (٦٤\۱) کتاب العلم الباب الأول فی فضل الله والتعلم ..)_

(5) المصادرالسابقة)_

(6) د ذکر شوو تعریفو نو علاوه د نورو تعریفاونو دپاره اوګورئ (اتحاف السادة المتقين (٦٤\۱، ٦٥)_

④ ملا علي قاري رحمه الله فرمائي. علم يو نور دي. چه دا د مشكواة نبوت يعنى د محمد ﷺ د افعالو. اقوالو او احوالو نه مقتبس دي. چه دا الله تعالى د مؤمن په زړه كښې اچوي. چه ددې په وجه هغه دپاره پټ امور واضح كيږي. او د هدايت لارې ورته ګلاويږي.(¹)

او دوى فرمائي. چه د علم دوه قسمونه دى

① علم وهبى ② علم كسبى._كه علم بې د واسطې د بشر نه وي. نو هغه وهبى يا لدنى دې. ګنى كسبى دې.

وحى الهام او فراست: بيا د علم وهبى درې قسمونه دى

① وحى ② الهام ③ فراست.

وحى: وحى خو په لغت كښې ،،اشاره بسرعة،، ته وائي. او په اصطلاح كښې هغه كار ته وائي. كوم چه د الله تعالى د طرفه رسولانو باندې نازلولې شي. ددې زيات تفصيل د ،،بدءالوحى،، په مباحثو كښې تير شوې دې.(²)

الهام: دا دې. چه الله تعالى د پردې دغيب نه دځه څيز علم د يوكس په زړه كښې واچوي. په ﴿قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ﴾ (³) كښې هم دې طرف ته اشاره ده.

فراست: فراست هم يو قسم علم دې. چه دا په آثار او صور باندې نظر كولو سره حاصليږي. په قرآن كريم كښې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِينَ﴾ راغلې دې. مفسرينو د ﴿مُتَوَسِّمِينَ﴾ تفسير په ،،متفرسين،، سره كړې دې.(⁴) دغه شان په ترمذى كښې يو روايت دې. ((اتقوا فراسة المؤمن فإنه ينظر بنور الله))(⁵)

بيا په فراست او الهام كښې فرق دا دې. چه په دواړو كښې علم حاصليږي. خو په فراست كښې آثار او صور په ذريعه، او الهام كښې بغير د واسطې نه حاصليږي.

او په الهام او وحى كښې فرق دا دې. چه الهام د وحې تابع وي. وحى د الهام تابع نه وي.(⁶)

بيا د علم بل تقسيم په اعتبار د معلوماتو دې

① يو علم المعامله ② او دويم علم المكاشفه._ په علم المعامله كښې كشف معلومات سره د عمل يعنى د اوامر او نواهي تعميل مقصود وي. او ددې دوه قسمونه دى.

① يو علم ظاهر ② دويم علم باطن.

علم ظاهر: نه مراد د جوارح د اعمالو علم دې. چه په دې كښې د عباداتو نه علاوه كوم اعمال پوره كولې شي. هغه هم داخل دى. او دعلم باطن د زړونو علم مراد دې. نو د عباداتو

---

¹) مرقاة المفاتيح (٢٦/١) كتاب العلم )_
²) كشف البارى (٢٢١/١. ٢٢٥)_
³) سبا :٤٨)_
⁴) قاله جعفر بن حمد. كما فى روح المعاى (٧٤/١٤) وانظرالجماع اللترمذى كتاب التفسير سورة الحجر)
⁵) جامع ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الحجر رقم ٣١٢٧)_
⁶) مرقاة المفاتيح (٢٦٤/١) كتاب العلم )_

یعنی د مونځ، روژې، زکاة او حج تعلق به علم ظاهر سره وی.او د سړی تواضع، مسکنت، رضا بالقضاء، توکل، صبر،او قناعت وغیره اختیارول،او د کبر،حسد،کینه او عناد، بغض، عجب او غرور، او حب دجاه ومال وغیره نه بچ کیدل، ددې تولو نه د بچ کیدو تعلق به علم باطن سره وی.

ددې تفصیل نه معلومه شوه.چه جوارح سره متعلق د اعمالو دوه قسمونه دی

① یو هغه کوم چه د عبادت په طور پوره کولې شی

② او دویم هغه کوم چه په طور د عادت پوره کولې شی.

دغه شان زړونو سره د متعلق اعمالو هم دوه قسمونه دی

① یو قسم محمود دې.چه په دې سره متصف او خان ښانسته کول مقصود دی.

② او دویم قسم مذموم دې.چه ددې نه اجتناب کول ضروری دی.(۱)

تر کومه پورې چه د علم المکاشفه تعلق دې.په دې کښې صرف کشف معلومات کیږی.په دې کښې د علم تعلق نه وی.بیا ددې دوه قسمونه دی

① یو کشف تکوین ② کشف تشریع.

**کشف تکوین:** په دې کښې الله ﷻ د یو مؤمن په زړه کښې داسې نور پیدا کوی.چه په دې سره راروان واقعات او دغه شان تیر شوی واقعات معلومیږی.

**کشف تشریع:** په دې کښې دا کیږی.چه په زړه کښې د الله ﷻ د صفاتو نه د یو صفت علم تجلی کیږی.او هم دا حقیقی کشف دې.،،والله سبحانه وتعالی أعلم،،_

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

د اصیلی او کریمه په نسخو کښې هم دغه شان دی.یعنی وړاندې د ،، کتاب العلم،، عنوان دې.ددې نه پس ،، بسم الله الرحمن الرحیم،،ده.حالانکه د ابوذر په روایت کښې ،،بسم الله،، مقدم ده.او د ،،کتاب العلم،، عنوان مؤخر دې.(۲)

## ۱-بَابُ فَضْلِ الْعِلْمِ

امام بخاری رحمه الله دلته دا باب قائم کړې دې.دعلم تعریف او ددې اقسام وغیره ئې بیان نکړل.قاضی ابن العربی رحمه الله فرمائی.ددې وجه دا ده.چه د علم تعریف چونکه ډیر واضح دې.په دې وجه دتعریف دضرورت اونه ګنړلې شو.یاپه دې وجه (ذکرنکړې شو،چه) د څیزونو د حقائقو سراغ لګول (او لټون کول) ددې کتاب د موضوع نه خارج دې.دا دواړه وجوه بالکل واضح دی.ځکه چه د صحیح بخاری وضع د حقائقو د تحدید او تصویر دپاره نه دې

(۱) إحیاء علوم الدین مع شرح إتحاف السادة المتقین (۶۳۹/۱) قبیل کتاب العلم)_

(۲) فتح الباری (۱۴۰/۱)_

شوې.بلكه دا د عربو په قديم اسلوب باندې مبنى دې.چه كله د يو څيز حقيقت واضح وى.نو براه راست د تشويق او ترغيب دپاره د مطلوب فضيلت بيانول شروع كوى.(١) والله اعلم.
تنبيه ددې وضاحت ضرورى دې.چه مونږ دعلم تعريف او ددې تقسيم سره متعلق مباحث نيزدې بيان كړى دى.،،فارجع إليه إن شئت،،

«وَقَولِ اللهِ تَعَالَى ﴿يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ (المجادلة:١١) وَقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ ﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾ (طه:١١٤)

**د قول ،،الله، اعراب:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دا رفع سره ضبط شوې دې.خكه چه دا خو يا په كتاب باندې معطوف دې.يا د استيناف په وجه مرفوع دې.(٢)
علامه عينى رحمه الله دا مجرور گرځولې دې.هغه فرمائى.چه يا خو دا د ،،كتاب العلم،، په ،،العلم،، باندې معطوف دې.كه ،،باب فضل العلم،، موجود نه وى.او كه دا باب موجود وى.نو بيا د ،،باب،، مضاف اليه يعنى ،، فضل العلم،، باندې معطوف دې.او په هر صورت كښې مضاف اليه باندې د معطوف كيدو په وجه مجرور دې.(٣)
علامه عينى رحمه الله په حافظ رحمه الله باندې رد كوى.فرمائى.چه دلته د ،،قول،، مرفوع وئيلو كوم دوه صورتونه بيان كړې شوى دى.په دې كښې يو صورت هم ممكن نه دې.خكه كه دا دلته د استيناف دپاره اومنلې شى.نو يا به استيناف بيانى منل ضرورى وى.يا استيناف نحوى.په دې كښې استيناف بيانى خكه صحيح نه دې.چه دا د سوال په جواب كښې راځى.او دلته هيڅ سوال نشته.او استيناف نحوى خكه صحيح نه دې.چه په دې صورت كښې به ددې رفع يا د فاعل په وجه وى.يا به د ابتداء په وجه وى.دلته د فاعل جوړيدو دپاره هيڅ فعل موجود نه دې.او د مبتدا جوړولو دپاره به د خبر ضرورت وى.حالانكه د خبر محذوف منلو هيڅ مقام نه دې.نه وجوباً او نه جوازاً.(٤) علامه قسطلانى رحمه الله هم د عينى رحمه الله موقف اختيار كړې دې.(٥) خو كه غور اوكړې شى.نو معلومه به شى.چه د علامه عينى رحمه الله دا ټول كلام خالص مجادله ده.
كه دا استيناف بيانى اوگرځولې شى.نو كلام صحيح كيدې شى.خكه چه د مؤلف ترجمه دعوه وى.كله چه مؤلف اوفرمائيل.،،باب فضل العلم،،نو فوراً سوال پيدا شو.چه ستا ددې دعوې دليل څه دې؟ مؤلف فرمائى.،،قول الله تعالى...،،
اوكه دا استيناف نحوى اومنلې شى.نو هم صحيح دې.خكه كه دا د فاعليت په وجه مرفوع

---

(١) فتح البارى(١/١٤٠، ١٤١).
(٢) فتح البارى(١/١٤١).
(٣) عمدة القارى(٢/٤).
(٤) المصدر السابق.
(٥) إرشاد السارى(١/١٥٣).

دي.نو فعل به دلته ،،يدل،، محذوف وي.«أي يدل عليه قول الله تعالى...»اوكه دا د ابتداء په وجه مرفوع اومنلي شي.نو محذوف خبر به ،،فيه،، وي.«أي بيان فضل قول الله تعالى....»

دلته هم د محذوف قرينه دا ده.چه دا خبره ښكاره ده.چه آيت د علم د فضيلت دليل دې.او دليل پخپل مدلول باندې دال او ددې دپاره مبين وي.نو كله چه دلته كښې «قول الله....» فاعل جوړ كړې شي.نو د ،،يدل،، فعل به محذوف وي.او كه دا مبتدا جوړكړې شي.نو «بيان الفضل» به خبر مقدم جوړولې شي.كوم چه محذوف دې.(١) والله اعلم.

**د مذكوره ايتونو نه د ترجمې اثبات:** امام بخاري رحمه الله دلته د خپلې ترجمې د اثبات دپاره دوه آيتونه ذكر كړى دى

① رومبې آيت ﴿يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ﴾ پوره آيت داسې دې. ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ﴾(٢) ددې آيت نه د علم فضيلت په دې طريقه ثابت دې.چه په دې كښې رفع د درجاتو وراندې عامو مسلمانانو دپاره ثابت كړې شوې ده.چه په دې كښې عالمان هم داخل دى.بيا ددې تعميم نه پس ئې د علم خاوندان خصوصيت سره ذكركړى دى.چه دا ددوى د فضيلت او مقام او مرتبې دليل دې.

دغه شان دلته د درجاتو د اوچتيدو اثبات چونكه د ايمان او د علم خاوندانو دپاره ثابت كړې شوى ډى.او دا خبره معلومه ده.چه اهل ايمان ته په غير اهل ايمان باندې، او اهل علم ته په غير اهلم علم باندې فضيلت حاصل دې.

② دويم آيت ﴿رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا﴾ (٣)دې.ددې نه د فضيلت اثبات يا خو په دې طريقه دې.چه په دې كښې الله تعالى په علم كښې دزياتوالى طلب كولو حكم وركړې دې.ښكاره ده چه الله ﷻ نه به د يو څيز د زياتوالى طلب هغه وخت كولې شي.كله چه په دې كښې څه فضيلت وى.

بيا دلته دا خبره هم قابل دغور ده.چه په دې آيت كښې الله تعالى خپل هغه پيغمبر ته دعلم د زياتوالى حكم وركوى.چاته چه الله رب العزت هرقسمه كمالات وركړى وو.اوچاته ئې چه د اولين او آخرين علم وركړې وو.ددې باوجود هغوى ته د نفس علم طلب كولو امر نه كوى.بلكه په علم كښې د زياتوالى امر وركوى.والله اعلم.

**د علم نه مراد دلته علم دين دې:** دلته دعلم نه علم دين مراد دې.د كوم د تعليم دپاره چه جبرئيل امين راغلې وو.او ددې علم دين طلب په هر سړى او ښځه باندې فرض دې.(٤)

ددې تفصيل دا دې. چه داسې تول امور دكومو اداكول چه انسان باندې فرض گرځولى

---

١) حاشية السندي على صحيح البخاري (٣٩/١)_

٢) المجادلة:١١)_

٣) طه:١١٤)-

٤) فتح الباري(١٤١/١)_

شوى دى.د هغې علم حاصلول هم فرض دې.خو د واجب امورو علم حاصلول واجب دې.او د مسنون او مندوب امورو علم حاصلول مسنون او مستحب دې.او د قرآن او سنت د ټولو علومو حاصلول، او په دې کښې کمال پيدا کول فرض کفايه دې.فرض عين نه دې.

نن صبا چه په سکولونو او کالجونو کښې کوم دنيوى علوم ښودلې کيږى.هغه مطلوب علم نه دې.يعنى دې ته به فرض عين نه وئيلې کيږى.بعض په دې کښې د فرض کفايه په درجه کښې راځى.که دا د مخلوق د فائدو دپاره ضرورى وى.او د شريعت په خلاف امورو باندې مشتمل نه وى.يا به دې ته صرف د جواز درجه ورکولې شى.خو کوم علوم چه په داسې امورو باندې مشتمل دى.د کومو چه په شريعت کښې دسره ګنجائش نشته.نو دهغې حاصلول به ناجائز وى.ددې نه د زيات تفصيل دا موقعه نه ده.

په قرآن کريم کښې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿فَأَعْرِضْ عَمَّنْ تَوَلَّىٰ عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ۝ ذَٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِنَ الْعِلْمِ﴾[1] او په حديث شريف کښې دى.«إن من العلم جهلاً»[2] رشتيا دى چه

## ۶~ علمى که راهِ حق نمى آيد جهالت است

مولف رحمه الله د مذکوره ترجمې لاندې يو مسند حديث ولې ذکر نکړو؟ دلته په دې خبره پوهيدل پکار دى. چه امام بخارى رحمه الله ددې باب لاندې صرف دوه آيتونه ذکرکړى دى.هيڅ مسند حديث ئې نه دې ذکرکړې.دا هغه ړومبې باب دې.کوم ځائې چه امام بخارى رحمه الله صرف ترجمه ذکرکړې ده.او هيڅ يو مسند حديث ئې نه دې راوړلې.

علامه کرمانى رحمه الله د بعض اهل شام نه نقل کړى دى.چه امام بخارى رحمه الله وړاندې تراجم د ابوابو قائم کړى وو.بيا ئې تدريجاً دهغه بابونو لاندې د احاديثو ذکر کول شروع کړى وو.نو ددې لاندې هغوى هيڅ يو حديث ذکر نکړې شو.يا خو ددې وجه دا راپيښه شوه.چه د هغوى د شرط مطابق يو حديث هم نه وو.يا ئې په بله څه وجه حديث ذکر نکړې شو.[3]

دوى د بعضو اهل عراق نه نقل کړى دى.چه په اصل کښې امام بخارى رحمه الله ترجمه قائم کړې ده.او قصداً عمداً ئې حديث ذکر نکړو.ددې ښودلو دپاره چه په دې باب کښې ددوى په نيز هيڅ څيز ثابت نه دې.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه هرکله د امام بخارى رحمه الله مقصد دا بيانول وى.چه په دې باب کښې هيڅ يو څيز ددوى د شرط مطابق نه دې.نو په داسې موقع باندې دوى ترجمه قائموى.او يو آيت يا اثر هم نه ذکرکوى.او کله چه آيت يا اثر ذکر کوى.نو ددې مطلب د آيت په تفسير کښې وارد رواياتو او آثارو طرف ته اشاره وى.اګرچه دا دهغوى د شرط مطابق نه

---

[1] النجم:۲۹، ۳۰)_

[2] الحديث بتمامه إن من البيان سحراً وإن من العلم جهلاً وإن من الشعر حكماً وإن من القول عيالاً أخرجه أبوداود في سننه فى كتاب الأدب باب ما جآء فى الشعر رقم ۱۲. ۵۰) عن بريدة بن الحصيب ﷺ مرفوعاً)_

[3] شرح الكرمانى(۲/۱، ۳)_

[4] شرح الكرمانى(۲/۳)_

وى.دغه شان د اثر راوړلو نه دې خبرې طرف ته اشاره مقصود وى.چه ددې نه د مرفوع روايت تقويت كيږى.اګرچه د قوت حاصليدو باوجود هغه ددوى د شرط موافق نه وى.[1]
حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه كرمانى رحمه الله ذكر شوو احتمالاتو نقل كولو نه علاوه يو احتمال دا هم ذكركړې دې.چه امام بخارى رحمه الله د ترجمې لاندې كوم دوه آيتونه ذكر كړى دى.په دې باندې ئې اكتفاء كړې ده.[2]

**د عالم د بقاء راز په علم كښې پټ دې:** حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى.چه د ترجمة الباب اثبات په راروان باب كښې راتلونكى روايت سره كيږى.په هغې كښې دى.«إذا وسد الأمر إلى غير أهله فانتظر الساعة» ددې روايت نه د علم فضيلت په دې طريقه ثابتيږى.چه په دې حديث كښې ښودلى شوى دى.چه كله كار نا اهلو خلقو ته اوسپارلې شى.نو قيامت به نيزدې راشى.ګويا د عالم نظام به باقى پاتې نشى.ددې نه معلومه شوه.چه د عالم د بقاء راز په علم كښې پټ (پروت) دې.[3] چونكه نا اهله كيدل د علم د فقدان په نتيجه كښې ښكاره كيږى.او يا د علم په تقاضا باندې د عمل نه كولو په صورت كښې ښكاره كيږى.
حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى.چه امام بخارى رحمه الله چه دلته كوم مسند حديث ذكر نكړو.ددې دوه وجې دى
① يو داچه د علم فضيلت چونكه د ډيرو جهاتو نه ثابت دې.كه دلته ئې څه خاص حديث ذكر كړې وې.نو كيدې شوه.چه يو كس دا ګنړلې وې.چه د علم بس صرف هم دا يو فضيلت دې.په دې وجه مصنف رحمه الله څه خاص روايت ذكر نكړو
② او دويمه وجه دا ده.چه روستو يو روايت راروان دې.چه د هغې نه ترجمه ثابتيږى.او هغه د راروان باب روايت دې.[4]

**د حضرت شيخ الهند رحمه الله عجيبه تحقيق:** د مجردو تراجمو(چه حديث پكښې ذكر نه وى) په سلسله كښې حضرت شيخ الهند رحمه الله يوه قاعده بيان كړې ده.د هغې خلاصه دا ده.چه په بخارى شريف كښې تقريباً د سلو نه زيات مقامات داسې دى.چه هلته كښې صرف ترجمة الباب مذكور دې.خو د هغې لاندې هيڅ يو مسند حديث نشته.دغه تراجم په مجردو تراجمو سره تعبيركولې شى.ځكه چه دا مجرد تراجم دى. چه مسند حديث پكښې ذكر نه وى.
بيا ددې دوه قسمونه دى.
① بعضې تراجم داسې دى.چه هلته امام بخارى رحمه الله ترجمه قائم كړې ده.او دهغې لاندې ئې مسند حديث نه دې ذكركړې.البته آيت، يا معلق حديث، يا څه اثر ئې ذكركړې دې. داسې تراجم تقريباً دوه اتيا (٨٢) دى دې ته ،،تراجم مجرده غير محضه،، وائى.

---

[1] فتح البارى (١٤١١)-
[2] المصدر السابق_
[3] لامع الدرارى (٢\٥، ٣)_
[4] تعليقات لامع الدرارى(٢\٤)_

(٢) بعضې تراجم داسې دى.چه هلته امام بخارى رحمه الله آيت نه ترجمه جوړه كړې ده.د هغې لاندې ئې نه څه مسند حديث ذكركړې دې.او نه ئې څه معلق حديث، يا څه اثرذكر كړې دې. د داسې تراجمو تعداد تقريباً څوارلس دې.دې ته..تراجم مجرده محضه صوريه.. وئيلې شى.د صوريه وئيلو وجه دا ده.چه دا تراجم صورتاً د دليل نه خالى دى.ګنې په حقيقت كښې د دليل نه خالى نه دى.څكه چه د مصنف رحمه الله كومه دعوه ده.هغه ددې دليل دې.ګويا دا داسې شوه.لكه چه وئيلې شى.((دعوى دليلها معها))

(٣) بعضې تراجم داسې دى.چه هلته امام بخارى رحمه الله د خپل قول نه ترجمه جوړه كړې ده.د آيت نه ئې نه ده جوړه كړې.او بيا ئې ددې لاندې د آيت. مسند يا معلق حديث يا اثر وغيره نه هيڅ نه دى ذكركړى.داسې تراجم تقريباً نهه دى.دهغې نوم ..تراجم مجرده حقيقيه.. دې.
په دې كښې ړومبنو دواړو قسمونو ته د هيڅ دليل ضرورت نشته.څكه چه قسم اول سره د آيت يا معلق حديث يا اثر په صورت كښې دليل موجود دې.او په دويم قسم كښې دعوه او دليل يو دې.بس صرف دومره فرق دې.چه په قسم اول كښې د دعوې نه پس دليل دې.او په دويم قسم كښې د دعوې سره دليل دې.
البته دلته دومره سوال ضرور پيدا كيږى.چه مؤلف د خپل عام طرز خلاف ولې اوكړل؟ ددوى عادت خو دا دې.چه هغوى د ترجمې راوړلو نه پس مسند حديث راوړلې وى.اوس كيدې شى چه ددې وجه دا ده.چه مؤلف ته هيڅ حديث ددوى د شرط مطابق ملاو نشو.يا دا اووئيلې شى.چه مؤلف وړاندې يا روستو يو حديث داسې ذكركړې دې.چه د هغې نه دا ترجمه ثابتيږى.مؤلف د تكرار نه د بچ كيدو په وجه، يا د طالبانو د تشحيذ اذهان ( ذهن تيزولو) په غرض سره مسند حديث ددې ترجمې سره ذكر نكړو.
تركومه پورې چه د دريم قسم تعلق دې.نو ددې متعلق عرض دې.چه نيزدې نيزدې يو روايت داسې ضرور وى.چه ددې نه دا ترجمه راوځى.سوا د دوو دريو تراجمو نه، چه هلته نيزدې هيڅ روايت نشته.خو هغه بالكل بې دليله نه دى.بلكه لږ لرې وړاندې يا روستو به يو روايت داسې ضرور ملاويږى چه د هغې نه به دا ترجمه ثابتيږى.(١)
نو اوس به مونږ دا وايو.چه دا ترجمه د مجردو تراجمو د قسم اول څنې دې يعنى دا ..ترجمه مجرده غير محضه..ده.او د ترجمې دليلونه هغه دواړه آيتونه دى.كوم چه ددې لاندې ذكركړې شوى دى
پاتې شوه دا خبره چه مؤلف مسند حديث ولې ذكرنكړو؟ ددې منشاء خو دا ده.چه دوى ته هيڅ يو حديث د شرط مطابق ملاو نشو.يا دا اووئيلې شى. چه نيزدې د يو روايت نه ددوى مدعا ثابتيږى.او دغه روايت د راتلونكى باب لاندې راروان دې..،كما سيق بيانه،،
او حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى.په دې باب كښې ئې مسند حديث بيان نكړو.دوه آيتونه كوم چه ترجمې سره ذكر دى.و د ترجمې د اثبات دپاره هر يو آيت كافى دې.په هغې ئې

(١) الأبواب والتراجم لشيخ الهند قدس الله روحه (١٣١١)_ و(٦٤، ٦٥)_

اكتفاء اوكړله.ددې نه علاوه په كتاب العلم كښې خائې په خائې مسنده احاديث چه په فضيلت دعلم باندې دلالت كوى. كثرت سره موجود دى.

**فائده** ياد ساتئ:چه هسې خو په فضيلت دعلم كښې ډير حديثونه دى.په هغې كښې د ټولو نه زيات واضح روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث «ومن سلك طريقاً يلتمس فيه علماً سهل الله له به طريقاً إلى الجنة.....»چه ددې تخريج امام مسلم رحمه الله كړې دې. (١) چونكه ددې په سند كښې لږ كلام دې.او دا د امام بخارى رحمه الله د شرط موافق نه وو.په دې وجه دوى دا حديث نقل نكړو.تفصيل به انشا ءالله په «باب العلم قبل القول والعمل» كښې راشى.

**د،تكرار فى الترجمه، اعتراض، دهغې جواب او د ترجمې مقصود:** دلته په دې خبره هم پوهيدل پكار دى.چه امام بخارى رحمه الله بعينه هم دا ترجمه روستو د «باب رفع العلم و ظهور الجهل» نه پس هم قائم كړې ده. سوال دا دې.چه دا تكرار دكوم غرض دپاره دې؟ علامه عينى رحمه الله فرمائى. چه په صحيح نسخو كښې دلته د ،،كتاب العلم،، نه پس د ،،باب فضل العلم ،،د سره وجود نشته.بلكه براه راست ،،وقول الله تعالى.....،، دې.اوكه د نورو نسخو مطابق اومنلې شى.چه دلته ،،باب فضل العلم،، ترجمه موجود ده.نو تفريق به په دې طريقه كولې شى.چه دلته د علماو فضيلت بيانول مقصود دې.او روستو په راتلونكى باب كښې د علم فضيلت بيانول مقصود دى.نو تكرار لازم نشو. (٢)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه په دواړو بابونو كښې تكرار نشته. څكه چه لته د ،،فضل العلم،،نه فضيلت د علم مراد دې.او په راتلونكى باب كښې ،،فضل،، په معنى د ،،فضله،، يعنى زائد دې.ګويا امام بخارى رحمه الله دا فرمائيل غواړى.چه كه علم زائد وى.نو په هغې څه اوكړې شى.دوى چه هلته كښې كوم روايت پيش كړې دې.يعنى «بينا أنا نائم أوتيتُ بقدح لبن، فشربت حتى إني لأرى الري يخرج من أظفاري، ثم أعطيت فضلى عمر بن الخطاب، قالوا: فما أولته يا رسول الله؟ قال: العلم» ددې نه معلومه شوه.چه بل ته وركول جائز دى.(٣)

او دعلم زائد كيدو مختلف صورتونه دى.

① يو دا چه سړې د خپل ضرورت نه زياتې مسئلې زده كړى.مثلاً يو ګوډ سړې دې.هغه پخپله د جهاد قابل نه دې.خو د جهاد مسئلې زده كړى.چه نورو خلقو ته ئې اوښائى.(٤)

② دويم صورت دا دې.چه د يو استاذ نه خپل مقصود حاصل شوې وى.نو دهغه وخت فارغ

---

(١) صحيح مسلم (٣٤٥\١٢) كتاب الذكر والدعاء والتوبة والإستغفارباب فضل الإجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر )_

(٢) عمدة القارى (١٢\٣.) و(١٢\٨٥)_

(٣) شرح الكرمانى(١٢\٣)_

(٤) الأبواب والتراجم از شيخ الهند قدس الله سره (ص٥٠.)_،

کړې شی.چه نور خلق دده نه علم حاصل کړی
③ دریم صورت دا دې.چه سړی سره د ضرورت نه زیات کتابونه دی.نو هغه دا بل کس ته ورکړی.[1]
علامه کرمانی دلته دا بیان کړی دی.[2] خو کله چه هغه په دویم مقام باندې اورسیدو.نو هلته هغوی د ،،فضل،، نه فضیلت مراد واخستلو.او ددې تقریر ئې شروع کړو.[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا توجیه اختیار کړې ده.چه دلته د ،،فضل،، نه مراد فضیلت مراد دې.حالانکه هلته د ،،فضل،، نه ،،فضله،، یعنی زیادت مراد دې.[4] والله اعلم بالصواب.
ددې پوره تقریر نه د ترجمة الباب مقصد هم واضح شوې دې.

## ۲-بَاب مَنْ سُئِلَ عِلْمًا وَهُوَ مُشْتَغِلٌ فِي حَدِيثِهِ فَأَتَمَّ الْحَدِيثَ ثُمَّ أَجَابَ السَّائِلَ

**ددې باب ماقبل باب سره مناسبت:** ماقبل کښې دعلم فضیلت بیان شوې دې.او د اهل علم دپاره ددې علم په وجه د ډیرو درجو وعده ده.په دې وجه نبی کریم ﷺ ته هم په علم کښې د زیادت طلب کولو حکم ورکولې شی.نو مونږ ته هم پکار دی.چه مونږ دعلم زیادت طلب کړو.او په علم حاصلولو کښې د زړه د اخلاصه عمل شروع کړو.اوس امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه په علم کښې د زیادت طلب کولو طریقه دا ده.چه د اهل علم نه سوال اوکړې شی.ددې نه به په علم کښې اضافه کیږی.ددې سره سره امام بخاری رحمه الله د سوال په باره کښې یوڅو آداب بیانوی.چه دا دمعلمینو دپاره هم دی.او متعلمینو دپاره هم دی.والله اعلم.
علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه په تیرشوی باب کښې د عالمانو د فضیلت ذکر دې.او په دې باب کښې د مسئولینو عالمانو حال مذکور دې.چه دهغوی نه د مسئلو معلومات کولې شی.ګویا دا ئې ښودلې ده.چه د مشکلو مسئلو د هغه عالمانو او فضلاء عاملینو نه تپوس کولې شی.کوم چه په ﴿يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ﴾ کښې داخل دی.دا توجیه په دې صورت کښې ده.چه مونږ دلته ،، باب فضل العلم،، موجود اومنو.،،کما هو فی بعض النسخ،،
اوکه دلته ،،باب فضل العلم،، موجود نه وی.نو د مذکوره باب نه به د کتاب العلم شروع کولو نکته دا وی.چه دلته چونکه دا وښیلی شوی دی.چه ،،العلم سؤال وجواب،، دغه شان وښیلی شوی دی.،،السؤال نصف العلم،، ددې نه د علم په طلب کښې د سوال او جواب اهمیت

---

[1] حاشية السندی علی صحيح البخاری (۱۱/۴۹)۔
[2] شرح الکرمانی (۲/۳)۔
[3] شرح الکرمانی (۲/۶۳)۔
[4] فتح الباری (۱/۱۸۰)۔

معلوم شو په دې وجه ددې باب نه ،،كتاب العلم،، شروع كړې شوې دې.(١) والله اعلم.

**د ترجمة الباب مقصد** دلته د ترجمة الباب نه د امام بخارى رحمه الله د غرض په سلسله كښې څلور اغراض مشهور دى.

① د عامو شارحينو رائې دا ده.چه امام بخارى رحمه الله دا فرمائيل غواړى.چه د سوال كونكى جواب فورا وركول ضرورى نه دى.(٢) لكه چه امام ابن حبان رحمه الله په دې حديث باندې ترجمه منعقد كړې ده.((ذكر الخبر الدال على إباحة إعفاء المسئول من العلم عن إجابة السائل على الفور))(٣) خو ددې لحاظ ضرورى دې.چه دا هغه وخت دې.كله چه سوال فورى مطلوب نه وى.ګنى فوراً جواب وركول ضرورى دې.كه جواب ورنكړې شو.نو وخت به تير شى.مثلاً يو كس د زمى كولو دپاره روان دې.او د رمى په باره كښې د مسئلې تپوس كوى.نو فوراً جواب وركول پكار دى.ګنى ددې وخت به تير شى

د صحيح مسلم او نسائى په يو روايت كښې دى.((قَالَ أَبُو رِفَاعَةَ انْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ قَالَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ رَجُلٌ غَرِيبٌ جَاءَ يَسْأَلُ عَنْ دِينِهِ لَا يَدْرِي مَا دِينُهُ قَالَ فَأَقْبَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَرَكَ خُطْبَتَهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَيَّ فَأُتِيَ بِكُرْسِيٍّ حَسِبْتُ قَوَائِمَهُ حَدِيدًا قَالَ فَقَعَدَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعَلَ يُعَلِّمُنِي مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ ثُمَّ أَتَى خُطْبَتَهُ فَأَتَمَّ آخِرَهَا))اللفظ لمسلم))(٤)

② حضرت شاه ولى الله رحمه الله دخپل شيخ ابوطاهر مدنى رحمه الله نه نقل كوى.چه د امام بخارى رحمه الله مقصد ددې باب نه دا ښودل دى.چه كه د سائل دسوال فوراً جواب ورنكړې شى.بلكه عالم پخپل كار كښې مصروف پاتې شى.نو دا په كتمان د علم كښې داخل نه دې.په كوم چه وعيد وارد شوې دې. ((من سئل عن علم فكتمه الجمه الله بلجام من نار يوم القيامة))(٥) ،،اللفظ لأبى داؤد،، بلكه كتمان دعلم خو دا دې.چه مطلقاً جواب ورنكړى.يا وركړى. خو د وخت تيريدو نه پس ئې وركړى.(٦)

③ دريم غرض دا دې.چه امام بخارى رحمه الله عالم ته ادب ښودلې دې.او دا ئې خودلې ده.كه د مشغوليدو په وخت دده نه سوال اوكړې شى.نو سائل ته د زورنې او ملامته كولو ضرورت

---

(١) عمدة القارى (٢\٤)_

(٢) لامع الدرارى (٢\٦) الأبواب والتراجم از شيخ الهند رحمه الله (ص.٤٣)_

(٣) الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (١\٢٦٨) كتاب علم رقم الحديث (١٠٤)_

(٤) صحيح مسلم (١\٢٨٧) كتاب الجمعة فصل فى إجابة الخطيب لمن سأله عن شئ من الدين أو غيره وسنن النسائى (٢\٣٠٢) خاتمة كتاب الزينة باب الجلوس على الكراسى)_

(٥) أخرجه أبوداد فى سننه فى كتاب العلم باب كراهية منع العلم رقم ٣٦٥٨ والترمذى فى جامعه فى كتاب العلم باب ما جاء فى كتمان العلم رقم ٢٦٤٩ وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب من سئل عن علم فكتمه رقم ٢٦١ . ٢٦٦ من حديث أبى هريرة رضى الله عنه)_

(٦) شرح تراجم أبواب البخارى للشاه ولى الله رحمه الله _

نشته.بلكه خپل كار دې پوره كړى.ددې نه پس دې د سائل د سوال جواب وركړى.لكه څنګه چه نبى كريم ﷺ كړى دى.

خو دلته به هم هغه قيد ملحوظ وى.كوم چه د ړومبى غرض لاندې بيان كړې شوې دې. يعنى كه د سوال جواب فوراً مطلوب نه وى.نو په دې صورت كښې سائل نه په دې وخت كښې اعراض كولې شى.ګنى فوراً جواب وركول پكار دى.(١)

③ څلورم غرض دا دې چه امام بخارى رحمه الله طالب علم ته ادب ښودلې دې.متعلم ته ئې تعليم وركړې دې چه كه استاذ مصروف وى.نو فوراً سوال كول پكار نه دى.بلكه ددوى د فارغ كيدو انتظار كول پكار دى.كله چه دوى فارغ شى.نو بيا دې سوال اوكړې شى.دلته به هم دهغه قيد لحاظ ساتلې كيږى.چه سوال اهم، ضرورى او فورى مطلوب نه وى.كه داسې وى نو فوار د سوال كولو اجازت دې.(٢)

## حديث باب

٥٩-((حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ قَالَ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ ح وحَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي قَالَ حَدَّثَنِي هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (٣) قَالَ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَجْلِسٍ يُحَدِّثُ الْقَوْمَ جَاءَهُ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ مَتَى السَّاعَةُ فَمَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ سَمِعَ مَا قَالَ فَكَرِهَ مَا قَالَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ لَمْ يَسْمَعْ حَتَّى إِذَا قَضَى حَدِيثَهُ قَالَ أَيْنَ أُرَاهُ السَّائِلُ عَنْ السَّاعَةِ قَالَ هَا أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَإِذَا ضُيِّعَتْ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرْ السَّاعَةَ قَالَ كَيْفَ إِضَاعَتُهَا قَالَ إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرْ السَّاعَةَ))

## رجال الحديث

① محمد بن سنان رحمه الله: دا ابوبكر محمد بن سنان (بكسر السين المهملة وتخفيف النون الأولى) (٤) عوقى (بفتح العين المهملة وبعدها واو مفتوحة ثم قاف) (٥) باهلى بصرى دې.عوقه د ازد قبيلې يوه څانګه ده.په دې خاندان كښې د راتلو په وجه ،،عوقى،، ونيلې شى. (٦)

---

(١) فتح البارى(١٤٢/١)_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) قوله :عن أبى هريرة رضي الله عنه الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الرقاق أيضاً باب رفع الأمانة (٦٤٩٦ ولم يخرجه أحد من أصحاب أصول الستة سوى البخارى رحمه الله انظر تحفة الأشراف (٢٧٧/١٠) وعمدة القارى(٥/٢)

(٤) المغنى (ص.١٤١)_

(٥) المصدر السابق)_

(٦) تهذيب الكمال (٣٢٠/٢٥)_

دوی ابراهیم بن طهمان، جریر بن حازم، سلیم بن حیان، فلیح بن سلیمان، نافع بن عمر جمحی او هیشم بن بشیر رحمهم الله وغیره نه روایت دحدیث کوی.
ددوی نه روایت کونکو کښي امام بخاری، امام ابوداؤد، ابو مسلم ابراهیم بن عبدالله کجی، ابو قلابه عبدالملك بن محمد الرقاشی، ابو حاتم محمد بن ادریس رازی، محمد بن الاشعث السجستانی او محمد بن یحي ذهلی رحمهم الله وغیره دی.[1]

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ،،صدوق،،[2]

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائی: ،،ثقة،،[3]

ابن قانع رحمه الله فرمائی: ،،کان صالحاً،،[4]

امام دار قطنی رحمه الله فرمائی: ،،ثقة حجة،،[5]

مسلمه رحمه الله فرمائی: ،،ثقة،،[6]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ،،ثقة ثبت،،[7]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په ،،کتاب الثقات،، کښي ذکر کړي دي.[8]
په ۲۲۳ھ کښي ددوی وفات شوي دي.[9]

③ فليح: دا فليح (بالتصغير) بن سليمان بن ابی المغیره بن حنین خزاعی، اسلمی مدنی دي. ابو یحي ددوی کنیت دي. ددوی د نیکه ابوالمغیره نوم رافع یا نافع دي. پخپله ددوی نوم عبدالملك دي. او فليح ددوی لقب دي. لقب په نوم باندي داسي غالب شو چه په نوم سره دوی د سره پیژندلي کیږي هم نه.[10]
دوی د ربیعه بن ابی عبدالرحمن، سعید بن حارث انصاری، ابو حازم سلمه بن دینار مدنی، سهیل بن ابی صالح، عبدالرحمن بن القاسم بن ابی بکر الصدیق، عثمان بن

---

[1] د شیوخ اوتلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ (تهذیب الکمال (۲۵\۳۲۱، ۳۲۳) وسیر أعلام النبلاء (۱۰\۳۸۵، ۳۸۵)_

[2] تهذیب الکمال (۲۵\۳۲۲) وسیرأعلام النبلاء (۱۰\۳۸۶) الکاشف للذهبی (۲\۱۷۶) رقم (۴۸۹۰)_

[3] تهذیب التهذیب (۹\۲۰۶)_

[4] المصدرالسابق)_

[5] المصدرالسابق)_

[6] المصدرالسابق)_

[7] تقریب التهذیب (۴۸۲) رقم ۵۹۳۵)_

[8] الثقات لابن حبان (۹\۷۹)_

[9] خلاصة الخزرجی (ص۳۳۹) وغیرها من المراجع المذکورة)-

[10] تهذیب الکمال (۲۳\۳۱۷، ۳۱۸) وسیر أعلام النبلاء (۷\۳۵۱، ۳۵۲)-

عبدالرحمن تيمى. نافع مولى ابن عمر. نعيم بن عبدالله المجمراو يحي بن سعيد انصارى رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.

ددوى نه علم حديث حاصلونكو كښې زياد بن سعد. زيد بن ابى انيسه جزرى. سريج بن النعمان. سعيد بن منصور. عبدالله بن المبارك. محمد بن سنان عوقى. ددوى خوئي محمد بن فليح. ابوداؤد طيالسى. ابوالربيع الزهرانى او ابو عامر العقدى رحمهم الله وغيره دى.(١)

اكثرو ائمه د رجالو ددوى تضعيف كړې دې. لكه چه امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى ,,ضعيف،،(٢)

دغه شان عباس دورى رحمه الله د ابن معين رحمه الله نه نقل كړى دى ((ليس بقوى، ولايحتج بحديثه، وهو دون الدراوردى، والدراوردى أثبت منه))(٣)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.,,ليس بقوى،،(٤)

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى.,,لايحتج بفليح،،(٥)

امام نسائى رحمه الله فرمائى.,,ليس بالقوى،،(٦) او امام نسائى رحمه الله فرمائى.,,ضعيف،،(٧)

حاكم ابو احمد رحمه الله فرمائى.,,ليس بالمتين عندهم))(٨)

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى. ((كان فليح وأخوه عبدالحميد ضعيفين))(٩)

البته د امام دارقطنى رحمه الله نه ددوى په باره كښې توثيق منقول دې. هغه ددوى په باره كښې پخپل كتاب الضعفاء كښې فرمائى.,,ثقة،،(١٠) خو د دوى په باره كښې,,لابأس به،، هم منقول دى.(١١) دغه شان دورى فرمائى. ((سهيل بن أبى صالح خير من فليح بن سليمان))(١٢) حالانكه سهيل

---

(١) د شيوخ اوتلامذه د تفصيل دپاره اووړئ پورتنئ حوالې اوتهذيب التهذيب (٣٠٣\٨) وتذكرة الحفاظ (٢٢٣\١)_

(٢)تاريخ عثمان بن سعيد الدارمى عن أبى زكريا يحيى بن معين فى تجريح الرواة وتعديلهم (ص.١٩٠) رقم ٦٩٥)

(٣)تهذيب الكمال (٣٢٠\٢٣)_

(٤)المصدر السابق)_

(٥)ميزان الأعتدال (٣٦٦\٣)-

(٦)كتاب الضعفاء والمتروكين للنسائى (المطبوع مع التاريخ الصغير والضعاء الصغير للبخارى (٤٠١)_

(٧)تهذيب التهذيب(٣٠٤\٨)_

(٨)المصدر السابق)_

(٩)المصدر السابق)-

(١٠)تعليقات الكاشف (١٢٥\٢) رقم ٤٤٩٦)-

(١١)حاشية سبط ابن عجمى بهامش الكاشف (١٢٥\٢) وميزان الإعتدال (٣٦٦\٣)_

(١٢)تعليقات الكاشف(١٢٥\٢)_

بن ابى صالح د جرح او تعديل امامانو په نيز زيات مضبوط راوى نه دې.(۱) نو د امام دارقطنى رحمه الله دوى لره د ،،ثقه،، كرخولو مقصد هم د ،،لا باس به،، درجه ثابتول دى.(۲)
ددوى په حالاتو باندې مجموعى طور باندې نظر اچولو سره چه كومه خبره ثابتيږى.هغه دا ده.چه دا نه صرف د شيخينو بلكه د اصول سته راوى دې.امام بخارى او امام مسلم رحمهما الله ددوى په احاديثو باندې اعتماد كړې دې.(۳) بيا په قول د حافظ ابن حجر رحمه الله ددوى كوم روايات چه په بخارى شريف كښې دى.په هغې كښې د اكثرو تعلق ،،مناقب،،او ،،رقاق،، سره دې.بيا امام بخارى رحمه الله په دوى باندې هغه اعتماد هم نه دې كړې.كوم اعتماد ئې چه په امام مالك.او ابن عيينه رحمهما الله او ددوى پشان نورو حضراتو باندې كړې دې.(۴)
هم دا وجه ده.چه حافظ ابن عدى رحمه الله ددوى په حالاتو باندې تفصيل سره تبصره كړې ده.هغه ليكى.((ولفليح أحاديث صالحة يرويها، يروى عن نافع عن ابن عمر نسخة، ويروى عن هلال بن على عن عبدالرحمن بن أبى عمرة، عن أبى هريرة أحاديث، ويروى عن سائر الشيوخ من أهل المدينة، مثل أبى النضر وغيره أحاديث مستقيمة وغرائب، وقد إعتمده البخارى فى صحيحه، وروى عنه الكثير، وقد روى عنه زيد بن أبى أنيسة، وهو عندى لا بأس به))(۵)
دغه شان حافظ ذهبى رحمه الله ددوى په باره كښې د جرح او تعديل د امامانو كلام نقل كولو نه پس ليكى((وحديثه فى رتبة الحسن))(۶)
خلاصه دا چه فليح بن سليمان د عامو محدثينو په نيز قابل د احتجاج نه دې.البته امام بخارى رحمه الله چونكه د حديث د صحت په سلسله كښې د حد نه د زيات تحرى (احتياط) نه كار اخلى په دې وجه اميد هم دا دې.چه ددوى كوم روايات په صحيح بخارى كښې دى.هغه بې اصل نه دى.
په ۱۶۸ھ كښې ددوى وفات اوشو.(۷)،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_
تنبيه فليح بن مسلم د بخارى او مسلم د راويانو څخه دې.ددې باوجود محدثينو او د رجال امامانو دوى لره مطلق قبول نكړو.بلكه د امام بخارى رحمه الله نه وړاندې تيرشوى محدثين او دغه شان ددوى نه پس راتلونكى علماء محدثين په دوى باندې بنه ذير كلام كړې دې.نو

---

(۱) ابن معين رحمه الله فرمائى((هو مثل العلاء وليسا بحجة) امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((لايحتج به (الكاشف للذهبى (۴۷۱\۱۱) رقم ۲۱۸۳)_
(۲) تعليقات الكاشف(۱۲۵\۱۲)-
(۳) هدى السارى(ص.۴۳۵)-
(۴) المصدر السابق)_
(۵) الكامل لابن عدى (۳۰۱۶)_
(۶) تذكرة الحفاظ (۲۲۴\۱۱)-
(۷) تقريب التهذيب (۴۴۸\۴) رقم ۵۴۴)_

ددي نه معلومه شوه چه بعضو حضراتو د صحيح بخاري په هر راوى باندې كوم حكم نكولې دې ،،هذا جاز القنطرة،، (١) دا مطلقاً مقبول نه دې.

دغه شان دلته دا خبره هم ياد ساتئ چه حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه د امام بخارى رحمه الله په كومو راويانو باندې كلام شوې دې هغه عام طور باندې ددوى شيوخ دى.او بيا ددوى حديثونه هغوى كثرت سره نه ذكر كوى.(٢)

خو دلته دواړه خبرې نشته.ځكه چه فليح د امام بخارى رحمه الله شيخ نه دې بلكه د شيخ. شيخ نې دې.او ددوى نه كثرت سره احاديث هم اخلى.لكه چه وړاندې د حافظ ابن عدى رحمه الله قول تير شوې دې.((وقد إعتمده البخاري في صحيحه وروى عنه الكثير)) ،،فتنبه،،

③ ابراهيم بن المنذر: دا ابراهيم بن المنذر بن عبدالله بن المنذر بن المغيرة قرشى. اسدى حزامى مدنى دې.ددوى كنيت ابو اسحاق دې.(٣)

دوى دابوضمره انس بن عياض. سفيان بن عيينه. عبدالله بن نافع الصائغ . عبدالله بن وهب مصرى. ابوبكر عبدالحميد بن ابى اويس. عبدالرحمن بن المغيره او محمد بن فليح بن سليمان رحمهم الله وغيره نه روايت د حديث كوى.

ددوى نه روايت كونكو كښې امام بخارى. امام ابن ماجه. احمد بن ابى خيثمه. زهير بن حرب. عبدالله بن عبدالرحمن الدارمى. ابوزرعه عبيدالله بن عبدالكريم رازى. عثمان بن سعيد دارمې. ابوحاتم محمد بن ادريس رازى. او مصعب بن ابراهيم بن حمزه زبيرى رحمهم الله وغيره دى.(٤)

**ددوى په باره كښې دجرح اوتعديل دعالمانورحمهم الله اقوال** امام نسائى رحمه الله فرمائى.((ليس به بأس))(٥) صالح بن محمد جزره رحمه الله فرمائى.،،صدوق،،(٦)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.،،صدوق،،(٧)

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(٨)

صاحب دخلاصة فرمائى.((وثقه إبن معين، والنسائي وأبوحاتم والدارقطني.))(٩)

---

(١)هدى السارى(٣٨٤) الفصل التاسع)_
(٢)هدى السارى(ص.١١و ١٢) الفصل الثانى ونزهة النظر(٣٧) والنكت على كتاب ابن الصلاح (١ج\٢٨٧. ٢٨٨)
(٣)تهذيب الكمال (٢\٢٠٧)
(٤) د شيوخ او تلازمذه دتفصيل دپاره اووري.تهذيب الكمال(٢\٢٠٧. ٢٠٩)_
(٥) تهذيب الكمل (٢\٢٠٩)_
(٦) المصدرالسابق)_
(٧) تهذيب الكمال (٢\٢٠١)-
(٨) تهذيب الكمال (٢\٢٠٩)_
(٩) خلاصة تهذيب الكمال (ص.٢٢)_

امام دار قطنی رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،(١)

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.((أحد الأئمة، وثقه ابن معين، و ابن وضاح، والنسائي،و أبوحاتم، والدارقطني))(٣)

البته زکریا بن یحي ساجی رحمه الله فرمائی.((بلغني أن أحمد بن حنبل كان يتكلم فيه، ويذمه، وقصد إليه ببغداد، ليسلم عليه، فلم يأذن له، وكان قد مال إلى ابن أبي داؤد، قاصداً من المدينة، عنده مناكير))(٤)

خو ابو الفتح ازدی رحمه الله فرمائی.((ابراهيم هذا في عداد أهل الصدق، وإنما حدث بالمناكير الشيوخ الذين روى عنهم فأما هو فهو صدوق،،(٥)

هم دا خبره خطیب بغدادی رحمه الله فرمائیلې ده چه.((أما المناكير فقلما توجد في حديثه، إلا أن تكون عن المجهولين ومن ليس بمشهور عند المحدثين ، ومع هذا فإن يحي بن معين وغيره من الحفاظ كانوا يرضونه ويوثقونه))(٦)

ترکومه پورې چه د امام احمد رحمه الله د کلام تعلق دې.نو دا په مسئله د خلق قرآن کښې ددوی د څه توقف او بیا ابن ابی داؤد سره ددوی دحاضرئ په وجه وو.لکه چه علامه تاج الدین سبکی رحمه الله فرمائی.((قد كان حصل عند الإمام احمد رحمه الله منه شئ لأنه قيل: خلط في مسئلة القرآن، كأنه مجمع في الجواب))(٧)((قلتُ (القائل: السبكي) وأرى ذالك منه تقية وخوفاً، ولكن الإمام أحمد شديد في صلابته، جزاه الله عن الإسلام خيراً، ولو كلف الناس ماكان عليه أحمد لم يسلم إلا القليل))(٨)

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.((وتكلم فيه أحمد من أجل كونه دخل إلى ابن أبي دؤاد))(٩)
خلاصه دا چه ابراهیم بن المنذر ثقه راوی دې.په دوی چه کوم معمولی کلام شوې دې.هغه قابل اعتبار نه دې.والله اعلم.

---

١) تهذيب التهذيب ((١٦٧\١))_
٢) الثقات لإبن حبّان (٧٣\٨)_
٣) هدى السارى(٣٨٨)_
٤) تهذيب الكمال (٢١٠\٢)_
٥) طبقات الشافعية الكبرى(٢٣٢\١)-
٦) تاريخ بغداد(١٨١\٦)-
٧) قوله :مجمح في الجواب (أى لم يبينه أنظر المجمع الوسيط (٨٥٥\٢)_
٨) طبقانل نسافعة الكبرى(٢٣٢\١)_
٩) هدى السارى(ص.٣٨٨)_

ددوى وفات په ۲۳۶ھ كښې شوې دې.(۱) ،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

(۴) **محمد بن فليح:** دا ابوعبدالله محمد بن فليح بن سليمان اسلمي خزاعی دې.(۲) ددوی د پلار فليح بن سليمان حالات هم په دې باب كښې تير شوی دی

دوی د سفيان ثوری، موسی بن عقبه، هشام بن عروه، يونس بن يزيد ايلی او د خپل پلار فليح بن سليمان رحمهم الله وغيره نه علاوه د ډيرو محدثينو نه احاديث روايت كړی دی.

ددوی نه احاديث روايت كونكو كښې ابراهيم بن حمزه زبيری، ابراهيم بن المنذر حزامی، محمد بن الحسن بن زباله مخزومی، محمد بن يعقوب زبيری او هارون بن موسی زهری رحمهم الله وغيره دی.(۳)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.((ما به بأس، وليس بذاك القوی))(۴)

امام دار قطنی رحمه الله فرمائی.((ثقة، وقد روی عنه عبدالله بن وهب مع تقدمه))(۵)

امام ابن حبان رحمه الله دوی لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.(۶)

البته امام يحي بن معين رحمه الله په دوی باندې كلام كړې دې.لكه چه ددوی په پلار فليح باندې كلام كولو كښې فرمائی.((فليح بن سليمان ليس بثقة ولا ابنه))(۷)

او ابو حاتم رحمه الله فرمائی.((كان يحی بن معين يحمل علی محمد بن فليح))(۸)

خو حقيقت دا دې چه محمد بن فليح ډير زيات موثق (با اعتماد) راوی خو نه دې البته ددوی حديثونه قابل اعتماد ضرور دی.هم دا وجه ده.چه د امام يحي بن معين رحمه الله په كلام باندې د علم باوجود ابو حاتم رحمه الله فرمائی.((ما به بأس، وليس بذلك القوی)) دغه شان امام دارقطنی رحمه الله هم د دوی توثيق كړې دې.

حافظ ذهبی رحمه الله په دوی باندې كلام نقل كولو كښې ليكی.((و وثقه بعضهم، وهو أوثق من أبيه))(۹)

---

(۱) الكاشف (۲۲۵\۱) رقم ۲۰۸) وتقريب التهذيب (ص.۹۴) رقم ۲۵۳)-

(۲) تهذيب الكمال (۲۹۹\۲۶)_

(۳) د شيوخ اوتلامذه د تفصيل دپاره اوگوری.تهذيب الكمال (۲۹۹\۲۶، ۳۰۰)_

(۴) تهذيب الكمال (۳۰۱\۲۶) وتهذيب التهذيب (۴۰۷\۹) وميزان الإعتدال(۱۰۱۴)_

(۵) تهذيب التهذيب (۴۰۷\۹)_

(۶) كتاب الثقات (۴۴۰\۷، ۴۴۱)_

(۷) تهذيب الكمال (۳۰۰\۲۶) وتهذيب التهذيب (۴۰۷\۹)_

(۸) المصادر السابقة)_

(۹) ميزان الإعتدال (۱۰۱۴)-

ددې نه علاوه د حافظ ابن حجر رحمه الله د تحقيق مطابق امام بخارى رحمه الله ددوى ټول حديثونه نه دى روايت کړى بلکه د تحرى نه پس ئې منتخب احاديث اخستې دى چه د هغې متابعت موجود دې لکه څنګه چه هغه فرمائى ((وبعضها من هلال عن أنس بن مالك، توبع على أكثرها عنده، وله نسخة أخرى عنده بهذا الإسناد، لكن عن عبدالرحمن بن أبي عمرة، بدل عطاء بن يسار، وقد توبع فيها أيضاً، وهي ثمانية أحاديث))، والله اعلم،[1]

ددوى وفات په ۱۹۷ﻫ کښې شوې دې [2]، رحمه الله تعالى رحمة واسعة_

⑤ **محمد بن فليح بلار فليح بن سليمان:** ددوى حالات ددې باب لاندې تير شوى دى.

⑥ **هلال بن علي:** دا هلال بن على اسامه قرشى عامرى مدنى دې. دوى ته هلال بن ابى ميمونه، هلال بن ابى هلال او هلال بن اسامه هم ونيلې شى. ګويا چه د يو سړى څلور نومونه دى.[3] ،،فتنبه،،

دوى د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه علاوه د عبدالرحمن بن ابى عمره. عطاء بن يسار. ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف او ابو ميمونه مدنى رحمهم الله نه روايت كوى.

او ددوى نه روايت كونكو كښې زياد بن سعد. سعيد بن ابى هلال. عبدالعزيز بن ا لماجشون. فليح بن سليمان. امام مالك بن انس او يحي بن ابى كثير رحمهم الله دى.[4]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.،،شيخ يكتب حديثه،،[5]

امام نسائى رحمه الله فرمائى.،،ليس به بأس،،[6]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[7]

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،[8] مسلمه بن قاسم اندلسى رحمه الله فرمائى.،،ثقة قديم،،[9]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.،،ثقة مشهور،،[10]

---

[1] هدى السارى (٤٤٢)-
[2] تقريب التهذيب (٥٠٢، رقم ٦٢٢٨، والكاشف (٢١١\٢) رقم ٥١١٦)_
[3] تهذيب الكمال (٣٤٣\٣٠)-
[4] تهذيب الكمال (٣٤٤\٩٠)-
[5] تهذيب الكمال (٣٤٤\٣٠) وتهذيب التهذيب (٨٢\١١)_
[6] المصادر السابقة)_
[7] كتاب الثقات (٥٠٥\٥)-
[8] تهذيب التهذيب (٨٢\١١)_
[9] المصدر السابق)-
[10] سير أعلام النبلاء (٥٢٦٥) ميزان الإعتدال(٣١١\٤)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(١)

يعقوب بن سفيان رحمه الله فرمائى.((هلال ثقة حسن الحديث، يروى عن عطاء بن يسار أحاديث حساناً، وحديثه يقام مقام الحجة))(٢)

دهشام بن عبدالملك په آخرى كلونو كښې ددوى وفات اوشو.(٣) او د هشام آخرى كال ١٢٥ھ دې (٤) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

⑥ عطاء بن يسار: دا ابو محمد بن يسار بلالى مدنى دې.د ام المومنين حضرت ميمونه رضي الله عنها مولى دې.ددوى حالات په..كتاب الايمان..كښې د ،،باب كفران العشير وكفر دون كفر،، لاندې تير شوى دى.(٥)

⑧ ابوهريرة رضي الله عنه: د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه تفصيلى حالات په ..كتاب الايمان كښې د ،،باب أمور الإيمان،،لاندې تير شوى دى.(٦)

**قوله** بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَجْلِسٍ يُحَدِّثُ الْقَوْمَ جَاءَهُ أَعْرَابِيٌّ: نبى كريم صلى الله عليه وسلم په يومجلس كښې خلقوسره خبرې كولې.چه يو اعرابى (دكلى اوسيدونكې) راغې.

**دا اعرابى څوک وو؟** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه ددوى دنوم علم اونشو.(٧)

**قوله** فَقَالَ مَتَى السَّاعَةُ فَمَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ سَمِعَ مَا قَالَ فَكَرِهَ مَا قَالَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ لَمْ يَسْمَعْ: دې اعرابى تپوس اوكړو.چه قيامت به كله وى؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم خپله خبره جارى اوساتله. بعضو خلقو اووئيل.چه هغوى د اعرابى خبره واوريدله.خو هغوى دا خبره ناخوښه كړله. بعضو خلقو اووئيل.چه هغوى صلى الله عليه وسلم دسره دده خبره اوريدلې هم نه ده.

مطلب دا دې.چه كله اعرابى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه سوال اوكړو.او هغوى جواب ورنكړو. نو بعضو صحابو رضي الله عنهم اووئيل.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دسره سوال هم نه دې اوريدلې.بعضو اووئيل چه سوال خو نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوريدلې دې.خو سوال ئې خوښ نكړو.ځكه چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم به د قيامت متعلق سوال نه خوښولو په دې وجه نبى كريم صلى الله عليه وسلم جواب ورنكړو.خو روستو ښكاره

---

(١) تقريب التهذيب (٥٧٦) رقم ٧٣٤٤)-
(٢) تعليقات تهذيب الكمال (٣٠\٣٤٤. ٣٤٥) نقلاً عن المعرفة (٢\٤٦٦)-
(٣) تهذيب الكمال (٩٠\٣٤٤)_
(٤) الأعلام للزركشى(٨\٨٦)_
(٥) كشف البارى (٢\٢٠٤)_
(٦) كشف البارى(١\٦٥٩)_
(٧) فتح البارى(١\١٤٣)_

شوه.چه ددې سبب يو دريم امر وو.هغه داچه نبی كريمﷺ خلقو سره په خبرو اترو كښې مصروف وو ګويا مصروفيت د جواب مانع وو.او دا احتمال هم شته.چه دوی د وحی په انتظار كښې جواب كښې تاخير اوكړو.

**د سوال په جواب كښې دتاخير ګنجائش وی اوكه نه وی؟** بيا كه ګنجائش وی.نو څومره حده پورې وی؟ ددې اجمالی بيان د .. ترجمة الباب د مقصد.. لاندې مونږ كړې دې.دلته د خلاصې په طور باندې بيا پوهه شئ.چه د سوال د جواب تاخير او د عدم تاخير تعلق يو څو امورو سره دې

① آيا د سوال تعلق عقيدې سره دې.او كه عقيدې سره متعلق نه دې.

② سوال ضروری دې.اوكه غير ضروری دې.

③ سوال دځه موقت امر په باره كښې دې.او د غير موقت امر په باره كښې دې.

ښكاره ده.كه سوال د عقيدې متعلق وی.او ضروری وی.نو ددې جواب فوراً وركول پكار دی.لكه چه وړاندې د ابو رفاعهؓ واقعه تيره شوې ده.چه نبی كريمﷺ هغوی دپاره خطبه بنده كړله.او هغوی ته ئې جواب وركړې وو.دغه شان بعضو وختونو كښې سوال د يو موقت امر په باره كښې وی.كه دلته په جواب كښې تاخير اوشی.نو دا خطره وی.چه وخت به تير شی.او دجواب نه به بيا هيڅ فائده حاصله نشی.نو هلته هم جواب فوری وركول ضرور دې.

دغه شان د سائل په باره كښې به دا هم كتلې شی.چه مقامی دې.اوكه د بهر نه راغلې دې.كه مقامی دې.نو هغه ته روستو هم جواب وركيدې شی. دغه شان مسئول ته هم كتل پكار دی.چه آيا سوال داسې دې.چه ددې جواب ددې نه سوا بل څوك هم وركولې شی.او كه نشی وركولې؟ كه ددې سوال جواب بل څوك وركولې شی.نو دلته په تاخير كښې هيڅ باك نشته.او كه دده نه علاوه بل څوك ددې جواب نشی وركولې.نو هغه د جواب وركولو مكلف دې. بعضو وختونو كښې سوال فضول وی.بعضو وختونو كښې سوال په عناد باندې مبنی وی.كله د تشويش او انتشار پيدا كولو دپاره سوال كولې شی.په داسې صورتونو كښې پكار دی.چه جواب ورنكړې شی.

دلته هم په دې پوهه شئ.چه ددې اعرابی سوال چونكه داسې وو.چه امر موقت هم نه وو.او نه په دې باندې ځه عمل موقوف وو.په دې وجه نبی كريمﷺ خپل كلام جاری اوساتلو.او دده جواب ئې مؤخر كړو.والله اعلم.

**قوله** حَتّٰی إِذَا قَضٰى حَدِيثَهُ قَالَ أَيْنَ أُرَاهُ السَّائِلُ عَنِ السَّاعَةِ: ترديد چه كله نبی كريمﷺ خپل كلام پوره كړو.نو وې فرمائيل چه چرته دې؟ راوی وائی.زما ګمان دې.چه نبی كريمﷺ اوفرمائيل.چه د قيامت په باره كښې سوال كونكې چرته دې.

**د،،اين اراه السائل،، مطلب** راوی ته دلته كښې د ..اين.. نه پس لفظ ياد نشو.چه نبی كريمﷺ ..السائل....فرمائيلی وو.اوكه نه؟ په دې وجه ئې په مينځ كښې د ..اراه.. په معنی د ..اظن.. اضافه اوكړله.

**دلته شک دكوم راوی د طرفه دې؟** دا راوی كوم ته چه شك شوې دې.محمد بن فليح دې.

خکه چه د محمد بن فليح د واسطې نه بغير د «الحسن بن سفيان وغيره عن عثمان بن أبي شيبة عن يونس بن محمد عن فليح» په طريق سره دا روايت نقل دې.په دې کښې دغه شك نه بغير د ،،أين السائل.....،، الفاظ دى.(١)

**قوله قَالَ هَا أَنَا يَارَسُولَ اللهِ قَالَ فَإِذَا ضُيِّعَتُ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرُ السَّاعَةَ قَالَ كَيْفَ إِضَاعَتُهَا:** دې اعرابى جواب ورکړو چه اې د الله رسوله ﷺ! سائل زه يم.نبى کريم ﷺ اوفرمائيل.کله چه امانت ضائع کړې شى.نو د قيامت انتظار کوه.دې سړى سوال اوکړو چه امانت ضائع کول به په څه طريقه وى؟

**..جواب على اسلوب الحكيم،،او په قران کريم کښې ددې نظائر** د نبى کريم ﷺ دا جواب ..جواب على ءسلوب الحكيم.. دې.مطلب دا دې.چه ده سوال کړې وو.چه قيامت به کله راځى؟ نبى کريم ﷺ جواب ورکړو.چه ددې د تپوس کولو ضرورت نشته.خکه چه ددې علم خو ماته هم نشته.البته که د قيامت د علاماتو په باره کښې ته سوال کوې.نو دا زياته مناسب ده.خکه چه دا ماته معلومه ده.بيا دوى ﷺ علامات بيان کړل.د قيامت راتلو وخت ئې مقرر نکړو.

دا داسې ده.لکه څنګه چه د ﴿يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ﴾په جواب کښې ﴿قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ﴾(٢) فرمائيلى شوى دى.دلته سوال دا وو.چه سپوږمۍ وړوکې کيږى او غټيږى ولې؟ ددې د کميدو او غټيدو علت څه دې؟ په جواب کښې دعلت بيانولو په ځائې حکمت بيان کړې شو.چه ددې نه د وختونو تعين کيږى.

دغه شان په يو بل آيت کښې دى. ﴿يَسْئَلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ﴾ددې په جواب کښې ئې اوفرمائيل. ﴿قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ.....﴾(٣) سوال کونکى ددې تپوس کوو.چه څومره خرچ کړو.په جواب کښې دا اونه وئيلې شو.چه هر څومره خرچ کوې.دا خو ستا په ګنجائش (وس) باندې (منحصر) دې.د تپوس کولو خبره دا ده.چه کوم ځائې خرچ کړې شى.په دې وجه مصارف بيان کړې شو.دغه شان دلته کښې ئې هم د قيامت تعين اونه فرمائيلو.بلکه د قيامت علامات ئې اوښودل.

دلته په حديث باب کښې «إذا ضيعت الأمانة فانتظر الساعة» فرمائيلى دى دغه شان په يوبل حديث کښې راځى.چه نبى کريم ﷺ اوفرمائيل.«إذا كان أمراؤكم خياركم، و أغنياؤكم سمحاءكم، و أموركم شورى بينكم، فظهر الأرض خيرلكم من بطنها، وإذا كان أمراؤكم شراركم و أغنياؤكم بخلاءكم، و

---

(١) فتح البارى (١/١٤٣)-
(٢) البقرة:١٨٩)_
(٣) البقر:٢١٥)-

أمور كم إلى نسائكم فبطن الأرض خير لكم من ظهرها»(۱)
په دې حديث كښې هم نبى كريم ﷺ علامات ښودلى دى.
سائل د امانت په ضائع كولو په مطلب باندې پوهه نشو.په دې وجه هغه اوونيل..كيف إضاعتها؟.. ددې نه معلومه شوه.كه د متعلم (شاګرد) په پوهه كښې خبره رانشى.نو هغه استفسار (دوباره تپوس) كولې شى.او په استفسار باندې معلم ته خفه كيدل پكار نه دى البته كه د سوال مقصد امتحان اخستل وى.په تشويش كښې اچول مقصود وى.نو بيا خفګان په ځائې دې.

**قوله** قَالَ إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ: نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.كله چه كار نا اهل ته اوسپارلې شى.نو د قيامت انتظار كوه.

**د ,,وسد،، لغوى تحقيق** ,,وسد،، په معنى د ..اسند..ده.(۲) سپارل. حواله كول.لكه څنګه د كتاب الرقاق په طريق كښې د ..وسد.. په ځائې د ..اسند.. لفظ راغلې دې.(۳)

بعضې حضرات وائى.چه دا د ..وسادة.. نه ماخوذ دې.او معنى ئې ده. «إذا وضعت وسادة الملك، والأمر والنهى لغير مستحقها فانتظر الساعة» په دې صورت كښې به ..الى.. د ..لام.. په معنى كښې وى.د ..اسند.. معنى ته متضمن كيدو باندې دلالت كولو دپاره ..الى.. استعمال كړې شوې دې.(۴)

**,,اذا ضيعت الامانة،، كښې د ,,امانت،، نه څه مراد دې؟** حاصل دا دې.چه په ,,إذا ضيعت الأمانة،، كښې امانت نه مراد د خيانت ضد نه دې.بلكه ددې نه مراد هغه امانت دې.دكوم ذكر چه په آيت كريمه ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا﴾ (۵) كښې دې.دغه شان دلته كښې هغه امانت مراد دې.دكوم ذكر چه د رسول كريم ﷺ په حديث كښې دې.«إن الأمانة نزلت فى جذر قلوب الرجال....»(۶) ددې امانت اداكول مونږ قيوميت سره تعبير كولې شو.چه هرڅيز د هغې په مقام باندې كيخودې شى.او صحيح انتظام اوكړې شى.او دهر ځيز حق ادا كړې شى.

**د نا اهل نه مراد بې دينه دې** ښكاره ده.چه كله نا اهل ته اوسپارلې شى.نو د قيامت انتظار

---

(۱) سنن الترمذى كتاب الفتن باب (بدون ترجمة رقم ۷۸) رقم الحديث (۲۲۶۶)-
(۲) النهاية فى غريب الحديث والأثر (۱۸۳/۵)_
(۳) صحيح بخارى (۹۶۱/۲) كتاب الرقاق باب رفع الأمانة رقم ۶۴۹۶)_
(۴) النهاية (۱۸۳/۵) وفتح البارى (۱۴۳/۱)_
(۵) الأحزاب: ۷۲)_
(۶) صحيح البخارى (۹۶۱/۲) كتاب الرقاق باب رفع الأمانة رقم ۶۴۹۷) وصحيح مسلم كتاب الإيمان باب رفع الأمانة والإيمان من بعض القلوب رقم ۱۴۳)_

به کولې شي ځکه چه نا اهل سړې به د خپلې لاعلمۍ په وجه ذمه داري په پوره طريقه نه ادا کوی.کوم چه د کوم ځيز محل دې.هغه به دهغې په محل کښې نه ايږدی. نتيجه به دا وی. چه ديني بدنظمي به خوريږی.او آخر به داسې اوشي چه بې ديني به عام شی.او په بې ديني بانديې به قيامت قائميږی. ددې نه معلومه شوه.چه اهليت په عالمانو کښې وی.په جاهلانو (بې علمو) کښې حقيقي اهليت نه وی.

حضرت ابو اميه جمحي رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل دې.((إن من أشراط الساعة ثلاثاً إحداهن أن يلتمس العلم عند الأصاغر))(۱)ددې نه په عمر کښې يا ذات کښې کم تر خلق مراد نه دی بلکه ددې نه بې دينه مراد دی.لکه چه حضرت عبدالله بن المبارک رحمه الله فرمائي.،،الأصاغر أهل البدع.،،(۲)

دغه شان حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي.((لا يزال الناس صالحين متماسكين ما أتاهم العلم من أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم ومن أكابرهم، فإذا أتاهم من أصاغرهم هلكوا))(۳)معلومه شوه چه د نا اهله يعني د بې علمه او بې دينه خلقو په لاس کښې چه کله اختيارات راوړسيږی.نو د قيامت انتظار کوئ.

**د حديث شريف كتاب العلم سره مناسبت** زمونږ د تيرشوی تقرير نه د حديث باب د واقعې او ترجمة الباب په مينځ کښې.مناسبت واضح شو.چه که عالم او مسئول په څه مشغله کښې مصروف وی.نو خبره دې مکمل کړی.او د سائل جواب دې ورکړې شي.

او د حديث شريف الفاظ ((إذا وسد الأمر إلى غير أهله فانتظر الساعة))نه ددې كتاب العلم سره مناسبت واضح شو.چه که معامله بې علمه خلقو ته اوسپارلې شی.نو دا به د قيامت د نيزدې والي علامت وی.والله سبحانه أعلم.

## ۳-((بَاب مَنْ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْعِلْمِ))

**د ترجمة الباب مقصد** حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن رشد رحمه الله نه نقل کړی دی.چه په اصل کښې امام بخاری رحمه الله ددې کتاب تدوين په هر اعتبار سره مکمل کول غواړی.نو د علم او آداب علم امور جامعيت سره بيانوی.او په دې سلسله کښې معمولي معمولي خبرو بانديې هم بابونه قائموی.(۴)

حضرت شاه ولي الله رحمه الله فرمائي.چه په رواياتو کښې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم صفت راغلې دې.

---

۱) أخرجه عبدالله بن المبارک فی کتاب الزهد الرقائق ۲۰رقم ۶۱ والطبرانی فی الکبیر انظرمجمع الزوائد (۱۳۵/۱)کتاب العلم باب أخذکل علم عن أهله والجامع الصغیرمع شرحه فیض القدیر(۵۳۳/۲) رقم ۲۴۷۵)

۲) أنظرتعلیقات کتاب االزهد لعبدالله بن المبارک (ص.۲۱) وقال الهیثمی رحمه الله قال موسی یقلل إن الأصاغرأهل البدع انظرمجمع الزوائد(۱۳۵)_

۳) روه الطبرانی فی الکبیروالأوسط ورجاله موثقون قاله الهیثمی فی مجمع الزوائد(۱۳۵/۱)_

۴) فتح الباری( ۱۴۳/۱، ۱۴۴)_

”ليس بصخاب“،([1]) دلته امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب نه دا بيانول غواړی.چه ددې نه مراد په لهو ولعب کښې شور شغب کول دی. علم کښې شور کول په دې کښې داخل نه دی.([2])
حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی.چه آواز پورته کول يا چغې وهل چونکه په عرف کښې ناخوښه ( بد ) گنړلې کيږی.او په شريعت کښې هم ددې نه نهی وارد شوې ده.په قرآن کريم کښې چه حضرت لقمان خپلو ځوی ته کوم نصيحت کړې وو.په هغې کښې ذکردی. ﴿وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ.....﴾([3]) په دې وجه کيدې شی.چه چاته دلته په باب د علم کښې هم شبه وی. چه آيا رفع د صوت په علم کښې جائز ده.اوکه نه؟ نو امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب په ذريعه اوښودل.چه دا ضرورتاً جائز دې.([4])
حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائی.چه ..جهر مفرط( د حد نه زيات آواز) نه د نبی کريم ﷺ دشان مناسب دې.نه د علم دين مناسب دې.خو د حديث باب نه معلومه شوه.چه د ضرورت په وخت رفع د صوت مباح بلکه مستحسن ده. لبته په سبب د قلت مبالات(بې پرواهی) يا په وجه د تجبر او تکبر مذموم دې.([5])
حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی.چه ښکاره دا ده.چه امام بخاری رحمه الله د معلم اداب ښودل غواړی.چه کله ضروت راپيښ شی.نو آواز پورته کول پکار دی.چه ټولو ني واوری.([6])
دا احتمال هم شته.چه د آواز ښکته ساتلو مدح په رواياتو کښې وارد ده.دغه شان په تيز آواز باندې نکير ( منع) هم راغلې دې.په دې وجه امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب نه د بيانول غواړی.چه د ضرورت په وخت آواز پورته کول مستحب دی.([7])

---

[1]) أخرجه البخاری فی صحيحه (٢٨٥\١) فی کتاب البيوع باب کراهية السخب فی السوق رقم ٢١٢٥ ليس بفظ ولاغليظ ولاسخاب فی الأسواق .. وانظرأيضاً کتاب التفسيرسورة الفتح باب ﴿إنا أرسلناک شاهداً ومبشراً ونذيراً﴾ رقم ٤٨٣٨ وانظرالجامع الترمذی کتاب البر والصلة باب ما جآء فی خلق النبی ﷺ (رقم ٢٠١٦) والشمائل المحمدية له (٢٥٤. بشرح المواهب الدينة للبيجوری) وسنن الدارمی (١٦\١. ١٧) المقدمة باب صفة النبی ﷺ فی الکتب قبل مبعثه)_
[2]) شرح تراجم أبواب البخاری ١٥_
[3]) سورة لقمان:١٩)_
[4]) لامع الدراری (٨٧\٢)_
[5]) الأبواب والتراجم (٤٣)_
[6]) الأبواب والتراجم لصحيح البخاری (٤٠)_
[7]) المصدرالسابق)_

## حدیث باب

[٦٠] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ عَارِمُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو (١) قَالَ تَخَلَّفَ عَنَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفْرَةٍ سَافَرْنَاهَا فَأَدْرَكَنَا وَقَدْ أَرْهَقَتْنَا الصَّلَاةُ وَنَحْنُ نَتَوَضَّأُ فَجَعَلْنَا نَمْسَحُ عَلَى أَرْجُلِنَا فَنَادَى بِأَعْلَى صَوْتِهِ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا))

## رجال الحدیث

① ابوالنعمان عارم بن الفضل: داابو النعمان محمد بن الفضل السدوسی دی...عارم.. ددوی لقب دې. دوی تفصیلی حالات. د کتاب الایمان د ،،باب قول النبی ﷺ: ألدین النصیحة....،، لاندې تیر شوی دی.(٢)

② ابوعوانه: دا ابو عوانه وضاح بن عبدالله یشکری رحمه الله دې.ددوی مختصر تذکره د ..بدءالوحی دریم حدیث لاندې تیره شوې ده.(٣)

③ ابوبشر: دا ابو بشر جعفر بن ایاس یشکری واسطی بصری رحمه الله دې. د دوی د پلار ایاس کنیت ابو وحشیه دې.(٤)

دوی په صحابو کښې د حضرت عباد بن شرحبیل رضی الله عنه نه سماع کړې ده. د دوی نه علاوه د سعید بن جبیر، طلحه بن نافع، طلق بن حبیب، عامر شعبی، عبدالرحمن بن ابی بکره، عطاء، عکرمه، مجاهد، حبیب بن سالم، میمون بن مهران، یوسف بن ماهك او ابو نضره رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

ددوی نه روایت کونکو کښې ایوب سختیانی، سلیمان الاعمش (وهما من أقرانه) خالد بن عبدالله واسطی، خلف بن خلیفه، هشیم بن بشیر او ابو عوانه رحمهم الله وغیره دی.(٥)

---

(١) قوله:عن عبدالله بن عمرو الحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی کتاب العلم باب من أعاد الحدیث ثلاثاً لیفهم عنه رقم ٩٦وفی کتاب الوضوء باب غسل الرجلین ولایمسح علی القدمین رقم ١٦٣ ومسلم فی صحیحه فی کتاب الطهارة باب وجوب غسل الرجلین بکمالهما رقم ٥٨٠، ٥٨٢) والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة باب إیجاب غسل الرجلین رقم ١١١ وأبوداود فی سننه فی کتاب سننه فی کتاب الصلاة والطهارة باب ویل للأعقاب من النار رقم ٧١٢)_

(٢) کشف الباری (٤٣٤\١)_

(٣) کشف الباری (٤٣٤\١)_

(٤) تهذیب الکمال (٥\٥) وسیر أعلام النبلاء (٤٦٥\٥)_

(٥) دشیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال(٦٠٥\٥)_

امام يحي بن معين، ابو زرعه، ابو حاتم او احمد بن عبدالله عجلى رحمهم الله فرمائى.،،ثقة،،(١)
امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى.،،ثقة كثيرالحديث،،(٢)
ابوبكر احمد بن هارون برديجى رحمه الله فرمائى.((كان ثقة، وهو من أثبت الناس في سعيد بن جبير))(٣)
حافظ ابن عدى رحمه الله فرمائى.((وجعفر بن إياس، هو معروف بجعفر بن أبي وحشيه، حدث عنه شعبة وهشيم وغيرهما بأحاديث مشاهير وغرائب، وأرجو أنه لا بأس به))(٤)
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.((أحد الأئمة والحفاظ))(٥) دغه شان دوى فرمائى.((أحد الثقات، أورده إبن عدي في،،كامله،،فأساء،،(٦)
امام احمد رحمه الله فرمائى.((أبو بشر أحب إلي من المنهال بن عمرو))(٧)
د امام احمد رحمه الله خوئي عبدالله بن احمد بن حنبل فرمائى.((أحب إليك من المنهال؟ قال: نعم، شديدا أبو بشر أوثق))(٨)
ياد ساتئ چه منهال بن عمرو د محدثينو په نيز ثقه راوى دى.د بخارى او سنن اربعه د رجالو څخه دى.(٩) البته امام شعبه رحمه الله به ددوى د هغه احاديثو تضعيف كوو.كوم چه دوى د حبيب بن سالم او مجاهد بن جبير نه روايت كوى.امام شعبه رحمه الله فرمائى چه دوى ته حبيب بن سالم او مجاهد نه سماع حاصل نه ده.(١٠)
خو دا تضعيف دلته هيڅ مضر نه دى.اول خو په دې وجه چه د امام شعبه تضعيف ددوى صرف هغه حديثونو سره متعلق دى.كوم چه دوى د مجاهد او حبيب بن سالم نه كوى.پخپله د ابو بشر د ذات سره ددې هيڅ تعلق نشته.(١١)
دويمه داچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((احتج به الجماعة، لكن لم يخرج له الشيخان من حديثه عن

---

(١) تهذيب الكمال (٧\٥) وتهذيب التهذيب (٨٣\٢)_
(٢) طبقات ابن سعد(٢٥٣\٧)_
(٣) تهذيب التهذيب (٨٤\٢)_
(٤) الكامل (١٥٢\٢)_
(٥) سير أعلام النبلاء (٤٦٥\٥)_
(٦) ميزان الإعتدال (٤٠٢\١)_
(٧) تهذيب الكمال(٧\٥)_
(٨) المصدر السابق)_
(٩) الكاشف للذهبى مع تعليقات (٢٩٨\٢) رقم ٥٦٥٣)_
(١٠) تهذيب الكمال(٧\٥، ٨ ) وسير أعلام النبلاء (٤٦٦\٥) وميزان الإعتدلال (٤٠٢\١) وهدى السارى (٣٩٥)_
(١١) أنظر المصادر المذكورة فى التعليقة السابقة وانظر أيضاً التعليقات على الكاشف (٢٩٣\١) رقم ٧٨١)_

مجاهد ولا عن حبيب بن سالم)(١) نو د صحيحينو په حديثونو كښې هيڅ شبه باقى نه پاتې كيږى والله اعلم

په ١٢٥ﻫ كښې ددوى وفات اوشو.(٢) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

⑥ **يوسف بن ماهك:** دا يوسف بن ماهك(بفتح الهاء وكسرها)(٣) بن بُهزاد (بكسر الهاء وضمها وبالزاى المعجمة)(٤) فارسى مكى رحمه الله دي.(٥)

دوى د خپل پلار ماهك بن بهزاد او د خپلې مور مُسيكه نه علاوه د حضرت حكيم بن حزام. حضرت عبدالله بن عمر. حضرت عبدالله بن عمرو. حضرت عبدالله بن عباس. حضرت معاويه. حضرت ابوهريره او عائشه رضي الله عنهم (وغيره نه روايت كوى او دحضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه مرسلاً روايت كوى.

ددوى نه په روايت كونكو كښې ايوب سختيانى. ابو بشر جعفر بن اياس. حميد الطويل. عاصم احول. عبدالملك بن جريج او عطاء بن ابى رباح رحمهم الله وغيره حضرات دى.(٦)

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(٧)

امام نسائى رحمه الله هم دوى لره .. ثقه.. ګرځولي دي.(٨)

امام ابن خراش رحمه الله فرمائى.،،ثقة عدل،،(٩)

امام بن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړي دي.(١٠)

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى.،،وكان ثقة قليل الحديث،،(١١)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(١٢)

---

(١) هدى السارى (ص.٣٩٥)_
(٢) ميزان الإعتدال(١١\٤٠٣) وغيره.
(٣) فتح البارى (١١\١٤٣)_
(٤) المغنى ١٢_
(٥) تهذيب الكمال (٣٢\٤٥١)_
(٦) د شيوخ اوتلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (٣٢\٤٥٣)_
(٧) تاريخ عثمان بن سعيد الدارى (٢٢٦) رقم ٨٦٤ وتهذيب الكمال (٣٢\٤٥٣)_
(٨) تهذيب الكمال (٣٢\٤٥٣)-
(٩) المصدر السابق)_
(١٠) الثقات لابن حبان (ت٥\٥٤٩)_
(١١) طبقات لابن سعد (٥\٤٧١)_
(١٢) الكشاف (١٢\٤٠٠)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ..ثقة[1] ددوی په سن وفات کښې مختلف اقوال دی.چه د ۱۰۳ه. ۱۰۲ه. ۱۱۰ه. ۱۱۳ه. او ۱۱۲ه اقوال ملاویږی.[2] ،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

**د ،،ماهک،، تحقیق** ..ماهك.. د ..هاء.. په فتحې سره دې.په دې باندې کسره هم ونیلې شوې ده[3] دا فارسی لفظ ..ماه.. په معنی د ..سپوږمۍ.. دې.چه ددې په آخر کښې کاف دتصغیر دې.[4]

**دا لفظ منصرف دې که غیر منصرف؟** دا لفظ د بخاری اکثرو شارحینو غیر منصرف ګرځولې دې او اصیلی رحمه الله منصرف ونیلې دې.[5] د غیر منصرف ونیلو وجه خو ښکاره ده.چه په دې کښې د غیرمنصرف کیدو دوه سببونه عجمه او علمیت موجود دی.[6]

**د منصرف ونیلو څه وجه ده؟** علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه د ..ماه.. معنی چونکه ..سپوږمۍ.. ده.نو د ..ماهك.. معنی ..سپوږمۍ ګوټې.. شوه.دغه شان په دې کښې د وصف معنی غالب شوه.ګویا د عجمه غیر منصرف جوړیدو دپاره چه کوم د علمیت شرط وو.هغه مفقود شو.ځکه چه په وصف او علمیت کښې تضاد دې.او دلته د وصف معنی مونږه غالب ګرځولې ده.نو علمیت به نه وی.[7]

حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا خبره ذکرکړې ده.[8] علامه عینی رحمه الله ددې په تشریح کښې فرمائی.چه د تصغیر تعلق چونکه صفاتو سره وی.په دې وجه به ..ماهك.. کښې د صفت معنی غالب وی.او په صفت او علمیت کښې د تضاد په وجه اجتماع نه کیږی.چونکه په دې صورت کښې صرف یو سبب باقی پاتې کیږی.په دې وجه به دا منصرف ونیلې کیږی.[9]

علامه عینی رحمه الله فرمائی.[10]

① که دا لفظ په کسرهٔ د هاء سره اوونیلې شی.نو دا لفظ به خالص د عربی لفظ وی.په دې صورت کښې به منصرف ونیلې کیږی.ځکه چه دابه د «مهکتُ الشئ(ف)أمهکُه مَهکاً»نه ماخوذ وی چه ددې معنی ده.دیوڅیز په میده کولو کښې او اغګلو کښې دمبالغې نه کاراخستل.[11]

---

[1] تقریب التهذیب (ص.۶۱۱) رقم ۷۸۷۸)-
[2] تهذیب التهذیب (۱۱\۴۲۱، ۴۲۲)_
[3] فتح الباری(۱\۱٤۳)_
[4] عمدة القاری(۲\۸)_
[5] فتح الباری(۱\۱٤۳) وعمدة القاری(۲\۸)_
[6] المصدرالسابق)_
[7] شرح الکرمانی(۲\۷)_
[8] فتح الباری(۱\۱٤۳)_
[9] فتح الباری(۱\۱٤۳)_
[10] عمدة القاری(۲\۸)_
[11] القاموس المحیط(۸۵۹)_

③ دغه شان د ،،مهكتُ الشئ،، معنى د چقنړا كولو (او ميده كولو) هم راځي.(١)

④ ممكن ده چه دا لفظ د ،، مهكتُ الشباب،، نه ماخوذ وي.چه ددې معنى د ځوانۍ ترو تازګۍ او رونق ده.(٢)

⑤ علامه عينى رحمه الله فرمائي كه دا لفظ ..بفتح الهاء.. اووئيلې شي نو بيا هم ممكن ده چه عربى لفظ وي په دې طريقه چه دا د ..مماهكة.. (٣) د فعل ماضى ..ماهك.. نه علم منقول او ګرځولې شي.په دې صورت كښې به د علميت او وزن فعل په وجه غيرمنصرف وئيلې شي.(٤)

بيا اګرچه اكثرو حضراتو ..ماهك.. ددوى د پلار نوم ګرځولې دې.خو امام دارقطنى رحمه الله ..ماهك.. ددوى د مور نوم ګرځولې دې.په دې صورت كښې خو دعلميت او تانيث په وجه غير منصرف ګرځولې كيدې شي.(٥) والله اعلم.

⑤ **عبدالله بن عمرو:** دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما دى.ددوى حالات د كتاب الايمان د ،،**باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده**،، لاندې تير شوى دى.(٦)

**قوله: قَالَ تَخَلَّفَ عَنَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفْرَةٍ سَافَرْنَاهَا:** حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما فرمائي.چه په يو سفر كښې چه مونږ وو.نبى كريم ﷺ زمونږ نه روستو پاتې شو.

**دا د كوم ځائې سفر وو؟** د صحيح مسلم په يو روايت كښې د«**رجعنا مع رسول الله ﷺ من مكة إلى المدينة....**»(٧) الفاظ دى.ددې نه معلومه شوه.چه دا سفر د مكې مكرمې نه د مدينې منورې په طرف شوې وو.

① داسفريا خودحجة الوداع سفر وو.ځكه چه حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما يقينى طور باندې په دې سفر كښې نبى كريم ﷺ سره وو.

② يا دا د غزوة الفتح سفر وو.اګرچه د غزوة الفتح په موقعه باندې د نبى كريم ﷺ واپسى دمكې مكرمې نه نه وه شوې.بلكه د ..جعرانه.. نه شوې وه.خو وئيلې شي.چه نبى كريم ﷺ

---

(١) المصدر السابق)-
(٢) المماهكة وهو الجهد فى الجماع من الزوجين كذا فى العمدة (٨١٢)_
(٣) عمدة القارى(٨١٢) تاج العروس (١٨٥١٧)_
(٤) عمدة القارى(٨١٢)_
(٥) كشف البارى(٦٧٩١١)_
(٦) صحيح مسلم (١٢٥١١) كتاب الطهارة باب وجوب غسل الرجلين بكمالهما)_
(٧) صحيح مسلم (١٢٥١١) كتاب الطهارة باب وجوب غسل الرجلين بكمالهما)_

چونکه د مدينې منورې نه د مکې مکرمې دپاره روان شوې وو. او هم ددې سفر نه واپسى وه په دې وجه اګرچه په حقيقت کښې د جعرانه نه واپسى شوې ده. خو په دې باندې د «رجوع من مکة إلى المدينة» اطلاق کولې شی.

② دا هم ممکن ده چه دا د عمرة القضاء سفر وى. ځکه چه حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه هم په دې ورځو کښې اسلام راوړلې وو. (١) والله اعلم.

**قوله فَأَدْرَكَنَا وَقَدْ أَرْهَقَتْنَا الصَّلَاةُ وَنَحْنُ نَتَوَضَّأُ:** نو نبى کريم ﷺ مونږ ته راورسيدو. په داسې حال کښې چه مونږ مونځ رالاندې کړې وو. او مونږ (په جلتى جلتى) اودسونه کول.

**د «أرهقنا الصّلاة» لغوي تحقيق:** «رَهِقَه يَرهَقُه رهَقاً: غشيه، ولَحِقه ودَنا منه» (٢)، «وحمله ما لا يطيقه» (٣) دلته به د «أرهقنا الصّلاة» معنى وى «أعجلتنا الصلاة» (٤) «حتى كادت أن تغشينا وتُلحِقنا بصلاة أخرى بعدها»

بيا دا لفظ په دريو طريقو ونيلې شوې دې:

① يو هم دغه شان دې «أرهَقَتْنا الصّلاةُ» يعنى «ارهقت» د ماضى واحد مونث غائب صيغه ده. او «الصّلاة» مرفوع دې. چه هغه ددې فاعل دې.

② دويم روايت «أرهَقَنا الصّلاة» دې. په دې صورت کښې هم «الصلاة» د فاعل کيدو په وجه مرفوع دې. البته «أرهق» د ماضى واحد مذکر غائب صيغه ده. چونکه «الصّلاة» مونث حقيقى نه دې. په دې وجه ددې دپاره د فعل مذکر استعمالولو هيڅ باك نشته.

③ دريم روايت «أرهَقْنا الصّلاةَ» دې. يعنى «أرهقْنا» د فعل ماضى جمع متکلم صيغه ده. نو قاف ساکن دې. او «الصلاة» د مفعول کيدو په وجه منصوب دې. په دې صورت کښې به معنى دا وى «أخرناها وتهاحتى كِدنا أن نغشيها ونُلحقها بالصّلاة التى بعدها» (٥)

بيا ددې مونځ نه د مازيګر مونځ مراد دې. لکه څنګه چه په بعضو رواياتو کښې ددې صراحت موجود دې. (٦)

---

(١) انظر فتح البارى(٢٦٥\١) كتاب الوضوء باب غسل الرجلين .ولا يمسح على القدمين)_

(٢) القاموس المحيط(٨٠٠)-٢ ..أرهقه: أغشاه () النهاية(٢٨٣\٢)_

(٣) انظر القاموس (٨٠٠)_

(٤) عمدة القارى(٨\٢)_

(٥) فتح البارى(٢٦٥\١) كتاب الوضوء باب غسل الرجلين ولا يمسح على الخفين وعمدة القارى (٨\٢) والنهاية (٢٨٣\٢)_

(٦) كما فى طريق مسدد عن أبى عوانة عند البخارى فى كتاب العلم باب من أعاد الحديث ثلاثاً ليفهم عنه رقم ٩٦ وفى طريق موسى عن أبى عوانة عنده أيضاً فى كتاب الوضوء باب غسل الرجلين ولا يمسح على الخفين رقم ١٦٣)

**قوله فَجَعَلْنَا نَمْسَحُ عَلَى أَرْجُلِنَا:** نو مونږ (جلتي جلتي سره اودس كولو) پخپلو خپو باندې مو اوبه موګلې.

**د مسح نه څه مراد دې؟** په ,,مسح،، كښې د دوو معانيو احتمال دې

① يو دا چه مسح پخپل ظاهر باندې محمول ده يعنى په خپو باندې لوند لاس راښكل مراد دى. ددې احتمال مراد اخستلو په صورت كښې به دا ونيلې كيږى چه په يوه زمانه كښې د خپو وينځلو په ځاې د خپو مسح مشروع وه. روستو د وينځلو حكم راغې او د مسح حكم منسوخ شو لكه څنګه چه امام طحاوى رحمه الله دا رائې ښكاره كړې ده.(١) خو دلته كښې دا ظاهرى معنى مراد نه ده.

② دويمه دا چه د ,,مسح،، نه غسل خفيف مراد دې او مطلب دا دې چه د وخت د تنګئ او په اودس كښې د جلتئ په وجه، او په مونځ كښې د تاخير د خطرې په سبب مونږ چه څنګه وينځل هغه معمولى وو. ګويا چه د وينځلو په ځاې مسح كيدله. لكه چه علامه عينى رحمه الله د قاضى عياض رحمه الله په حوالې سره نقل كړې دى. ((معناه نغسل كما هو المراد فى الآية....))(٢)

دغه شان علامه عينى رحمه الله د امام طحاوى رحمه الله د ,,نسخ،، په رائې باندې كلام كړې دې او فرمائيلى ئې دى. ((وفيه نظر، لأن قوله: ،،نمسح على أرجلنا،، يحتمل أن يكون معناه غسلاً خفيفاً مبقعاً(٣) حتى يرى كأنه مسح....))(٤)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دلته د ,,مسح،، نه د ,,غسل،، مراد كيدو يوه قرينه دا هم ده چه كه وړاندې په خپو باندې مسح كول فرض وو او وينځل فرض نه وو نو په ((ويل للأعقاب من النار)) فرمائيلو سره ئې د وعيد ذكر ولې فرمائيلو. د وعيد نه بغير به ئې صرف دا ارشاد فرمائيلې وې چه بيا دپاره وينځل كوئ. ددې نه معلومه شوه چه د شروع نه غسل رجلين (دخپو وينځل) مشروع دى. نو دلته به د ,,مسح،، نه ,,غسل،، مراد اخستلې كيږى.(٥) والله اعلم.

---

(١) أنظر شرح معانى الآثار (٣٥/١) كتاب الطهارة باب فرض الرجلين فى الوضوء حيث قال الطحاوى رحمه الله فذكر عبدالله بن عمرو أنهم كانوا يمسحون حتى أمرهم رسول الله ﷺ بإسباغ لاوضوء وخوفهم فقال ويل للأعقاب من النار فدل ذلك أن حكم المسح الذى كانوا يفعلونه قد نسخه ما تأخر عنه مما ذكرنا)_

(٢) عمدة القاى (٩/٢)_

(٣) بقعة: جعله ذا بُقع والبقعة القطعة من الأرض على غير هيئة التى إلى جنبها ومعنى قوله: غسلا خفيفاً مبقعاً غسلا خفيفا بحيث إنتضح الماء على رجله فابتل موضع منها دون موضع انظر القاموس المحيط (٦٣٤)_

(٤) عمدة القارى (٩/٢) _

(٥) عمدة القارى (٩/٢، ١٠)_

**قوله** فَنَادَىٰ بِأَعْلَىٰ صَوْتِهِ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ أَوْثَلَاثًا: نبی کریم ﷺ په اوچت آواز دوه یا درې ځله اوفرمائیل ..پوندو دپاره د اور د عذاب خرابی ده..

**اثبات د ترجمې** د ..فنادی بأعلی صوته.. جملې نه د امام بخاری رحمه الله مدعا ثابتیږی چه علم دپاره اوچت آواز کول نه صرف جائز بلکه د ضرورت په وخت مستحسن دې.

**د نبی کریم ﷺ انداز بیان** نبی کریم ﷺ چه به کله وعظ او نصیحت کولو.نو د نبی کریم ﷺ آواز به پورته کیدو.

① حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی.((کان رسول الله ﷺ إذا خطب احمرت عیناه وعلا صوته واشتدّ غضبه...))(١)

② دغه شان د حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه په روایت کښې دی.((سمعتُ رسول الله ﷺ یخطب، یقول: أنذرتکم النار، أنذرتکم النار، أنذرتکم النّار، حتی لو أن رجلاً کان بالسّوق لسمعه من مقامی هذا....))(٢)

③ دغه شان په یو بل روایت کښې دی.((...حتی لوکان رجل فی أقصی السّوق سمعه و سمع أهل السّوق صوته وهوعلی المنبر))(٣)

**قوله** وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ:

**د ..ویل..او ..عقب.. تحقیق او مراد** ..ویل..د عذاب او هلاکت او خسران او بربادئ په معنی کښې راځی. دغه شان په بعضو روایاتو کښې راځی ..ویل وادی جهنم......(٤)

په بعضو روایاتو کښې راځی.((ویل وادی جهنم یسیل منه صدید أهل النّار))(٥)

..اعقاب.. د عقب جمع ده.پوندو ته وائی.دلته ..اصحاب الاعقاب.. (پوندو والا) مراد دی او سړې چونکه پخپلو پوندو باندې اودریږی.نو کله چه خپې په جهنم کښې وی.نو پخپله به هم په جهنم کښې وی.د ..اعقاب.. د تخصیص یوه وجه دا هم کیدې شی.چه دا په اوبو باندې لوندول پکار وو.خو دا لوندې نشوې.نو چونکه د الله تعالی فرض په دې کښې پاتې شو. نو هم دا حصه به په عذاب کښې وی.والله اعلم.

**خلاصه** د پوره خبرې خلاصه دا شوه.چه کله د مازیګر د مونځ وخت تنګ شو.نو حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم په جلتئ جلتئ سره اودسونه کول په دې طریقه اودس کولو کښې د خپو څه حصه خاص طور باندې د پوندو حصه د اوچ پاتې کیدو زیات امکان وو په دې وجه نبی کریم ﷺ په اوچت آواز سره دوه درې ځله خبردارې ورکړو او وې فرمائیل.چه د خپو حکم وینځل دی.چه دا اسباغ ( اوبو اچولو) سره کول پکار دی صرف مسح کولو والا وینځل

---

(١) صحیح مسلم (٢٨٤\١١) کتاب الجمعة)_
(٢) مسند أحمد (٢٧٢\١٤) أحادیث النعمان بن بشیر رحمهما الله)_
(٣) المصدر السابق)_ [بقیه حاشیه په راروان صفحه...

كافي نه دى ممكن ده چه په دې طريقه څه حصه اوچه پاتې شى په دې وجه نې دوه درې خله ((ويل للأعقاب من النار)) اوفرمائيل چه تول نې واورى او پوهه شى

**تنبيه**ددې نه معلومه شوه چه طريقه د خپو غسل (وينځل) دى مسح كول نه دى حالانكه روافض د خپو وظيفه مسح گرځوى تفصيلى بحث به انشاءالله روستو په ..كتاب الوضوء.. كښې راځى والله اعلم بالصواب

## ۴-(( بَابُ قَوْلِ الْمُحَدِّثِ حَدَّثَنَا وَأَخْبَرَنَا وَأَنْبَأَنَا ))

((وَقَالَ لَنَا الْحُمَيْدِيُّ كَانَ عِنْدَ ابْنِ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا وَأَخْبَرَنَا وَأَنْبَأَنَا وَسَمِعْتُ وَاحِدًا وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ وَقَالَ شَقِيقٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَةً وَقَالَ حُذَيْفَةُ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَيْنِ وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرْوِي عَنْ رَبِّهِ وَقَالَ أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرْوِيهِ عَنْ رَبِّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيهِ عَنْ رَبِّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ ))

**وړاندې باب سره مناسبت** د مذكوره باب ماقبل سره مناسبت دا دې چه په تيرشوى باب كښې د ,,رفع الصوت بالعلم،، ذكر وو چه حاضرين ئې ياد كړى او نورو ته ئې اورسوى او نورو ته رسولو دپاره. چونكه په دې الفاظو كښې به دځه ضرورت راپيښيږى او ددې الفاظو د لغوى او اصطلاحى معانيو بيانولو حاجت وى په دې وجه نې ,,باب قول المحدث حدثنا، او اخبرنا و انبأنا،، منعقد كړې دې.

**د ترجمة الباب مقصود** ① علامه ابن رشيد رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دې ترجمې سره دې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چه دوى په خپل كتاب كښې هغه حديثونه نقل كړى دى كوم چه مسند دى او د نبى كريم ﷺ نه منقول دى خكه چه حديث مسند په ,,حدثنا،، او ,,اخبرنا،، سره نقل كولې شى.

② بومقصد دا هم رخولې شى چه محدثينو د روايت نقل كولو په سلسله كښې كوم مختلف الفاظ مخصوص ساتلې دى نو آيا دا ددوى د دماغو اختراع ده او كه په دې سلسله كښې پيغمبر ﷺ او ددوى د اصحابو نه هم څه ثابت دى او چونكه دا معلومه شوې ده چه اسناد په دين كښې داخل دى په دې وجه اوس دا تلاش ضرورى دې چه كومې طريقې

---

بقيه حاشيه د تيرمخ...[۱] الجامع للترمذى كتاب التفسير باب ومن سورة الأنبياء رقم ۳۱۶۴ والمسند الأحمد (۷۴۱۳) والمستدرك للحاكم (۵۹۶۱۴) كتاب الأهوال وصححه الحاكم وأقره الذهبى رحمه الله)۔

[۲] أخرجه السيوطى فى الدر المنثور (۸۲۱۱) و(۳۰۳۱۶) وفيه روايات كثيرة فراجعه إن شئت)۔

محدثينو عالمانو اختيار كړی دی.ددې هم څه اصل شته اوکه نشته.که ددې اصل وی.يعنی پيغمبرﷺ يا ددوی اصحابوﷺ ددې الفاظو استعمال کړې دې.نو دا خبره به مستند وی.ځکه چه دين به هم د پيغمبرﷺ وی.او د نقل کولو طريقه به هم ددوی نه ثابته وی.او په دې کښې به د هيڅ قسمه شبهې ګنجائش باقی پاتې نشی.

ددې تقرير په صورت کښې به د ترجمة الباب ،،قول المحدث حدثنا أو أخبرنا و أنبأنا،، مطلب دا وی چه صرف هم ددې درې الفاظو په باره کښې تفتيش او تحقيق مقصود نه دې.بلکه ددې نه علاوه نور هم چه څومره طريقې د روايت نقل کولو دپاره استعمالولې شی.هغه به ټولې مراد کښې داخل وی.په دې تقدير باندې به «قال لنا الحميدی: كان عند ابن عيينه حدثنا و أخبرنا وسمعتُ واحداً» دا جمله استطرادی وی.په مقصود کښې به داخل نه وی.

④ د ترجمة الباب يو مقصد دا هم کيدې شی.چه د محدثينو عالمانو په نيز دلته د روايت نقل کولو په سلسله کښې مختلف الفاظ استعماليږی.ددې حيثيت او وزن څه دې؟ يعنی دا الفاظ يو برابر دی.او که په دې کښې د قوت او ضعف فرق دې؟ په دې صورت کښې به د ،،قال لنا الحميدی.....،، جمله استطرادی نه وی.بلکه ددې مطلب به دا وی.چه په دې الفاظو کښې خپل مينځ کښې د مراتبو فرق نشته.دا ټول برابر دی.محدث ته اختيار دې.که غواړی.حدثنادې استعمال کړی.اوکه غواړی د ،،سمعت،، صيغه دې استعمال کړی.

④ دترجمة الباب دا مقصد هم کيدې شی.چه د روايت نقل کولو کومې طريقې په محدثينو کښې معروف (مشهورې) دی.آيا دغه ټولې طريقې جائز دی.يا په دې کښې څه يوه طريقه داسې هم شته.چه هغه ناجائز اوګرځولې شی.ځکه چه بعضو حضراتو د ،،انباء،، طريقه کمزورې ګرځولې ده.او بعضو دا ناقابل اعتبار ګرځولې ده.امام بخاری ﷫ ترجمه منعقد کړله.او وې ښودل.چه دا ټولې طريقې جائز او قابل د استناد دی.په دې طريقه به د امام حميدی ﷫ د ارشاد مطلب دا وی.چه په جواز د تمسك او معمول کيدو کښې ټولې طريقې برابر دی.دا جدا خبره ده.چه بعضو طريقو ته په بعضو باندې ترجيح حاصل ده.لکه څنګه چه د ،،حدثنا،، په تعبير سره روايت صحيح کيږی.دغه شان به د ،،اخبار،، او ،،انباء،، صيغې اعتبار هم کيږی.

**د تحمل حديث انواع** مناسب معلوميږی.چه په دې مقام باندې تاسو د تحمل حديث په انواعو او د حديث اداکولو په طريقو باندې پوهه شئ:د اصول حديث عالمانو د تحمل حديث اته قسمونه بيان کړی دی.

① السماع من لفظ الشيخ: ددې صورت دا دې.چه شيخ د خپل سند روايات اوروی.او شاګرد اوری.کله شيخ زبانی اوروی.او کله په کتاب کښې کتلو سره اوروی.دغه شان شاګرد کله کله صرف په اوريدو باندې اکتفاء کوی.او کله اوريدو سره سره ليکل هم کوی. (۱)

---

۱) مقدمة ابن الصلاح (ص.۶۲) النوع الرابع والعشرون: سماع الحديث وتحمله وضبطه بيان أقسام طرق نقل الحديث وتحمله وفتح المغيث (۱۵۲/۲) أقسام التحمل والأخذ)۔

②«القراءة على الشيخ»: يعنى د شيخ په وړاندې د شيخ مرويات اوونيلې شى او شيخ اورى كه شاګرد ئې وائى اوكه بل يو طالب علم ئې وائى او دې ئې اورى بيا دا لوستل كه په حفظ (ياد) سره وى اوكه د كتاب نه وى دغه شان د شيخ اوريدل كه حفظاً وى اوكه كتاب لاس كښې اخستلو سره وى بيا د كتاب په لاس كښې د اخستلو په صورت كښې پخپله د شيخ په لاس كښې كتاب وى اوكه د بل يو ثقه سړى په لاس كښې وى (١)

ياد ساتئ چه په «قراءت على الشيخ» كښې چه طالب علم كوم روايات وائى هغه دې ددې شيخ مرويات وى نور روايتونه دې نه وى او ددې مقصد دا وى چه طالب علم شيخ ته واورى او توثيق اوكړى اوكه په ضبط كښې څه قسمه كمى وى نو د هغې ازاله اوكړى (٢)

بيا د جمهورو په نيز دا صورت صحيح دې چه د قراءت په موقعه كتاب د يو ثقه سړى په لاس كښې وى پخپله د شيخ په لاس كښې نه وى ددې نه قاضى ابوبكر باقلانى او امام الحرمين رحمهما الله اختلاف كوى او فرمائى چه پخپله د شيخ په لاس كښې كتاب كيدل پكار دى د بل چا په لاس كښې نه دې پكار (٣) حافظ ابن الصلاح رحمه الله د جمهورو مسلك راجح ګرځولې دې (٤) البته كه دغه سړې ثقه نه وى نو دداسې سماع هيڅ اعتبار نشته (٥)

«قراءت على الشيخ» ته اكثر محدثين «عرض» هم وائى (٦) وړاندې د باب القراءة والعرض على المحدث لاندې ددې زيات تفصيل راځى.

## دقرأت على الشيخ يا عرض حكم:

ددې نوع د تحمل د صحت په باره كښې اتفاق دې البته امام ابوعاصم النبيل او عبدالرحمن بن سلام مجمحى د «قراءت على الشيخ» د عدم جواز قائل دى خو جمهورو ددوى قول رد كړې دې (٧)

## دقرأت على الشيخ مرتبه:

ددې نوع څه مرتبه ده؟ په دې كښې درې اقواله دى.

① د امام ابوحنيفه، شعبه، ابن ابى ذئب او يحيى القطان رحمهم الله نه منقول دى چه د «قراءت على الشيخ» درجه د «سماع من الشيخ» نه زياته ده د امام مالك رحمه الله نه هم يو روايت هم دا منقول دې (٨) ددې حضراتو وينا دا ده چه د «سماع من الشيخ» په صورت كښې كه شيخ ته سهوه

---

(١) مقدمة ابن الصلاح (ص، ٦٤، ٦٥) وفتح المغيث للسخاوى (١٦٨/٢)_
(٢) تيسير مصطلح الحديث (١٥٨)_
(٣) توضيح الأفكار لمعانى تنقيح الأنظار (١٨٧/٢)_
(٤) مقدمة ابن الصلاح (ص،٦٦)_
(٥) مقدمة ابن الصلاح (ص،٦٧) وتوضيح الأفكار (١٨٨/٢)_
(٦) فتح المغيث للعراقى (ص،١٨٥) ومقدمة ابن لاصلاح (٦٤)
(٧) المحديث الفاصل بين الراوى والواعى (٤٢٠، ٤٢١) وتوضيح الأفكار (١٨٨/٢)_
(٨) ظفر الأمانى (٥٠٦) ومقدمة ابن الصلاح (٦٥)_

اوشی نو طالب دپاره رد ممکن نه وی.حالانکه د ،،قراءت علی الشیخ،، په صورت کښې که طالب عالم غلطی اوکړی نو شیخ د هغې تصحیح کولې شی.(١)

② د امام مالک. سفیان ثوری، امام بخاری رحمهم الله او د حجاز او کوفې د اکثرو عالمانو په نیز دواړه برابر دی (٢)

③ دجمهورو عالمانو په نیز د ،،قراءت علی الشیخ،، درجه د ،،سماع،، نه ادنی او کمتر ده (٣)

البته حافظ سخاوی رحمه الله فرمائی چه په عامو حالاتو کښې خو ،،سماع،، اعلی ده.خو که څه عارض راپیښ شی.نو دا هم ممکن ده.چه ..قراءت.. او ..عرض.. د ..سماع.. نه زیات شی مثلاً دا چه طالب علم د شیخ په مقابله کښې اعلم او اضبط وی.یا دا چه شیخ د لوستلو دحالت په مقابله کښې د اوریدو په حالت کښې زیات احفظ او متیقظ وی.نو په داسې صورت کښې به ..قراءت.. د ..سماع.. نه اولی او اعلی وی.(٤)

خلاصه دا ده.چه په کوم صورت کښې دغلطو نه د بچ کیدو امکان زیات وی.هغه صورت اولی او اعلی دې.(٥) والله اعلم.

③ ،،الإجازة،،: یعنی شیخ چاته د روایت کولو اجازت ورکړی.که دا اجازت لفظاً وی او که کتابةً وی. مثلاً شیخ یوکس ته اووائی.یا لیکلې ورکړی.چه «أجزتُ لكَ أن تروى عنّى صحيح البخارى»(٦)

**د اجازت قسمونه** د اصولو عالمانو د اجازت ډیر قسمونه لیکلی دی

① ،،اجازة معيّن لمعيّن،،یعنی مجاز به او مجاز له دواړه معین وی.یو هم مبهم نه وی (٧) مثلاً شیخ داسې اووائی.«أجزتكَ أيها الطالب كتاب البخارى» یا داسې اووائی.«أجزتكم الأصول الستة» دلته مجاز له یعنی مخاطب معین دې.او مجاز به یعنی ..صحیح بخاری.. یا ..صحاح سته.. هم معین دی.دغه شان دا هم ونیلې شی.چه «أجزت فلاناً جميع ما اشتمل عليه فهرسى». د اجازت دا صورت د جمهور محدثینو په نیز صحیح کیدو سره د اجازت تولو

---

(١) ظفرالأمانى (٥٠٦)_
(٢) فتح المغيث للعراقى (١٨٦) وفتح المغيث للسخاوى(١٧١\٢) ومقدمة ابن الصلاح (٢۶٥) وتوضيح الأفكار(١٨٩\٢)_
(٣) المصادرالسابقة)_
(٤) فتح المغيث للسخاوى(٢١٤\٢) وظفرالأمانى(٥١٢)
(٥) المصدرالسابق)_
(٦) فتح المغيث للسخاوى(٢١٤\٢) وظفرالأمانى(٥١٢)_
(٧) مقدمة ابن الصلاح (٧٣)_وظفرالأمانى(٥١٣)

انواعو نه اعلى دي اګرچه بعضو حضراتو په دې باندې هم كلام كړې دې (١)

②،،إجازة معين في غير معين،، يعنى طالب علم كوم چه مجاز له دې دا متعين وى او مجازبه غيرمعين وى (٢) مثلاً داسې اووانى «أجزتكَ أو أجزتُ لكم أو أجزتُ فلاناً مسموعاتي أو مروياتي» دلته د مسموعاتو او مروياتو تعيين او تشخيص نشته.

③ ،،إجازة غير معين في معين،، يعنى مجاز له غير معين وى او محا ـه متعين او مشخص وى مثلا «أجزتُ أهل زمانى رواية صحيح البخارى»(٣)

④ ،،إجازة غير معين فى غير معين،، يعنى نه مجاز له معين وى او نه محا ـه مثلا داسې اووانى «أجزتُ أهل زمانى رواية مسموعاتي»(٤)

،،اجازة المعدوم،، يعنى كوم ماشوم چه اوس پيدا شوې هم نه وى هغه ته اجازت وركول بيا ددې دوه صورتونه دى

① يو دا چه دې معدوم ته اصالتاً اجازت وركړې شى مثلاً داسې اوونيلې شى «أجزتُ لمن يولد لفلان»

② او دويم صورت دا دې چه په موجود باندې عطف اوكړې شى تبعاً او ضمناً اجازت وركړې شى مثلاً داسې اوونيلې شى «أجزتُ لفلان و لمن يولد له» يا داسې اووائى «أجزتُ لكَ ولعقبك»(٥) ددې نوع اجازت هم بعضو حضراتو اجازت وركړې دې خو صحيح دا ده چه معدوم (غير موجود) ته اصالتاً اجازت وركول صحيح نه دى البته تبعاً او ضمناً د اجازت وركولو ګنجائش شته. (٦)

⑥ ،،إجازة الطفل الذى لم يميز،، يعنى مجاز له داسې ماشوم وى چه هغه د هوښيار توب عمر ته نه وى رسيدلې د جمهورو په نيز هغه ته اجازت وركول صحيح دى البته د سماع دپاره د هوښيار توب عمر شرط دې نو كوم ماشوم چه د تميز عمر ته نه وى رسيدلې د هغه سماع معتبر نه ده. (٧)

⑦ ،،إجازة المجاز،، يعنى شيخ اجازت وركولو كښې داسې اووائى «أجزتُ لكَ ما أجيز لي»(٨)

---

(١) ظفرالأمانى(٥١٣) ومقدمة إبن الصلاح (٧٢)-
(٢) مقدة إ ابن الصلاح (٧٣)_
(٣) ظفرالأمانى(٥١٣)_
(٤) مقدإة ابن لصلاح(٧٣)_
(٥) ظفرالأمانى(٥١٥) ومقدمة ابن الصلاح (٧٥)_
(٦) المصدرالسابق)_
(٧) ظفرالأمانى(٥١٦) ومقدمة ابن اصلاح (٧٦)_
(٨) مقدمة ابن الصلاح (٧٧) وظفرالأمانى(٥١٧)_

حاصل دا چه د اجازت څومره قسمونه دى.ټولو كښې اختلاف دې.چه آيا ددې نه روايت كول صحيح دى.اوكه نه دى.په دې كښې ړومبې صورت خو تقريباً ټول حضرات صحيح ګرځوى.بلكه بعضو حضراتو خو دا ونيلى دى.چه اختلاف د ړومبى صورت نه علاوه په باقى انواعو كښې دې.د ړومبى نوع په صحيح كيدوكښې دچا اختلاف هم نشته.البته د باقى انواعو په باره كښې اختلاف اګرچه زيات دې.خو د ،،إجازة المعدوم اصالة،، نه علاوه په باقى انواعو كښې صحيح دا ده.چه صحيح دې.(١) خو دلته حافظ ابن حجرﷺ په شرح نخبة الفكر كښې د ،،اجازت،،بحث په آخر كښې يوه تنبيه كړې ده.د هغې لحاظ ساتل ضرورى دى.هغه ليكى: ((وكل ذالك كما قال ابن الصلاح، توسع غير مرضى، لأن الإجازة الخاصة المعينة مختلف فى صحتها إختلافاً قوياً عند القدماء، وإن كان العمل استقر على اعتبارها عند المتأخرين، فهى دون السماع بالإتفاق، فكيف إذا حصل فيها الاسترسال المذكور، فإنها تزداد ضعفا، لكنها فى الجملة خير من إيراد الحديث معضلاً والله أعلم.))(٢)

④ **المناولة:** د مناولة معنى اعطاء ده.په اصطلاح كښې د ،،مناولہ،، صورت دا وى.چه شيخ طالب علم ته خپل مرويات وركوى.كه ،،تمليكاً بالبيع والهبه،، وى.اوكه د اجارة او اعارة په طور وى.(٣) ددې يو څو صورتونه مشهور دى:

① يو مناولة مقرونه بالاجازة ② او دويم مجرده عن الاجازة._

د مقرونه بالاجازه صورت دا دې.چه شيخ پخپلو مروياتو باندې مشتمل كتاب خپل شاګرد ته وركړى.او دا كتاب يا خو اصل وى.يا د اصل نه نقل كړې شوې او تصحيح شده وى.او د وركولو صورت دا وى.چه يا ئې دتمليك په طور وركړى.په دې طريقه چه خرڅ ئې كړى.يا ئې هبه كړى.يا ئې د اجارې يا د عاريت په طور وركړى.چه ددې نه ئې نقل كړى.او مقابله ئې اوكړى.او خپل خان سره ئې اوساتى.بيا هغه كتاب وركړى.او اووائى.((هذا سماعى أو روايتى عن فلان، فاروه عنى)) يا داسې اووائى.((أجزتُ لكَ روايته عنى))(٤)

د مناوله دويم صورت ،،مجرده عن الاجازة،، دې.يعنى شيخ كتاب يا مرويات خپل شاګرد ته وركړى.خو باقاعده د روايت كولو اجازت نه وركوى.(٥)

د مناوله يو صورت دا هم دې.چه طالب يو كتاب يا حديث يا څه جزء واخلى.او شيخ ته

---

(١) المصادر السابقة)_

(٢) نزهة النظر فى توضيح نخبة الفكر(١٢٥) خاتمة الكلام على صيغ الأداء)_

(٣) فتح المغيث (٢\٢٨٥) وظفر الأمانى(٥١٩)_

(٤) مقدمة ابن اصلاح (١٦٥، ١٦٦) النوع الرابع والعشرون معرفة كيفية سماع الحديث وتحمله وصفة ضبطه القسم الرابع المناولة وفتح المغيث للعراقى (٢١٦) وفتح المغيث للسخاوى(٢\٢٨٧)_

(٥) مقدمة ابن الصلاح (١٦٩) وفتح المغيث للعراقى (٢١٩) وفتح المغيث للسخاوى(٢\٣٠١)_

راشي. او د شيخ په وړاندې ئې پيش کړي.شيخ په دې کښې غوراوفکراوکړي.بيا دا واپس وركړي او داسې اووائي.((وقفت على مافيه، وهو حديثي عن فلان أو روايتي عن شيوخي فيه، فأروه عني)).(١) دې صورت ته هم عرض وائي.او ..قراءت على الشيخ.. ته هم عرض وائي.په دې وجه حافظ ابن الصلاح رحمه الله د ..قراءت على الشيخ.. عرض ته ..عرض القراءة.. او دې موجوده زيربحث عرض ته ئې ..عرض المناوله..نوم ورکړې دې.(٢)

**د مناوله حکم او ددې مرتبه** د امام مالك. زهري. يحي بن سعيد انصاري. مجاهد. ابو الزبير. مسلم الزنجي، علقمه. ابراهيم نخعي. ابن وهب. ابن القاسم. اشهب. قتاده.او ابوالعاليه رحمهم الله نه منقول دي.چه ..تحمل بالمناولة المقرونة بالاجازة..او ..تحمل بالسماع.. دواړه برابر دي.(٣)

خو امام ابوحنيفه، امام شافعي.امام احمد. سفيان ثوري. عبدالله بن المبارك او اسحاق بن راهويه رحمهم الله فرمائي.چه د ..تحمل بالمناولة المقرونة بالاجازة..درجه د ..سماع..نه کمتره.(٤)حافظ ابن الصلاح او ددوی متبعينو دا صحيح او راجح گرځولې ده.(٥)

البته د ..مناوله مجرده عن الاجازه.. په باره کښې اختلاف دې.چه آيا په دې صورت کښې روايت کول جائز دي.اوکه نه دي؟ خطيب بغدادي رحمه الله د بعضو حضراتو نه جواز نقل کړې دې.او بعضې حضرات دا جائز نه گڼري.(٦)

**⑤المكاتبة:** د مکاتبه صورت دا وی.چه شيخ د خپلو مروياتو اومسموعاتو څه حصه پخپله اوليکي.يا ئې پخپل يو معتمد کاتب اوليکي.او خپل شاگرد ته ئې اوليکي (٧)

ددې هم دوه قسمونه دي

① يو دا چه کتابت اجازت سره مقرون وی.چه په شروع کښې يا آخر کښې ،،أجزتُ لك،، هم اوليکي.(٨)

② دويم صورت دا وی.چه صرف مکتوب وی.د اجازت اقتران ورسره نه وی.(٩) په ړومبی صورت کښې روايت کول صحيح دي.او ددې درجه د ..مناولة مقرونة بالاجازة.. برابر

---

(١) مقدمة ابن الصلاح (٧٩) وفتح المغيث للعراقى (٢١٦) وظفرالأمانى(٥٢٠)_

(٢) مقدمة ابن الصلح (٧٩)_

(٣) ظفرالأمانى(٥١٩)_

(٤) المصدرالسابق)_

(٥) مقدمة ابن الصلاح (٨٠) وفتح المغيث للعراقى (٢١٧) وفتح المغيث للسخاوى(٢٩٣\٢)_

(٦) فتح المغيث للسخاوى(٣٠١\٢، ٣٠٣)_

(٧) مقدمة ابن الصلاح (٨٣) وظفرالأمانى (٥٢١، ٥٢٢) وفتح المغيث للعراقى ٢٢ _

(٨) مقدمة ابن الصلاح (٨٣) وظفرالأمانى(٥٢٢) وفتح المغيث للعراقى (٢٢٣)_

(٩) المصادرالسابقة)_

ده او د دویم صورت په جواز کښې اګرچه د بعضو حضراتو اختلاف دې خو راجح داده چه په دې صورت کښې هم روایت کول صحیح دی.(۱)

**⑥الاعلام:** اعلام دا دې چه شیخ طالب ته دا اووائی چه دا جزء یا دا کتاب زما روایت کړې شوې دې.(۲) په دې کښې د روایت کولو حکم یا ددې د اجازت مذکور نه وی.

**د ،،اعلام،، په بنیاد باندې روایت د حدیث صحیح دې اوکه نه دې؟** د ابن جریج او عبیدالله عمری نه علاوه نور هم ډیر محدثین ددې خبرې قائل دی چه مطلق ..اعلام.. سره روایت کول جائز دی بلکه قاضی عیاض رحمه الله خو فرمائی چه دا صورت نه صرف جائز دې بلکه که شیخ منع اوکړی بیا هم روایت کول جائز دی ددې په مقابله کښې اصح قول دا دې چه مجرد ..اعلام.. نه روایت کول صحیح نه دی خکه عین ممکن ده چه شیخ ته په دې کښې څه خلل معلوم وی چه ددې په وجه هغه د روایت کولو اجازت نه ورکوی.(۳)

**⑦الوصية:** د تحمل حدیث اووم قسم وصیت دې ددې صورت داسې وی چه شیخ د مرګ په وخت یا د سفر په وخت د خپل روایت کړې شوی کتاب یو سړی دپاره وصیت اوکړی.(۴)

**دتحمل په دې نوع سره روایت کول جائز دی اوکه نه؟** بعضو حضراتو په دې صورت کښې هم روایت کول جائز ګرځولی دی حالانکه صحیح دا ده چه دتحمل په دې نوع سره روایت کول صحیح نه دی.(۵)

**⑧الوجادة:** ..وجاده.. مولد مصدر دې یعنی د عربو د قدماء نه دا منقول نه دې بلکه اهل اصطلاح دا د مصدر په طور استعمال کړې دې.(۶) په اصطلاح کښې ..وجاده.. دا ده چه یو کس ته د یو شیخ کتاب ملاوشی او ددې شیخ نه دې راوی ته په انواعو د اجازت کښې په یوه طریقه هم اجازت حاصل نه وی.(۷) د وجاده په بنیاد باندې روایت کول د متقدمینو او متاخرینو معمول پاتې شوې دې البته روایت بالوجاده ته د ..منقطع.. درجه ورکړې شوې ده اګرچه په دې کښې یو نوع اتصال هم موندلې شی.(۸) والله اعلم

---

(۱) مقدمة ابن الصلاح (۸۳، ۸۴) وظفر الأمانی (۵۲۲) وفتح المغیث للعراقی (۲۲۳)_

(۲) مقدمة ابن الصلاح (۸٤) وفتح المغیث للعراقی (۲۲٤، ۲۲۵) وظفر الأمانی (۵۲۳)-

(۳) المصادر السابقة)_

(٤) مقدمة ابن الصلاح (۸۵) وفتح المغیث للعراقی (۲۲۶) وظفر الأمانی (۵۲٤)_

(۵) المصادر السابقة)_

(۶) فتح المغیث للعراقی (۲۲۷) ومقدمة ابن الصلاح (۸۶) وظفر الأمانی (۵۲٤)_

(۷) المصادر السابقة)_

(۸) المصادر السابقة)_

## طرق د اداء حديث

**د سماع الفاظ** كه حديث د تلقى د ..سماع من الشيخ.. په طريقه وى نو ددې د اداكولو دپاره د «سمعتُ، حدثنى، حدثنا، أخبرنى، أخبرنا، أنبأنى، أنبأنا، نبأنى، نبأنا، قال لى فلان، قال لنا فلان، ذكر لى فلان، ذكر لنا فلان» الفاظ استعماليږى قاضى عياض رحمه الله ددې ټولو كلماتو د اطلاق په صحيح كيدو باندې اجماع نقل كړې ده.[1]

**د سماع دالفاظو مراتب** البته دا اطلاق د متقدمينو په نيز دې او متاخرينو روستو دغه الفاظ مخصوص كړى دى چه ددوى په نيز د ..سماع.. په ذريعه تحمل كړې شوى روايات ..سمعت..حدثنى..او..حدثنا.. سره ادا كولې شى او د ..اخبرنى.. او..اخبرنا.. په ذريعه به هغه روايات ادا كولې شى كوم چه د..قراءت على الشيخ.. په طريقه حاصل كړې شوى وى او د ،،انبأنى،،او ،،انبأنا،، اطلاق به ..اجازت.. دپاره وى او د ،،قال لى فلان،، ،،قال لنا فلان،، ،،ذكر لى فلان،، او ،،ذكر لنا فلان،، الفاظ د هغه رواياتو دپاره مخصوص دى كوم چه مذاكره كښې حاصل شوى دى.[2]

بيا په دې الفاظو كښې د ..سمعت.. لفظ په دې اعتبار سره د ټولو نه ارفع دې چه دا لفظ د..اجازت.. ..مكاتبت..په ذريعه حاصل شوو رواياتو دپاره دى.دغه شان د تدليس په موقعه نه استعماليږى.حالانكه ددې په مقابله كښې د ..حدثنا.. لفظ په داسې موقعو باندې بعضو حضراتو استعمال كړى دى.[3]

بيا دلته دا وضاحت هم ضرورى دې.چه د ..حدثنى.. اطلاق به په هغه صورت كښې وى.كله چه سامع يواځې وى.او د ..حدثنا.. مطلب دا دې.چه په سماع د حديث كښې نور حضرات هم شريك دى.دغه شان د ..اخبرنى.. استعمال به اصطلاح كښې هغه صورت كښې وى.كله چه قراءت كونكې طالب يواځې وى.او د ..اخبرنا.. لفظ به د يو نه په زيات كيدو باندې دلالت كوى.[4]

**تنبيه** دلته ددې خبرې وضاحت هم پكار دې.چه په لغت كښې په ..تحديث.. ..اخبار.. او ..انباء.. كښې هيڅ فرق نشته.لكه چه د الله ﷻ ارشاد دې. ﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا ۝ بِأَنَّ رَبَّكَ أَوْحَىٰ لَهَا ۝﴾ [5] دغه شان ارشاد دې. ﴿وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ ۝﴾ [6]

---

[1] مقدمة ابن الصلاح (۶۲) النوع الرابع والعشرون سماع الحديث وتحمله وضبطه وفتح المغيث للعراقى (۱۸۲)
[2] فتح المغيث للعراقى(۱۸۳. ۱۸٤)_
[3] مقدمة ابن الصلاح (۶۳) النوع الرابع والعشرون)_
[4] نزهة النظرفى توضيح نخبة الفكر(۱۱۸)_
[5] الزلزال: ٤. ۵)_
[6] فاطر: ۱٤)_

دغه شان په حديث باب كښې د نبى كريم ﷺ ارشاد دې. ((إن من الشجر شجرة لايسقط ورقها، وإنها مثل المسلم، فحدثونى ماهى؟ فوقع الناس فى شجر البوادى، قال عبدالله ووقع فى نفسى أنها النخلة، فاستحييت ثم قالوا: حدثنا ماهى يا رسول الله ﷺ؟))

د كتاب العلم په يو طريق كښې د ((يا رسول الله أخبرنا بها)) الفاظ دى. (۱) او د كتاب التفسير په يو طريق كښې د ،،حدثونى،، په ځائې ،،أخبرونى،، لفظ راغلې دې. (۲) او د اسماعيلى په يو طريق كښې د ،،أنبئونى،، لفظ وارد شوې دې. (۳)

**د ،،سماع من لفظ الشيخ،، او ،،قرات على الشيخ،، په صورت كښې به په الفاظ ادا كښې تفريق كيږى او كه نه؟** په لغت كښې چونكه دا ټول الفاظ مترادف او هم معنى دى. په دې وجه د عالمانو يو لوئې جماعت چه په دې كښې امام زهرى، امام مالك، سفيان بن عيينه، يحي القطان، او اكثر حجازيين او كوفيين شامل دى. ددې خبرې قائل دى چه په دې كښې د هر يو لفظ استعمال جائز دې. (۴)

او اسحاق بن راهويه، امام نسائى، ابن حبان او ابن منده ﷭ ددې خبرې قائل دى چه كله سماع من لفظ الشيخ وى نو دا الفاظ على الاطلاق وئيلې شى. او كه قراءت على الشيخ وى نو دا الفاظ به ،،قراءت،، سره مقيد كولې شى. (۵)

او امام ابن جريج، اوزاعى، شافعى، ابن وهب، او د مشرق اكثرو عالمانو د الفاظو تخصيص كړې دې چه د ،،سماع من لفظ الشيخ،، په صورت كښې به ،،تحديث،، او د ،،قراءت على الشيخ،، په صورت كښې به د ،،اخبار،، لفظ استعمالولې شى. (۶) روستو ددوى متبعينو هغه تفصيل اختيار كړې دې. كوم چه مونږه وړاندې ذكركړې دې چه ،،حدثنى،، د يوكس دپاره دې. او ،،حدثنا،، او ،،اخبرنا،، د جمعې دپاره دې. (۷)

خو دلته چه حافظ ﷫ كومه تنبيه كړې ده. هغه ياد ساتل پكار دى. چه دا ټول تفصيل د مستحسن كيدو حده پورې دې. ددې التزام څه واجب نه دې. البته متاخرينو ته ددې مذكوره اصطلاحاتو رعايت كول پكار دى. ځكه چه اوس دې د حقيقت عرفيه حيثيت اختيار كړې

(۱) صحيح بخارى (۲٤/۱) كتاب العلم باب الحياء فى العلم رقم ۱۳۱)_

(۲) صحيح بخارى (۶۸۱/۲) كتاب التفسير سورة إبراهيم باب ﴿كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ۝ تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ﴾ رقم ۴۶۹۸)_

(۳) ذكره الحافظ فى الفتح (۱٤٤/۱)_

(۴) فتح البارى (۱٤۵/۱)-

(۵) المصدر السابق)-

(۶) المصدر السابق)-

(۷) المصدر السابق)-

دي. كه ددې رعايت اونكړې شي.نو د خلط خطره ده. (۱) والله اعلم.

**د، قرات على الشيخ، په صورت كښې د اداء الفاظ** هغه روايات د كومو تحمل چه د ،،قراءت على الشيخ،، په طريقه باندې شوې وى.د هغې د ادا كولو يو څو صورتونه دي

① يو صورت دا دې چه ،،**قرأت على فلان**،، يا ،،**قرئ على فلان وأنا أسمع، فأقر به**،، اووئيلې شى.دا صورت د ټولو نه اعلى او اسلم دې.په دې كښې هيڅ اشكال نشته. (۲)

② دويم صورت دا دې.چه په ،،سماع من الشيخ،، كښې چه كوم الفاظ استعماليږى.هغه دلته كښې تقييد سره استعمال كړې شى.مثلاً اووئيلې شى. ،،**حدثنا فلان قراءة عليه**،، يا ،،**أخبرنا قراءة عليه**،،دا د رومبى قسم په مقابل كښې كمتر دې.(۳)

③ دريم صورت دا دې.چه ددې قسم دپاره هم د،،**سماع من الشيخ**،، والا الفاظ ،،**حدثنا**،، او،،**أخبرنا**،، بغير دڅه قيد نه استعمال كړې شى.نو په دې كښې اختلاف دې.

**مذاهب علماء** ① د عبدالله بن المبارك. يحي بن يحي تميمى. احمد بن حنبل. او نسائى ﷺ وغيره مذهب دا دې.چه دغه شان على الاطلاق استعمالول جائز نه دى.

② ددې په مقابله كښې د حجاز او دكوفې داكثرو عالمانو. او د امام زهرى.امام مالك. سفيان بن عيينه او يحي بن سعيد القطان ﷺ وغيره متقدمينو امامانو په نيز ددې الفاظو على الاطلاق استعمالولو كښې هيڅ باك نشته.د امام بخارى رحمه الله هم دا مذهب دې.(۴) په دې مجوزينو كښې بعضو څو ،،سمعت فلاناً،، وئيل هم صحيح ګرځولى دى.(۵)

③ په دې قسم كښې دريم مذهب دا دې.چه په دواړو لفظونو كښې فرق دې.د امام شافعى او ددوى د اصحابو قول دې.چه د ،،قراءت على الشيخ،، په طريقه د حاصل شوو رواياتو ادا كولو دپاره ،،اخبرنا،، استعمالول صحيح دى.د ،،حدثنا،، اطلاق صحيح نه دې.هم دا خبره د امام مسلم رحمه الله او د جمهور اهل مشرق نه منقول ده.اكثر محدثين هم ددې قائل دى.(۶) حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائى.«**ألفرق بينهما صار هو الشائع الغالب على أهل الحديث، والاحتجاج لذالك من حيث اللغة عناء و تكلّف، وخير ما يقال فيه: إنه إصلاح منهم أرادوا به التميز بين النوعين، ثم خصص النوع الأول بقول ،،حدثنا،، لقوة إشعاره بالنطق والمشافهة**»، والله اعلم.(۷)

---

(۱) المصدر السابق)-

(۲) مقدمة ابن الصلاح (۶۵) النوع الرابع والعشرون وفتح المغيث للعراقى (۱۸۷)_

(۳) المصادر السابقة)_

(۴) المصادر السابقة)_

(۵) مقدمة ابن الصلاح (۶۵) وقال القاضى عياض وهو قول روى عن مالك والثورى وابن عيينة ..فتح المغيث للعراقى (۱۸۷)_

(۶) مقدمة ابن الصلاح (۶۵، ۶۶) وفتح المغيث للعراقى (۱۸۸)_

(۷) مقدمة ابن الصلاح (۶۶)_

**د اجازت په طریقې سره د حاصل شوو روایاتو طریقه اداء** ① بعضو حضراتو د ..حدثنا.. او ..اخبرنا.. استعمالولو علی الاطلاق اجازت ورکړې دې.دا د ابن جریج، امام مالک، امام الحرمین او اهل مدینه نه منقول دې.[1]
② خو د جمهورو په نیز الفاظ د سماع او قراءت مقید استعمالول پکار دی. مثلاً داسې وئیل پکار دی ،،حدثنا إجازة،، یا ،،أخبرنا إجازة،،[2]
**د اجازت یو څو نور الفاظ** دلته یو څو الفاظ نور هم دی.کوم چه په ..اجازت.. کښې استعمال کړې شوی دی.لکه چه بعضو حضراتو ..شافهني فلان.. او ..اخبرنا مشافهة.. استعمال کړې دې.[3]د امام اوزاعی نه منقول دی چه دوی د ..اجازت.. دپاره ،،خبّرنا،، لفظ استعمال کړې دې.او د ،،قرأت علی الشیخ،، دپاره ئې ،،أخبرنا،، استعمال کړې دې.[4]
دغه شان اجازت دپاره متاخرینو د ،،أنبأنا،، لفظ استعمال کړې دې.بلکه علامه ابوالعباس ولید بن بکر معمری پخپل کتاب ،،الوجازة فی تجویز الإجازة،، کښې د ..اجازت..دپاره هم دا استعمال کړې دې.حالانکه د متقدمینو په نیز ،،أخبرنا،، او ،،أنبأنا،، هم معنی دی.[5] والله اعلم.
**د ،،مناوله،، په طریقه د حاصل شوو روایاتو طریقه د اداء** په دې طریقه کښې هم د سماع الفاظ بعضو حضراتو مطلقاً بغیر دڅه قید نه استعمال کړی دی.حالانکه په دې کښې هم غوره دا ده.چه تقیید سره ذکرکړې شی.مثلاً داسې اووئیلې شی.،،حدثنا مناولة،، یا ،،أخبرنا مناولة،،.دغه شان صرف ،،ناولني،، وئیل هم صحیح دی.او که مناوله مقرون بالاجازه وی نو ،،ناولني وأجازلي،، وئیلو سره روایت کول غوره دی.[6] والله اعلم.
**د کتابت، اعلام، وصیت، او وجاده په طریقو سره د حاصل شوو روایاتو طریقه د اداء**
① مکاتبت سره د حاصل شوو روایاتو اداکولو دپاره یا خو د کتابت تصریح اوکړې شی.او اووئیلې شی.چه ،،کتب إلیّ فلان،،.یا الفاظ د سماع او قراءت مقید استعمال کړې شی او اووئیلې شی.،،حدثنا کتابة،، یا ،،أخبرنا کتابة،،[7] ② دغه شان د ..اعلام.. په طریقه د حاصل شوو روایاتو ادا کولو دپاره اووئیلې شی.،،أعلمني شیخي بکذا،،[8] ③ د ..وصیت.. په

[1] مقدمة ابن الصلاح (۸۱) وفتح المغیث للعراقی (۲۲۰)_
[2] مقدمة ابن الصلاح (۸۲) وفتح المغیث للعراقی (۲۲۰)_
[3] مقدمة ابن الصلاح (۸۲) وفتح المغیث للعراقی (۲۲۱)_
[4] المصادر السابقة)_
[5] المصادر السابقة)_
[6] مقدمة ابن الصلاح (۸۱) وفتح المغیث للعراقی (۲۲۰)_
[7] مقدمة ابن الصلاح (۸٤) وفتح المغیث للعراقی (۲۲٤)_
[8] تیسیر مصطلح الحدیث (۱٦۳، ۱٦٤)_

صورت كښې به يا خو ،،أوصى إلى فلان بكذا،، وائى.او يا به ،،حدثني فلان وصية،، وائى (۱)

۴ د ،،وجاده،، په صورت كښې به راوى ،،وجدت بخط فلان،، يا ،،قرأت بخط فلان،، ونيلو سره روايت سره د سند نه نقل كوى.(۲)

**قوله** وَقَالَ لَنَا الْحُمَيْدِيُّ كَانَ عِنْدَ ابْنِ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا وَأَخْبَرَنَا وَأَنْبَأَنَا وَسَمِعْتُ وَاحِدًا: حميدى مونږ ته بيان كړل چه د ابن عيينه په نيز ،،حدثنا،، ،،أخبرنا،، او ،،سمعتُ،، ټول يو (برابر) وو.

**د قال لنا، قال لى، ذكرلنا، او ذكرلى د استعمال مواقع** وړاندې مونږ د اداء حديث د طريقو لاندې مونږ بيان كړى دى.چه ،،قال لنا،،او ،،قال لى،،دغه شان ،،ذكرلنا،،او،،ذكرلى،،دا ټول الفاظ د سماع من الشيخ الفاظ دى.او په اتصال باندې داسې دلالت كوى.لكه څنګه چه ،،حدثنى،،حدثنا،،او،،سمعت،، وغيره اتصال باندې دلالت كوى. البته دا خبره ضرورى ده.چه د ،،قال لنا،، زيات تر اطلاق هغه رواياتو دپاره كيږى. كوم چه د مذاكرة په دوران حاصل كړې شوى وى.(۳)

البته كه د حرف جار نه بغير صرف ،،قال فلان،،يا ،،ذكر فلان،، اووئيلې شى.نو په دې كښې د انقطاع احتمال هم شته.په دې وجه به ددې درجه د ،،قال لنا فلان،، يا د ،،ذكر لنا فلان،، نه كمتره وى.البته كه ددې قائل مدلس نه وى.او د راوى مروى عنه سره لقاء هم ثابت وى.نو دا به په اتصال باندې محمول وى.(۴)

ابن منده رحمه الله فرمائيلى دى.چه امام بخارى رحمه الله كوم ځائې كښې ،،قال لى فلان،، فرمائى هغه ،،اجازة،، سره حاصل شوى روايات وى.سماعاً يا قراءت سره حاصل شوى نه وى.دغه شان كوم ځائې چه ،،قال فلان،، (دجار مجرور نه بغير) ذكركوى.هغه تدليس دې.(۵)

هم دا خبره حافظ ابو يعقوب رحمه الله هم فرمائى.(۶) او حافظ ابوجعفر بن حمدان رحمه الله فرمائى چه داسې ټول روايات عرضاً او مناوله سره حاصل كړې شوى دى.(۷)

دغه شان د ابن حزم رحمه الله وينا دا ده.چه داسې ټول روايات متصل نه دى.(۸)

---

۱) المصدرالسابق)_

۲) المصدرالسابق)_

۳) مقدمة ابن الصلاح (۶۴) النوع الرابع والعشرون القسم الأول:السماع من لفظ الشيخ وفتح المغيث للعراقى (۸۴) وفتح المغيث للسخاوى(۱۶۳\۲) وظفرالأمانى (۵۰۹، ۵۱۰)_

۴) انظرالمصادرالسابقة لا سيماً من عرف من حاله أنه لا يروى إلا ما سمعه كحجاج بن محمد الأعور فروى كتب ابن جريج بلفظ قال ابن جريج فحملها الناس عنه واحتجوا بها (۱۸۴) وفتح المغيث للسخاوى (۱۶۳\۲) وظفرالأمانى (۵۱۰)_

۵) فتح المغيث للعراقى (۱۸۴) وفتح المغيث للسخاوى(۱۶۳\۲) وظفرالأمانى(۵۱۰)_

۶) المصادرالسابقة)-

۷) المصادرالسابقة)_

۸) ظفرالأمانى (۵۱۱)_

خو عالمانو ددې ټولو حضراتو د قول تردید کړې دې.چه مثلاً امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح بخاری کښې د حضرت ابوهریره رضي الله عنه مرفوع حدیث نقل کړې دې.«إذا نسي فأكل أو شرب....» ددې په سند بیانولو کښې فرمائي.«حدثنا عبدان....»(۱) او هم دا روایت پخپل تاریخ کښې نقل کوی.او فرمائي.«قال لي عبدان...»(۲)دغه شان امام بخاری رحمه الله په ..کتاب التفسیر.. کښې د ابراهیم بن موسی نه په صیغه د تحدیث روایت نقل کړې دې.(۳) حالانکه په ..کتاب الایمان والنذور..کښې ئې «قال إبراهيم بن موسى....» الفاظ استعمال کړی دی.(۴)

الحمیدي: د امام حمیدی رحمه الله ذکر اګرچه په ..بدءالوحی.. کښې هم راغلې دې(۵) خوهلته ډیر زیات اختصار دې.دلته مونږ په لږشان تفصیل سره ددې ذکرکوو.دا ابوبکر عبدالله بن الزبیر بن عیسی بن عبیدالله بن اسامه بن عبدالله بن الحمید بن زهیر بن الحارث بن اسد بن عبدالعزی قرشي اسدی حمیدی مکی دې.(۶)

دوی د بشر بن بکرتنیسی، ابو اسامه حماد بن اسامه، سفیان بن عیینه، عبدالعزیز بن محمد دراوردی، فضیل بن عیاض، امام شافعي، مروان بن معاویه فزاري، وکیع بن الجراح، ولید بن مسلم او یعلی بن عبید طنافسی رحمهم الله نه روایت کوی.

ددوی نه په روایت کونکو کښې امام بخاری، ابوزرعه، عبیدالله بن عبدالکریم رازی، امام ابوحاتم محمد بن ادریس الرازی، امام محمد بن یحي ذهلی، یعقوب بن سفیان، او یعقوب بن شیبه رحمهم الله دی.(۷)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي.،،الحمیدی عندنا إمام،،(۸)

ابو حاتم رحمه الله فرمائي.«أثبت الناس في إبن عيينه، الحميدي،وهو رئيس أصحاب ابن عيينه، وهو ثقة إمام»(۹)

---

۱) صحیح بخاری (۲۵۹\۱) کتاب الصوم باب إذا أکل أو شرب ناسیاً رقم ۱۹۳۳)_
۲) التاریخ الکبیر(۹۱\۱) ترجمة محمد بن سیرین رقم الترجمة ۲۱۵)_
۳) صحیح بخاری (۷۲۹\۲) کتاب التفسیر سورة التحریم باب ﴿یاأیهاالنبی لم تحرم ما أحل الله لک .. ﴾ رقم ۴۹۱۲)_
۴) صحیح بخاری (۹۹۰\۲) کتاب الأیمان والنذور باب إذا حرم طعامه رقم ۶۶۹۱)_
۵) کشف الباری(۲۳۷\۱)_
۶) تهذیب الکمال (۵۱۲\۱٤)_
۷) د شیوخو او شاګردانو دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۵۱۳\۱٤. ۵۱٤)_
۸) تهذیب الکمال (۵۱۳\۱٤) وسیرأعلام النبلاء (۶۱۷\۱۰)_
۹) تهذیب الکمال (۵۱۳\۱٤) وسیرأعلام النبلاء (۶۱۷\۱۰)_

امام عجلی رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،(١)

ابن حبان رحمه الله فرمائی «كان صاحب سنة وفضل ودين»(٢)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ،،حافظ،،(٣)

امام حاكم رحمه الله فرمائی ،،ثقة مامون،،(٤)

امام بخاری رحمه الله فرمائی «الحميدی إمام فی الحديث»(٥)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ثقة حافظ فقيه، أجل أصحاب ابن عيينة»(٦)

ابن سعد رحمه الله فرمائی ،،وكان ثقة كثير الحديث،،(٧)

امام حمیدی رحمه الله د حدیثو علم د نورو استاذانو نه علاوه د سفیان بن عیینه رحمه الله نه خاص طور باندې حاصل کړو. ترديې چه ددوی په خدمت کښې نورلس یا شل کاله پورې پاتې شوې وو. (٨) اوداامام شافعی رحمه الله نه ئې دفقهې علم حاصل کړو (٩)

د امام شافعی رحمه الله د وفات نه پس حمیدی ته پخپله توقع وه چه ددوی د جانشینی او خلیفه کیدو سعادت به حاصلیږی. خو ددوی په مقابله کښې ابن عبدالحکم ته د امام شافعی رحمه الله د جانشینۍ شرف حاصل شو. نو دوی مکې مکرمې ته راغلل او دلته د علم نشر کولو خدمت پوره کول شروع کړل (١٠)

امام شافعی رحمه الله پخپله ددوی تعریف کښې فرمائی «ما رأيتُ صاحب بلغم (أى إنسانًا) أحفظ من الحميدي، كان يحفظ لسفيان بن عيينه عشرة آلاف حديث»(١١)

امام اسحاق بن راهویه رحمه الله فرمائی «الأئمة فی زماننا الشافعی، والحميدی، وأبوعبيد»(١٢)

پخپله امام حمیدی رحمه الله فرمائی «ما دمتُ بالحجاز، وأحمد بن حنبل بالعراق، وإسحاق بخراسان، لا

---

(١) تعليقات تهذيب الكمال (١٤\٥١٥) نقلاً عن ثقات العجلى (الورقة ٢٩)_
(٢) الثقات لابن حبان (٨\٣٤١)_
(٣) تعليقات تهذيب الكمال (١٤\٥١٥) نقلاً عن علل الدارقطنى (٣\١٧١)_
(٤) تهذيب التهذيب (٥\٢١٦)_
(٥) طبقات الشافعية الكبرى (١ج ٢٦٤) وسير أعلام النبلاء (١٠\٦١٩)_
(٦) تقريب التهذيب (٣٠٣) رقم ٣٣٢٠_
(٧) طبقات ابن سعد (٥\٥٠٢)_
(٨) طبقات الشافعية الكبرى (١\٢٦٤) وسير أعلام النبلاء (١٠\٦١٧)_
(٩) فتح البارى (١\١٠) كتاب بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى )_
(١٠) سير أعلام النبلاء (١٠\٦١٩)_
(١١) طبقات الشافعية (١\٢٦٣) وسير أعلام النبلاء (١٠\٤٦٤)_
(١٢) سير أعلام النبلاء (١٠\٦٨١، ٦١٩) وطبقات الشافعية (١\٢٦٤)_

يغلبنا أحد»(۱) او هم دوى فرمائى «والله لأن أغزو هؤلاء الذين يردون حديث رسول الله ﷺ أحب إلى من أن أغزو عدتهم من الأتراك»(۲)

ددې د لوئي شان اندازه ددې نه لګولې شي چه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله د حديث «إنما الأعمال بالنيات» نه د خپل كتاب افتتاح اوفرمائيله.او د امام مالك رحمه الله په طريق سره ئې ددې (حديث) روايت كولو په ځائې د حميدى رحمه الله سند ته ترجيح وركړله.(۳)

امام حاكم رحمه الله فرمائى.«و محمد بن إسماعيل إذا وجد الحديث عنه لا يخرجه إلى غيره، من الثقة به»(۴)

امام حميدى رحمه الله مسند ليكلې دې چه هغه په ،،مسند الحميدى،، نوم سره معروف دې.د علامه حبيب الرحمن عظمى رحمه الله تحقيق سره ،،مجلس علمى ډابهيل،، دا په دوو جلدونو كښې شائع كړې دې.

د امام حميدى رحمه الله وفات په ۲۱۹ھ يا ۲۲۰ھ كښې اوشو.(۵) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

ابن عيينه: ددوى ذكر اګرچه وړاندې راغلې دې.خو ډير سرسرى طور باندې ددوى ذكر شوې وو.(۶) دلته لږ په تفصيل سره ددوى حالات ذكركولې شى.

دا مشهور محدث سفيان بن عيينه بن ابى عمران هلالى كوفى دې. د دوى كنيت ابومحمد دې.د محمد بن مزاحم اخى الضحاك بن مزاحم مولى وو(۷)دا لس رونړه وو.په دوى كښې پنځه رونړه محدثين دى.سفيان، ابراهيم، محمد، آدم، او عمران.(۸)

سفيان بن عيينه رحمه الله د بې شماره محدثينو نه فيض حاصل كړې دې. چه په هغوى كښې د يوځو مشهورو شيوخو نومونه دا دى.ابراهيم بن ميسره، اسماعيل بن اميه، اسماعيل بن ابى خالد، ايوب سختيانى، ابو بشر بيان بن بشر احمسى، جامع بن ابى راشد، جعفر بن محمد الصادق، حسن بن عماره، حميد الطويل، داؤد بن نصير الطائى، زائدة بن قدامه، زكريا بن ابى زائده، زياد بن سعد، زياد بن علاقه، زيد بن اسلم، سالم ابى النضر، سفيان الثورى، ابوحازم سلمة بن دينار، سليمان الاحول، سليمان الاعمش، سهيل بن ابى صالح، شعبة بن الحجاج، شبيب بن غرقده، صالح بن كيسان، عاصم بن ابى النجود، ابو الزناد، عبدالكريم، ابى اميه، عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج، على بن زيد بن جدعان، عمارة

---

(۱) المصادر السابقة)_
(۲) سير أعلام النبلاء (۱۰\۶۱۹)_
(۳) سير أعلام النبلاء (۱۰\۶۲۰، ۶۲۱)_
(۴) تهذيب التهذيب (۵\۲۱۶)_
(۵) سير أعلام النبلاء (۱۰\۶۱۸)-
(۶) كشف البارى(۱\۲۳۸) بدء الوحى الحديث الأول)_
(۷) تهذيب الكمال (۱۱\۱۷۷، ۱۷۸)_
(۸) المصدر السابق)_

بن القعقاع، عمرو بن دينار، ابو معاويه عمرو بن عبدالله نخعي، مالك بن انس، ابن شهاب زهري، مسعر بن كدام، معمر بن راشد، منصور بن المعتمر، هشام بن عروه وليد بن كثير، ابو اسحاق سبيعي، ابوالزبير مكي رحمهم الله
ددوی نه په روایت کونکو کښې ددوی خپل شیوخ امام اعمش، ابن جریج او شعبه نه علاوه همام بن یحي، حسن بن حي، زهیر بن معاویه، عبدالله بن المبارك، عبدالرحمن بن مهدی، یحي القطان، امام شافعي، عبدالرحمن، عبدالرزاق، صنعاني، امام حمیدی، سعید بن منصور، یحي بن معین، علی بن المدیني، احمد بن حنبل، ابوبکر بن ابی شیبه، اسحاق بن راهویه، او عمرو بن علی الفلاس رحمهم الله وغیره دی.([1])
سفیان بن عیینه رحمه الله په ۱۰۷ھ کښې پیدا شو.([2]) د ماشوموالی نه په طلب د حدیث کښې لګیا شو الله تعالی ددوی په علم کښې اوعمر کښې برکت واچولو چه ددوی نه په علم حاصلونکو کښې چه اجداد (نیکونه) دی نو احفاد (نمسو) هم ددوی نه فیض حاصل کړو ۱۹۲ھ نه تحدیث شروع شو د ټولو نه آخر کښې سماع کونکي یو ابوالنصر الیسع بن زید زینبی نومې مکی سړې وو دوی تر ۲۸۲ھ پورې ژوندې پاتې وو.([3]) ددوی په امامت او لوئي شان باندې اتفاق دې ډیر خلق به د حج په اراده وتل خو ددوی په نظر کښې به دا خبره وه چه زمونږ سفیان بن عیینه سره ملاقات اوشی او ددوی سند به عالی (اوچت) شی.([4])

علی بن المدینی رحمه الله فرمائی «مافی أصحاب الزهری أتقن من ابن عیینة»([5])

امام احمد بن عبدالله عجلی رحمه الله فرمائی «سفیان بن عیینه کوفی ثقة ثبت فی الحدیث، وکان بعض أهل الحدیث یقول: هو أثبت الناس فی حدیث الزهری، وکان حسن الحدیث، وکان یعدّ من حکماء أصحاب الحدیث، وکان حدیثه نحواً من سبعة آلاف ولم تکن له کتب»([6])

امام شافعی رحمه الله فرمائی «مالك وسفیان بن عیینة القرینان، یعنی فی الأثر»([7]) اوهم دوی فرمائی «لولا مالك وسفیان لذهب علم الحجاز»([8])
امام سفیان ثوری رحمه الله نه چه کله ددوی په باره کښې تپوس اوکړې شو نو وې فرمائیل

---

[1]) داستاذانو او شاګردانو تفصیل دپاره اوګورئ (تهذیب الکمال (۱۱\۱۷۸، ۱۸۸) وسیر أعلام النبلاء (۸\۴۵۷)_
[2]) تهذیب الکمال (۱۱\۱۸۸)-
[3]) تهذیب الکمال(۱۱\۱۸۸) وسیر أعلام النبلاء(۸\۴۵۷)_
[4]) سیر أعلام النبلاء (۸\۴۵۷)_
[5]) تهذیب الکمال(۱۱\۱۸۹) وسیر أعلام النبلاء (۱۱\۴۵۸)_
[6]) تهذیب الکمال(۱۱\۱۸۹)_
[7]) المصدر السابق)_
[8]) المصدر السابق)_

«ذاك أحد الأحدين، ما كان أغربه» (١)

يحي بن سعيد رحمه الله فرمائى: «سفيان إمام فى الحديث» (٢)

امام بن عيينه رحمه الله به ډير زيات حجونه كول. يو خل ئې د حج په موقعه پخپل وراره حسن بن عمران بن عيينه ته په مزدلفه كښې اوفرمائيل: «قد وافيت هذا الموضع سبعين مرة، أقول فى كل سنة: اللهم لا تجعله آخر العهد من هذا المكان، وإنى قد استحييت من الله من كثرة ما أسأله ذالك» نو ددې نه پس ددوى وفات اوشو. (٣)

تنبيه د امام يحي بن سعيد القطان رحمه الله نه محمد بن عبدالله بن عمار نقل كړى دى. چه دوى فرمائى: «أشهدوا أن سفيان بن عيينة اختلط سنة سبع و تسعين، فمن سمع منه فى هذه السنة وبعدها فسماعه لا شئ» (٤) ددې حاصل دا دې چه سفيان بن عيينه رحمه الله د خپل وفات نه يو كال وړاندې مختلط شوې وو.

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه د ابن عيينه رحمه الله نه په ١٩٧ھ كښې سماع كونكى محمد بن عاصم رحمه الله دې چه ددوى يو .. جزء.. مشهور دې. چه دا ډير اوچت سند دې. تر كومه پورې چه د آئمه سته د شيوخو تعلق دې نو هغوى ټولو د ١٩٧ھ نه وړاندې سماع كړې ده. روستو ئې نه ده كړې. ١٩٨ھ چه دا ددوى د وفات كال دې. په دې كښې خو چا هم سماع نه ده كړې. (٥)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه زه د ابن القطان رحمه الله دا قول مستبعد (او ناممكن) ګنړم او غالبه دا ده چه دا د ابن عمار غلطى ده. ځكه چه ابن القطان رحمه الله پخپله په صفر ١٩٨ھ كښې وفات شوې وو. كوم وخت چه حجاج واپس راځى. نو دا بعيد ( نا ممكن) ده. چه هغه پخپله دمرګ په خوله كښې وى. او په دې حال كښې دوى ته د سفيان د اختلاط خبر رسيدلې وى. او هغه ددې اعلان اوكړى. ممكن ده. چه دوى ته دا خبره د ١٩٧ھ په دوران ځه وخت رسيدلې وى. خو ياد ساتئ: چه يحي القطان د نقد رجال په سلسله كښې دحد نه زيات متعنت او متشدد دې. او بل طرف ته د ابن عيينه شخصيت دې. چه دا نه صرف ثقه دې. بلكه على الاطلاق حجت دې. او د اسلام په ټولو دواوينو كښې ددوى روايات موجود دى. (٦)

البته علماء د رجالو د سفيان بن عيينه رحمه الله په باره كښې تصريح كړې ده. چه دوى به تدليس كوو. چه دوى د زهرى رحمه الله په ډيرو حديثونو كښې د تدليس نه كار اخستې دې. او امام

---

(١) المصدر السابق

(٢) المصدر السابق

(٣) الطبقات الكبرى لابن سعد (٤٩٨\٥)

(٤) تهذيب الكمال (١٩٦\١١) وسير أعلام النبلاء (٤٦٥\٨) وميزان الإعتدال (١٧٠\٢، ١٧١)

(٥) ميزان الإعتدال (١٧١\٢)

(٦) ميزان الإعتدال (١٧١\٢) وسير أعلام النبلاء (٤٦٥\٨، ٤٦٦)

زهری رحمه الله ددوی براه راست شیخ دې. ددوی کوم حدیثونه چه هغوی براه راست نه دی اوریدلی په هغه حدیثونو کښې به دوی د تدلیس نه کار اخستلو. اوخپل شیخ به ئې حذف کولو.[1]

خو ددې تدلیس باوجود د سفیان بن عیینه رحمه الله روایات مطلقاً قابل د احتجاج گنړلې کیږی ځکه چه دوی کله هم یو شیخ حذف کړې دې. هغه ثقه ختلې دې. دوی کله هم د غیرثقه سړی په حدیث کښې تدلیس نه دې کړې. لکه چه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ((أجمعت الأمة على الاحتجاج به، وكان يدلس، لكن المعهود منه أنه لا يدلس إلا عن ثقة....))[2]

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: ((ثقة حافظ فقيه إمام حجة، إلا أنه تغير حفظه بأخرة، وكان ربما دلس، لكن عن الثقات))[3]

حافظ ابن حبان رحمه الله فرمائی: ((اللهم إلا أن يكون مدلس، يُعلم أنه ما دلس قط، إلا عن ثقة، فإذا كان كذالك، قُبلت روايته، وإن لم يبيّن السماع، وهذا ليس في الدنيا إلا سفيان بن عيينه وحده، فإن كان يدلس، ولا يدلس إلا عن ثقة متقن، ولا يكاد يوجد لسفيان بن عيينة خبر دلس فيه إلا وجد ذالك الخبر بعينه قد بيّن سماعه عن ثقة، مثل نفسه والحكم في قبول روايته لهذه العلة وإن لم يبيّن السماع فيها، كالحكم في رواية ابن عباس إذا روى عن النبي ﷺ منه))[4]

د امام سفیان بن عیینه رحمه الله د زهد او ورع واقعاتو او عارفانه کلام دپاره د تاریخ او سیر کتابونو طرف ته رجوع اوکړئ.[5]

ددوی وفات په ۱۹۸ھ کښې شوې دې.[6] ،، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

((وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ وَقَالَ شَقِيقٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَةً وَقَالَ حُذَيْفَةُ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَيْنِ وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرْوِي عَنْ رَبِّهِ وَقَالَ أَنَسٌ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرْوِيهِ عَنْ رَبِّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيهِ عَنْ رَبِّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ))

**د صحابه کرامو د تحديث الفاظ او ددې د ذکر کولو مقصد** امام بخاری رحمه الله چه دلته د حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت حذیفه، حضرت ابن عباس، حضرت انس او حضرت

---

[1] سير أعلام النبلاء (۸\۴۶۵)_
[2] ميزان الإعتدال (۸\۴۶۵)_
[3] تقريب التهذيب (۲۴۵) رقم (۲۴۵۱)_
[4] الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (۱۱-۱۵۰)_
[5] تهذيب الكمال (۱۱\۱۹۱، ۱۹۶) وسير أعلام النبلاء (۸\۴۶۱، ۴۶۴) وحلية الأولياء (۷\۲۷۰، ۳۱۸)_
[6] تهذيب الكمال (۱۱\۱۹۶)_

ابوهريره(رض) نه كومې جملې نقل كړى دى.په هغې كښې بعضو كښې ..حدثنا.. بعضو كښې .. سمعت.. او په بعضو كښې د ..عن.. الفاظ راغلى دى.په دې ټولو تعليقاتو سره
① دا ښودل مقصود دى.چه د تحديث، اخبار او سماع دا ټول الفاظ هم معنى (مترادف) دى.دغه شان عنعنه په وصل باندې محمول ده.په دې شرط چه د راوى او مروى عنه لقاء ثابته وى.(١)
② بعضې عالمان فرمائى.چه دې ټولو تعليقاتو ذكركولو سره امام بخارى رحمه الله دا ښودلې ده.چه تحديث. سماع، عنعنه وغيره په عهد د صحابو. او تابعينو كښې استعماليدل.
**د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د رومبى تعليق تخريج** د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا تعليق امام بخارى رحمه الله پخپل صحيح كښې په ..كتاب بدءالخلق. كتاب احاديث الانبياء. كتاب القدر. او كتاب التوحيد.. كښې موصولاً تخريج كړې دې.چه په دې كښې د جنين د پيدائش ذكر دې:((قال عبدالله: حدثنا رسول الله ﷺ وهو الصادق المصدوق، قال: إن أحدكم يجمع خلقه في بطن أمه أربعين يوماً، ثم يكون علقة مثل ذالك، ثم يكون مضغة مثل ذالك، ثم يبعث الله ملكاً فيؤمر بأربع كلمات، ويقال له: أكتب عمله، ورزقه، وأجله، وشقي أو سعيد، ثم ينفخ فيه الروح، فإن الرجل منكم ليعمل، حتى ما يكون بينه وبين الجنة إلا ذراع، فيسبق عليه كتابه، فيعمل بعمل، أهل النار، ويعمل حتى ما يكون بينه وبين النار، إلا ذراع، فيسبق عليه الكتاب، فيعمل بعمل أهل الجنة))(٢)
**تنبيه** د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان ..باب ظلم دون ظلم.. كښې تيرشوى دى.(٣)
**د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د دويم تعليق تخريج** د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا دويم تعليق هغه حديث سره متعلق دې.په كوم كښې چه هغوى فرمائى.((قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ وَهُوَيَدْعُومِنْ دُونِ اللّٰهِ نِدًّا دَخَلَ النَّارَ وَقُلْتُ أَنَا مَنْ مَاتَ وَهُوَلَا يَدْعُولِلّٰهِ نِدًّا دَخَلَ الْجَنَّةَ))دا حديث امام بخارى رحمه الله په ..كتاب الجنائز. كتاب التفسير .او كتاب الايمان والنذور.. كښې موصولاً تخريج كړې دې.(٤)

---

١) فتح البارى (١٤٤)_
٢) صحيح البخارى (١١\٤٥٦) كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكة رقم ٣٢٠٨ كتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله تعالى(( وإذا قال ربك للملائكة إنى جاعل فى الأرض خليفة)) رقم ٣٣٣٢ (١٢\٩٧٦) كتاب القدر باب فى القدررقم ٦٥٩٤ (١٢\١١١٠) كتاب التوحيد باب((ولقدسبقت كلمتنا لعبادناالمرسلين)) رقم ٧٤٥٤)
٣) كشف البارى(٢\٢٥٧)_
٤) صحيح البخارى (١١\١٦٥) كتاب الجنائز. باب فى الجنائزومن كان آخر كلمة لا إله إلا الله رقم ١٢٣٨ (١٢\٦٤٤) و(١٢\٦٤٤) كتاب التفسيرسورة البقرة باب ومن الناس من يتخذمن دون الله أنداداً رقم ٤٤٩٧ (١٢\٩٨٨) كتاب الأيمان والنذورباب إذا قال لا أتكلم اليوم فصلى أو قرأ أو سبح أو كبر أو حمد اوهلل فهو على نيته رقم ٦٦٨٣)_

دلته یو اشکال دا دې چه امام بخاری رحمه الله دا تعلیق په دریو خایونو کښې موصولاً ذکر کړې دې په دې کښې په یوځائې کښې هم دلته ذکر کړې شوی الفاظ «سمعت النبی ﷺ....» نشته خو چونکه امام مسلم رحمه الله چه ددې حدیث کوم تخریج کړې دې په هغې کښې د «محمد بن عبدالله بن نمیر عن أبیه.....» په طریق کښې د «سمعت رسول الله ﷺ....» الفاظ شته.(١) په دې وجه د امام بخاری رحمه الله دا تعلیق پخپل ځائې بالکل صحیح دې.

تنبیه د حضرت شقیق بن سلمه رحمه الله حالات په کتاب الایمان «باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لایشعر» لاندې تیر شوی دی.(٢)

**د حضرت حذیفه رضی الله عنه د تعلیق تخریج** د حضرت حذیفه رضی الله عنه تعلیق نه دا حدیث مراد دې «حدثنا حذیفة قال حدثنا رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیثین رأیت أحدهما وأنا أنتظر الآخر حدثنا أن الأمانة نزلت في جذر قلوب الرجال ثم علموا من القرآن ثم علموا من السنة وحدثنا عن رفعها قال ینام الرجل النومة فتقبض الأمانة من قلبه فیظل أثرها مثل أثر الوکت.....الخ» دا حدیث امام بخاری رحمه الله په ، ،کتاب الرقاق، کتاب الفتن، او کتاب الاعتصام، ، کښې موصولاً تخریج کړې دې.(٣) او امام مسلم رحمه الله هم دا پخپل صحیح کښې موصولاً ذکرکړې دې.(٤) امام بخاری رحمه الله دا تعلیقات دلته ذکر کولو سره دې طرف ته اشاره کړې ده چه تحدیث او اخبار او سماع په یو معنی کښې دی.

<u>حضرت حذیفه رضی الله عنه:</u> دا مشهور صحابی د رسول الله ﷺ رازدار. ابوعبدالله حذیفه بن الیمان رضی الله عنهما دې ددوی د پلار یمان اصل نوم حسل یا حُسَیل دې ددوی نه پخپل قوم کښې یو خون (قتل) شوې وو نو دوی مدینې ته تختیدلی وو هلته د انصارو د بنو عبدالأشهل قبیلې حلیف ( حمایتی) جوړ شو او انصار چونکه اصل کښې دیمن دی په دې وجه دوی ته یمان اوونیلی شو.(٥)

**په اسلام کښې د معاهدې احترام** حضرت حذیفه رضی الله عنه خپل پلار سره غزوهٔ بدر کښې شرکت

---

١) قال مسلم حدثنا محمد بن عبدالله بن نمیر قا :نا أبی ووکیع عن الأعمش عن شقیق عن عبدالله قال وکیع قال رسول الله وقال ابن نمیر سمعت رسول الله یقول ... (صحیح مسلم (٦٦\١) کتاب الإیمان باب الدلیل علی أن من مات لا یشرک بالله دخل الجنة )_

٢) کشف الباری (٥٥٩\٢)_

٣) صحیح بخاری (٩٦١\٢) کتاب الرقاق باب رفع الأمانة رقم ٦٤٩٧ و(١٠٤٩\٢) کتاب الفتن باب إذا بقی فی حثالة من الناس رقم ٧٠٨٦ (١٠٨٠\٢) کتاب الإعتصام بالکتاب والسنة باب الإقتداء بسنن رسول الله رقم ٨٢٧٦ )_

٤) صحیح مسلم (٨٢\١) کتاب الإیمان باب رفع الأمانة والإیمان من بعض القلوب)_

٥) تهذیب الکمال (٤٩٧\٥) وسیر أعلام النبلاء (٣٦٣\٢) والإصابة (٣١٨\١)_

دپاره راتلو چه په لاره کښې ابوجهل سره ملاو شو. ابوجهل تپوس اوکړو چه د کوم خائې اراده ده؟ دوی دواړو حضراتو اوونیل چه مونږ خپل یوکار دپاره مدینې ته روان یو. ابوجهل اوونیل چه تاسو د محمد ﷺ امداد دپاره ځئ. په دې وئیلو ئې ددوی نه عهد واخستلو چه د محمد ﷺ مدد به نه کوئ. نو دواړه نبی کریم ﷺ ته لاړل. او ټوله قصه ئې تیره کړله. او په غزوهٔ بدر کښې د شرکت کولو خواهش ئې ښکاره کړو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل «انصرفا، نفی لهم بعهدهم و نستعین الله علیهم»(۱) حضرت حذیفه رضی الله عنه خپل پلار سره په غزوهٔ احد کښې شریک شو. ددوی پلار غلطئ سره د بعضو صحابه کرامو د لاسونو نه شهید شو. حضرت حذیفه رضی الله عنه ددوی دیت معاف کړو. (۲) نبی کریم ﷺ د حضرت حذیفه او حضرت عمار رضی الله عنهما په مینځ کښې مواخات رشته قائم کړې وه. (۳)

**حضرت حذیفه رضی الله عنه د «نبی کریم ﷺ رازدار» لقب سره یادیدو** حضرت حذیفه رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ په ډیر نیزدې اصحابو کښې وو. د نبی کریم ﷺ نه به ئې خاص طور باندې د فتنو په باره کښې تپوس کولو. پخپله به ئې فرمائیل «کان الناس یسألون رسول الله ﷺ عن الخیر وکنت أسأله عن الشر، مخافة أن یدرکنی»(۴) دغه شان نبی کریم ﷺ دوی ته د منافقینو نومونه هم ښودلی وو. په دې وجه حضرت حذیفه رضی الله عنه سره تر قیامته پورې د پیدا کیدونکو عظیمو فتنو علم هم وو. او ددغه زمانې د منافقانو تفصیل هم دوی ته معلوم وو. (۵)

حضرت حذیفه رضی الله عنه په جهاد کښې ډیر وخت تیر کړو. او هم ددوی په لاسونو دینور، ماسبذان، همذان، او رې فتح شو. په دې کښې بعضې علاقې د وړاندې نه فتح شوې وې خو په دې باندې قبضه ختمه شوې وه. دوباره د حضرت حذیفه رضی الله عنه په لاسونو فتح شوې. (۶)

حضرت عمر رضی الله عنه دوی له د مدائن ګورنر جوړ کړو. او وې لیګلو. او د مدائن خلقو ته ئې اولیکل. «إنی قد بعثت إلیکم فلاناً فأطیعوه» خلقو ددې خط نه اندازه اولګوله چه نوې راتلونکې ګورنر معمولی سړې نه دې. نو دغه خلق استقبال دپاره اووتل. او دلته حضرت حذیفه رضی الله عنه په دې شان سره روان وو چه په خپل خر باندې ئې خپلې دواړه خپې یو طرف ته زوړندې کړې وې. په لاس کښې یو هډوکې او د روټئ یوه ټکړه وه. خلقو اونه پیژندو. د روستو راتلونکو

---

(۱) صحیح مسلم (۱۰۶\۲) کتاب الجهاد باب الوفاء بالعهد ومسند أحمد (۳۹۵\۵)_

(۲) صحیح بخاری (۴۶۴\۱، ۴۶۵) کتاب بدء الخلق باب صفة إبلیس وجنوده رقم ۳۲۹۰_

(۳) سیرأعلام النبلاء (۳۶۲\۲)_

(۴) صحیح البخاری (۵۰۹\۱) کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الإسلام رقم ۳۶۰۶، ۳۶۰۷) (۱۰۴۹\۲) کتاب الفتن باب کیف الأمر إذا لم تکن جماعة رقم ۷۰۸۴ وصحیح مسلم (۱۲۷\۲) کتاب الإمارة باب وجوب ملازمة جماعة المسلمین عند ظهورالفتن )_

(۵) سیرأعلام النبلاء (۳۶۴\۲) وتهذیب الکمال (۵۰۱\۵ )_

(۶) تهذیب الکال (۵۰۶\۵، ۵۰۷) وخلاصة الخزرجی (۷۴)_

خلقو نه ئې چه کله تپوس اوکړو.نو معلومه شوه.چه دا خو هغه دې.کوم چه وړاندې لاړو.نو دا خلق راوړاندې شو.او سلام ئې اوکړو.حضرت حذيفه رضي الله عنه په دوى کښې مشرکس ته لوښې هډوکې او د روټئ کپړه ورکړله. هغه سترګې پناه کړې.او وې غوړزوله.يا ئې يو خادم ته ورکړله.(۱)

حضرت حذيفه رضي الله عنه چه کله مدائن ته اورسيدو.نو هغوى ته ئې د حضرت عمر رضي الله عنه خط واورولو.خلقو عرض اوکړو.چه تاسو حکم اوفرمايئ.مونږ د پوره کولو دپاره تيار يو.حضرت حذيفه رضي الله عنه اوفرمائيل.زه خپل ذات دپاره صرف خوراک، او خپلې سورلئ دپاره د وندې (چاره) مطالبه کوم.او بس (نور هيڅ نه غوارم).(۲)

**دحضرت عمر رضي الله عنه «انت اخى و انا اخوک» فرمائيل** دوى هلته يوې مودې پورې پاتې شو.بيا حضرت عمر رضي الله عنه دوى راوغوښتل.او پخپله لاره کښې پټ کيناستلو.چه دوى اوګورى.چه آيا ددوى په احوالو کښې څه تبديلى راغلې ده اوکه نه؟ نو کله ئې چه اوکتل.چه هيڅ تبديلى نه ده پيدا شوې.او هم هغه شان سره واپس راروان دې.په کوم شان سره چه تلې وو.نو هغوى ته مخې ته راغلل.او هغوى سره ملاو شو.او وې فرمائيل.«أنت أخي وأنا أخوك»(۳)

حضرت حذيفه رضي الله عنه د نبى کريم صلى الله عليه وسلم نه علاوه د حضرت عمر رضي الله عنه نه احاديث روايت کوى.او ددوى نه روايت کونکو کښې ابو وائل، زر بن حبيش، زيد بن وهب، ربعى بن حراش. صلة بن زفر، ثعلبه بن زهدم، ابو العاليه الرياحى،عبدالرحمن بن ابى ليلى، مسلم بن نذير، ابو ادريس خولانى رحمهم الله وغيره حضرات دى.(۴)

د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه د سلو نه زيات احاديث نقل دى.چه په دې کښې د متفق عليه احاديثو تعداد دولس دې.د بخارى د انفرادى احاديثو تعداد اته دې.او د مسلم د انفرادى احاديثو تعداد اوولس دې.(۵)

حضرت حذيفه رضي الله عنه په ۳۶ھ کښې دحضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه تقريباً څلوينښت ورځې پس وفات شوې دې.(۶) ،،رضى الله عنه وأرضاه،،۔

**قوله** وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ:

**دا ابوالعاليه څوک دې؟** حافظ قطب الدين حلبى رحمه الله پخپله شرح کښې ليکى.چه دا ابوالعاليه البراء (بتشديد الراء المهملة) دې.(۷) ده به چونکه غشى يا لرګى سيرل او جوړول. په

---

(۱) تهذيب الكمال (۵۰۶/۵)۔
(۲) سير أعلام النبلاء (۳۶۶/۲)۔
(۳) تهذيب الكمال (۴۹۷/۵، ۴۹۹) وسير أعلام النبلاء (۳۶۱/۲)۔
(۴) تهذيب الكمال (۴۹۷/۵، ۴۹۹) وسير أعلام النبلاء (۳۶۱/۲)۔
(۵) سير أعلام النبلاء (۳۶۱/۲) وخلاصة الخزرجى (۷۴)۔
(۶) تهذيب الكمال (۵۱۰/۵)۔
(۷) عمدة القارى (۱۲/۲)۔

دې وجه دوی ته ››براء‹‹ وائي.(١) چونکه ددوی په نوم کښې اختلاف دې. بعضو زیاد بن فیروز، بعضو أذینه، بعضو کلثوم او بعضو زیاد بن أذینه بنودلې دې.(٢)
دا ثقه دې.(٣) دوی ته د حضرت ابن عباس، حضرت ابن عمر او حضرت ابن الزبیر رضی الله عنهم نه سماع حاصل ده.(٤) علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دا ابوالعالیه غالباً رُفیع بن مهران ریاحی دې.(٥)
حافظ ابن حجر رحمه الله جزم سره فرمائیلی دی چه دلته د ابوالعالیه نه مراد رُفیع بن مهران ریاحی دې او دهغه حضراتو تغلیط ئې کړې دې کومو چه دا فرمائیلی دی چه د ابوالعالیه نه ››براء‹‹ مراد دې حافظ رحمه الله دلیل دا پیش کړې دې چه مذکوره حدیث (یعنی حدیث د یونس بن متی چه ددې تخریج روستو راروان دې) په ابوالعالیه الریاحی عن ابن عباس سره معروف دې په ابوالعالیه البراء عن ابن عباس سره معروف نه دې.(٦)
خو علامه عینی رحمه الله د حافظ د خبرې رد کولو کوشش کړې دې ددوی وینا ده چه هرکله ابوالعالیه البراء او ابوالعالیه رُفیع دواړه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما شاګردان دی نو یو ته بې دلیله ترجیح ورکول، چه هم دا یو مراد دې دویم مراد نه دې دا صحیح نه ده ترکومه پورې چه په دې حدیث کښې د ابوالعالیه ریاحی دې حدیث سره د معروف بالروایة کیدو تعلق دې نو ددې دپاره هم د یو معتمد نقل ضرورت دې.(٧)
حافظ ابن حجر رحمه الله پخپل کتاب ››انتقاض الاعتراض‹‹ کښې لیکلی دی. ((ان المصنف وصله فی التوحید، ولوراجعه العینی من هناك لما احتاج إلی طلب الدلیل))(٨)
**قول راجح** حقیقت دا دې چه اګرچه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په شاګردانو کښې دواړه ابوالعالیه دی خو دلته کښې مراد رفیع دې براء نه دې ځکه چه ټولو شارحینو بلکه پخپله علامه عینی رحمه الله په بخاری شریف کښې چه کوم کوم ځائې کښې دا حدیث راغلې دې هلته تصریح کړې ده چه د ابوالعالیه نه مراد رُفیع دې.(٩)

---

(١) عمدة القاری (١٢\٢)_
(٢) المصدراسابق وتقریب التهذیب (٦٥٣) رقم ٨١٩٧)_
(٣) المصادرالسابقة)_
(٤) تهذیب الکمال (١٢\٣٤)_
(٥) شرح الکرمانی (١٠\٢)_
(٦) فتح الباری (١٤٤\١)_
(٧) عمدة القاری (١٣\١)_
(٨) إرشاد الساری للقسطلانی (١٥٧\١)_
(٩) عمدةالقای (٢٩٢\١٥) کتاب أحادیث الأنبیاء باب قول الله عزو جل ﴿وهل أتاک حدیث موسی وکلم الله موسی تکلیماً (١١٦\٤) کتاب أحادیث الأنبیاء باب قول الله تعالی وإن یونس لمن المرسلین و(٢٢٥\١٨) کتاب التفسیر سورة الأنعام باب قوله ویونس ولوطاً وکلاً فضلنا علی العالمین و(١٩٠\٢٥) کتاب التوحید باب ذکر النبی صلی الله علیه وسلم وروایته عن ربه)_

بلکه په يو مقام کښې ئې دا تنبيه هم کړې ده چه د ابو العاليه کنيت د حضرت ابن عباس د يو بل شاګرد هم دې چه هغه براء نوم سره مشهور دې.(۱)

بيا حافظ ابوالحجاج رحمه الله په تحفة الاشراف کښې دا حديث د.. ابوالعاليه رفيع بن مهران عن ابن عباس.. په طريق سره نقل کړې دې.(۲)

بيا حافظ ابوالحجاج مزی رحمه الله د ..ابوالعاليه رُفيع عن ابن عباس.. په طريقه سره د نقل شوو احاديثو ذکر کړې دې.او د امام شعبه رحمه الله قول ئې د سنن ابی داوَد(۳) نه نقل کړې دې.(۴) «قال شعبة: إنما سمع قتادة من أبي العاليه أربعة أحاديث، حديث يونس بن متى، وحديث ابن عمر في الصلاة، وحديث القضاء ثلاثة، وحديث ابن عباس حدثني رجال مرضيون منهم عمر، و أرضاهم عندي عمر»

ددې عبارت نه دا معلومه شوه چه د يونس بن متى والا روايت. راوی ابوالعاليه رُفيع دې.او د ابوالعاليه البراء د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه په صحاح سته کښې صرف يو حديث نقل دې.«قدم النبي صلى الله عليه وسلم لصبح رابعة يلبّون بالحج فأمرهم أن يجعلوها عمرة، إلا من كان معه هدى»(۵)

حاصل دا چه مبحوث عنه (حديث باب) حديث يونس بن متى کوم چه د ..ابوالعاليه عن ابن عباس.. په طريق سره نقل دې.په دې کښې ابوالعاليه نه رُفيع بن مهران رياحی مراد دې.براء مراد نه دې.والله اعلم.

ابوالعاليه رياحی: دا ابوالعاليه رفيع بن مهران رياحی بصری دې د بنو يربوع يوې ښځې دوی له ازاد کړې وو.په دې وجه د ولاء په اعتبار سره رياحی ونيلې کيږی.(۶) دوی د جاهليت زمانه موندلې وه.د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د وفات نه دوه کاله پس ئې اسلام راوړلې وو.(۷)

دوی دحضرت عمر، حضرت علی، حضرت ابی.حضرت ابو ذر.حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت ابوموسی، حضرت ابو ايوب.حضرت زيد بن ثابت، حضرت حذيفه، حضرت انس، حضرت ثوبان، حضرت رافع بن خديج، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت ابوسعيد خدری، حضرت ابوهريره او حضرت عائشه رضي الله عنهم نه روايت د حديث کړې دې.

ددوی نه په روايت کونکو کښې ثابت بنانی.بکر بن عبدالله مزنی، ابو خلده خالد بن دينار، خالد الحذاء، شعيب بن الحبحاب(۹۷، عاصم الاحول، قتاده، محمد بن سيرين او حفصه بنت سيرين رحمهم الله وغيره حضرات دی.(۸)

---

(۱) عمدة القاری(۱۵\۲۹۳)_
(۲) تحفة الأشراف (۴\۴۸۵) رقم (۵۴۲۱)_
(۳) سنن أبي داود كتاب الطهارة باب الوضوء من النوم رقم ۲۰۲)_
(۴) تحفة الأشراف (۴\۳۸۵) رقم (۵۴۲۱)_
(۵) تحفة الأشراف (۵\۲۷۶، ۲۷۷) رقم ۶۵۶۵)_
(۶) تهذيب الكمال (۹\۲۱۴) وسير أعلام النبلاء (۱۲\۲۰۷)_
(۷) المصادر السابقة)_
(۸) د شيوخ اوتلامذه د فهرست دپاره اوګورئ أعلام النبلاء (۴\۲۰۷) وتهذيب الكمال(۹\۲۱۵، ۲۱۶)-

يحي بن معين، ابوزرعه او ابو حاتم ﷺ فرمائى.،،ثقة،،(١)
ابوالقاسم لالكانى ﷺ فرمائى.،،ثقة مجمع على ثقته،،(٢)
ابن سعد رحمه الله فرمائى.،،وكان ثقة كثير الحديث،،(٣)
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.،،وهو ثقة،،(٤)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.،،ثقة كثير الإرسال،،(٥)
ددې نقلونو نه معلومه شوه.چه د ابوالعاليه رحمه الله په ثقاهت باندې اجماع ده.هم دا وجه ده.چه داصول سته مصنفينو په دوى باندې اعتماد کړې دې.اوددوى داحاديثوتخريج ئې کړې دې.

د،،حديث ابى العالية الرياحى رياح،،مطلب: البته دامام شافعى رحمه الله نه منقول دى.«حديث أبى العالية الرياحى رياح»(٦)
خو دامام شافعى رحمه الله مقصود ددوى ټول احاديث رد کول نه دى.بلکه ددوى نه روايت شوى مرسل روايت «حديث القهقهة فى الصلاة» ردکول مقصود دى.ځکه چه مرسل ددوى په نيز حجت نه دې.لکه چه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.«فأما قول الشافعى رحمه الله، حديث أبى العالية الرياحى، رياح، فإنما أراد به حديثه الذى أرسله فى القهقهة فقط، ومذهب الشافعى أن المراسيل ليست بحجة، أما إذا أسند أبوالعالية فحجة»(٧)
دغه شان حافظ ابن عدى رحمه الله فرمائى.«ولأبى العالية الرياحى أحاديث صالحة غير ما ذكرت، وأكثر ما نقم عليه من هذا الحديث حديث الضحك فى الصلاة، وكل من رواه غيره فإنما مدارهم ورجوعهم إلى أبى العالية والحديث له، وبه يعرف، ومن أجل هذا الحديث تكلموا فى أبى العالية، وسائر أحاديثه مستقيمة صالحة»(٨)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«احتج به الجماعة لكن ليس له فى البخارى سوى ثلاثة أحاديث من روايته عن ابن عباس خاصة»(٩)

---

(١) تهذيب الكمال (٩\٢١٦)-
(٢) المصادر السابقة)-
(٣) الطبقات الكبرى لابن سعد(٧\١١٧)_
(٤) ميزان الإعتدال (٢\٥٤)_
(٥) تقرب التهذيب (٢١٠) رقم ١٩٥٣)_
(٦) الكامل لابن عدى (٣\١٦٢)_
(٧) ميزان الإعتدلا (٢\٥٤)-
(٨) الكمال لابن عدى (٣\١٧٠)_
(٩) هدى السارى(٤٠٢)_

حاصل دا چه په دوی باندې کلام صرف امام شافعی رحمه الله کړې دې.او هغه هم د مرسل په طریقه روایت کولو په وجه. حالانکه فی نفسه ابوالعالیه متفق علیه طور باندې ثقه دې.بیا داچه امام بخاری رحمه الله ددوی دا متکلم فیه حدیث هم نه دې نقل کړې.نو د ابو العالیه په محتج به کیدو کښې هیڅ کلام نشته.

ابوالعالیه رحمه الله لره بعضو حضراتو په علوم د قرآن کښې د صحابه کراموﷺ نه پس اعلم ګرخولې دې.لکه چه امام ابوبکر بن ابی داؤد رحمه الله فرمائی «لیس أحد بعد الصحابة أعلم بالقرآن من أبي العالية، وبعده سعيد بن جبير، وبعده السدی، وبعده سفيان الثوری»([1])

**د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په نیز د ابوالعالیه رحمه الله مقام** د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په نیز د ابوالعالیه رحمه الله څه مقام وو؟ ددې اندازه ددې واقعې نه اولګوئ. ابوالعالیه رحمه الله فرمائی

«كنتُ آتي ابن عباس، فيرفعني على السرير، وقريش أسفل من السرير، فتغامزبي قريش، وقالوا: يرفع هذا العبد على السرير؟ ففطن بهم ابن عباس، فقال: ان هذا العلم يزيد الشريف شرفاً ويجلس المملوك على الأسرة»([2])

د امام ابوالعالیه رحمه الله وفات په شوال ۹۰ھ کښې اوشو.بعضو حضراتو په سن د وفات کښې نور اقوال هم نقل کړی دی.([3]) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

**قوله** عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما: د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات په ..بدء الوحی.. کښې او په کتاب الایمان کښې د ..باب کفران العشیر وکفر دون کفر.. لاندې تیر شوی دی.([4])

**قوله** عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرْوِي عَنْ رَبِّهِ:

**د حدیث قدسی تعریف** نبی کریم ﷺ چه څه هم بیانوی.هغه ټول په قاعدې د ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ۝﴾ د الله تعالی د طرفه دې.خو بعضې وختونو کښې نبی کریم ﷺ د الله دطرفه دنقل تصریح کوی. او په بعضو وختونو کښې نه کوی.نبی کریم ﷺ چه د کوم حدیث په باره کښې د الله تعالی د طرفه د نقل کولو تصریح اوفرمائی.هغې ته ،،حدیث الهی،، او ،،حدیث قدسی،، ونیلې شی.([5])

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ددې تعلیق نه مراد دا حدیث دې.«لا ينبغي لعبد أن يقول ،،أنا خير من يونس بن متى......،،»([6])د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دا تعلیق امام بخاری رحمه الله په ..کتاب احادیث

---

[1]) تهذيب الكمال (۹\۲۱۸) وسير أعلام النبلاء (۲۰۸\۱٤)_
[2]) تهذيب الكمال(۹\۲۱۷)_
[3]) تهذيب الكمال(۹\۲۱۸)_
[4]) كشف البارى(۱\٤۳٥) و(۲\۲۰٥)_
[5]) كشاف إصطلاحات الفنون ((۱\۲۸۰ )_
[6]) تعليق التعليق (۲\٦۳)_

الانبياء، كتاب النفسير، او كتاب التوحيد، كښې موصولا تخريج كړې دې.(۱)

د امام بخارې رحمه الله نه علاوه امام مسلم او امام ابوداؤد رحمهما الله هم پخپلو خپلو كتابونو كښې موصولا ددې تخريج كړې دې.(۲)

**قوله** وَقَالَ أَنَسٌ: د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان ..باب من الايمان ان يحب لاخيه ما يحب لنفسه.. لاندې تير شوى دى.(۳)

**قوله** عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرْوِيهِ عَنْ رَبِّهِ عَزَّوَجَلَّ:

**دلته د حضرت انس رضي الله عنه كوم حديث مراد دې؟** ددې روايت نه «إذا تقرب العبد إلي شبراً تقربت إليه ذراعاً وإذا تقرب مني ذراعاً تقربت منه باعاً، وإذا أتاني مشياً أتيته هرولة» حديث مراد دې.(۴)

حافظ رحمه الله فرمائيلى دى چه ددې نه مراد د مسلم هغه روايت دې. كوم چه «همام عن قتادة عن أنس، عن النبي صلى الله عليه وسلم يرويه عن ربه عزوجل قال: إن الله عزوجل لا يظلم المؤمن حسنة....» طريق سره نقل دې.(۵) خو د مسلم شريف په متداول (مروج) نسخو كښې په يوه نسخه كښې هم د «عن ربه عزوجل» تصريح موجود نه ده.(۶)

**د مذكوره تعليق تخريج:** دا تعليق امام بخارى رحمه الله موصولاً په كتاب التوحيد كښې نقل كړې دې.(۷)

**قوله** وَقَالَ أَبُوهُرَيْرَةَ: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان كښې د ..باب امور الايمان.. لاندې تيرشوى دى.(۸)

---

(۱) صحيح بخارى (۴۸۱\۱) كتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله تعالى ﴿وهل أتاك حديث موسى﴾ رقم ۳۳۹۵ و(۴۸۵\۱) كتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله تعالى :﴿وإن يونس لمن المرسلين﴾ رقم ۳۴۱۳ (۲\ ۶۶۲) كتاب التفسيرسورة الأنعام باب ويونس باب ﴿ويونس ولوطاً وكلاً فضلنا على العالمين﴾ رقم ۴۶۳۰) (۱۱۲۵\۲) كتاب التوحيد باب ذكرالنبي صلى الله عليه وسلم و روايته عن ربه رقم ۷۵۳۹)_

(۲) أنظر الصحيح للإمام مسلم(۲۶۸\۲) كتاب الفضائل. باب من فضائل يونس عليه السلام والسنن لأبى داؤد. كتاب السنة. باب التخيير بن الأنبياء عليهم السلام. رقم:(۴۶۶۹)

(۳) كشف البارى(۴\۲)_

(۴) تعليق التعليق(۶۴\۲)

(۵) المصدرالسابق)_

(۶) صحيح مسلم (۳۷۴\۲) كتاب صفة المنافقين. باب جزاء المؤمن بحسناته.... مطبوعه قديمى كتب خانه و (۲۱۶۲\۴) رقم(۲۸۰۸) محققه شيخ محمد فؤاد الباقى رحمه الله)_

(۷) الصحيح البخارى(۱۱۲۵\۲) كتاب التوحيد. باب ذكرالنبى صلى الله عليه وسلم وروايته عن ربه. رقم (۷۵۳۹)_

(۸) كشف البارى(۶۵۹\۱)_

**قوله عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْوِيهِ عَنْ رَبِّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ:**

**ددې نه کوم حديث مراد دی؟** ① ددې نه هم هغه حديث مراد کيدې شي. کوم چه دحضرت انس ﷺ نه نقل دې. يعنی «إذا تقرب العبد....» والا روايت. ځکه چه دا روايت قتاده د حضرت انس ﷺ نه د حضرت ابوهريره ﷺ د واسطې نه بغير نقل کړې دې. ② او سليمان تيمي دا د «عن أنس عن أبي هريرة» په طريق سره روايت کړې دې. ③ او حافظ ابن حجر ﷫ فرمائي. چه ددې نه مراد هغه روايت دې. کوم چه د «شعبة عن محمد بن زياد عن أبي هريرة» په طريق سره نقل دې. «لكل عمل كفارة والصوم لي وأنا أجزي به....»(۱)

**د مذکوره دواړو حديثونو تخريج:** رومبی حديث يعنی د «إذا تقرب العبد...» والا حديث امام بخاری ﷫ په کتاب التوحيد کښې موصولاً ذکرکړې دې.(۲) دغه شان امام مسلم ﷫ هم پخپل صحيح کښې ددې موصولاً تخريج کړې دې.(۳)

د دويم حديث «لكل عمل كفارة» تخريج هم موصولاً امام بخاری ﷫ پخپل صحيح کښې مختلفو ځايونو کښې کړې دې.(۴) او امام مسلم ﷫ هم پخپل صحيح کښې دا موصولاً نقل کړې دې.(۵)

**حديث معنعن او ددې حکم:** حديث معنعن هغه حديث ته وائي. د کوم په سند کښې چه د ،،عن،، لفظ استعمال کړې شي. د تحديث او سماع تصريح نه وی. اګرچه په پوره سند کښې د ،،عن،، استعمال صرف يوځائې کښې ولې نه وی.(۶)

**د حديث معنعن په حکم کښې اختلاف:** ① دابوطالب، شيخ حسن الرصاص. او د منصور بالله رائې دا ده. چه حديث معنعن مطلقاً قابل د احتجاج نه دې. ترکومه پورې چه اتصال واضح نه وی. ځکه چه په دې کښې د انقطاع احتمال دې. نو د مرسل او منقطع پشان دا هم

---

(۱) (تعليق التعليق (۶۴/۲)_

(۲) (صحيح البخاری(۱۱۰/۱۲)کتاب التوحيد. باب قول الله تعالى:﴿ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهُ ﴾ رقم(۷۴۰۵) و(۱۱۱۶/۱۲) کتاب التوحيد. باب قول الله تعالى:﴿ يُرِيدُونَ أَنْ يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللّٰهِ ﴾ رقم(۷۵۰۵)و(۱۱۲۵/۱۲) کتاب التوحيد. باب ذکر النبی ﷺ وروايته عن ربه رقم(۷۵۳۷)_

(۳) صحيح مسلم(۳۴۱/۲) کتاب الذکر والدعاء. باب الحث على ذکر الله تعالى)_

(۴) صحيح بخاری(۲۵۴/۱) کتاب الصوم. باب فضل الصوم. رقم(۱۸۹۴). و(۲۵۵/۱) کتاب الصوم. باب هل يقول..إنی صائم إذا شتم..رقم(۱۹۰۴) و(۸۷۸/۲) کتاب اللباس. باب ما يذکر فی المسک. رقم(۵۹۲۷) و(۱۱۱۶/۲) کتاب التوحيد. باب قول الله تعالى﴿ يُرِيدُونَ أَنْ يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللّٰهِ ﴾ رقم(۷۴۹۲) و(۱۱۲۵/۲) کتاب التوحيد. باب ذکر النبی ﷺ وروايته عن ربه. رقم(۷۵۳۸)_

(۵) (صحيح مسلم(۳۶۳/۱). کتاب الصوم. باب فضل الصيام)_

(۶) ظفر الأمانی(۲۱۷)و فتح المغيث للعراقی (۳۷)_

قابل د احتجاج نه دی.(۱) امام نووی رحمه الله فرمائی.((وهذا المذهب مردود باجماع السلف))(۲)
④ د امام بخاری، علی بن المدینی او اکثرو محدثینو مذهب دا دې چه حدیث معنعن دوو شرطونو سره د متصل په حکم کښې دې.
یو داچه د راوی او مروی عنه په مینځ کښې. په ژوند کښې کم ازکم یو ځل لقاء ثابت وی.
دویم داچه راوی مدلس نه وی.که په دې دواړو کښې یو شرط هم فوت وی.نو هغه حدیث نه به متصل نشی وئیلې.(۳)
③ امام مسلم رحمه الله او ددوی متبعین فرمائی.که راوی مدلس نه وی.راوی او مروی عنه دواړه خپل مینځ کښې هم عصر وی.یعنی لقاء ممکن وی.نو دا حدیث معنعن به اتصال باندې محمول کولې شی.د لقاء ثابتیدل ضروری نه دی.(۴) امام مسلم رحمه الله خپل دا مذهب د صحیح مسلم په مقدمه کښې شد ومد سره پیش کړې دې.او د ملاقات د ثبوت قول ئې دخپلو بعضو معاصرینو نه نقل کړې دې.او په هغوی ئې زبردست رد کړې دې.(۵)
امام نووی رحمه الله اګرچه د امام مسلم رحمه الله مذهب مرجوح او ضعیف ګرځولې دې.(۶) خو حقیقت دا دې.چه د امام مسلم رحمه الله مذهب پخپل ځائې ډیر قوی دې.
د امام بخاری رحمه الله د دلیل خلاصه دا ده.چه استقراء په دې خبره باندې دلالت کوی.چه کوم راویان مدلس نه دی.او د هغوی د خپلو شیوخو نه لقاء هم ثابته ده.نو هغوی عادةً د ..عن،، استعمال سماع دپاره کوی.نو ددوی معنعن روایات به اتصال باندې محمول وی.ځکه چه کله یو ځل لقاء ثابته شی.نو په دې باندې غالب ګمان حاصلیږی.چه ټول روایات به ئې سماعاً حاصل کړې وی.چونکه په دې باب کښې غالب ګمان معتبر دې.په دې وجه صرف هم په دې باندې اکتفاء اوکړې شوه.حالانکه د غالب ګمان دا کیفیت په هغه صورت کښې نه دې.په کوم کښې چه د لقاء امکان وی.خو ددې ثبوت نه وی.(۷)

امام مسلم رحمه الله د خپل مذهب اثبات دپاره فرمائی.چه د ،،ثبوتِ لقاء ولو مرةً،، دا شرط یو محدث نه دې لګولې.نو اول خو دا د اجماع خلاف دې .بیا داسې ځومره روایتونه دی.چه په هغې کښې د راوی او مروی عنه په مینځ کښې معاصرت ثابت دې.خو لقاء ثابت نه ده.ددې باوجود هیڅ یو محدث داسې حدیثونه غیرصحیح یا منقطع اونه ګرځول.
بیا دا خبره هم قابل دغور ده.چه دا احتمال د انقطاع کومه چه په ،، معاصرتِ محضه،،(د

(۱) توضیح الأفکار(۱\۳۰۳) وظفر الأمانی(۲۱۸)_
(۲) شرح النووی علی صحیح مسلم(۱\۲۱) مقدمة صحیح مسلم. باب صحة الإحتجاج بالحدیث المعنعن.....)_
(۳) فتح المغیث للعراقی(۷۳، ۷۴) وظفر الأمانی(۲۱۹)_
(۴) المصدر السابق)_
(۵) مقدمة صحیح مسلم(۱\۲۴) باب صحة الإحتجاج بالحدیث المعنعن)_
(۶) شریح النووی علی صحیح مسلم(۱\۲۱)_
(۷) شرح نووی لصحیح مسلم(۱\۲۱) وظفر الأمانی(۲۱۹)۰

لقاء د ثبوت نه بغير) كنبې موندلې كيږي.هغه به د ،،ثبوتِ لقاءٍ ولو مرةً،، په صورت كنبې هم موندلې كيږي.تر كومه پورې چه راوی په هرهر حديث كنبې د سماع تصريح اونكړی.(۱)

بيا دلته ددې خبرې لحاظ هم ساتل پكار دی.چه بعضو حضراتو نقل كړی دی.چه د ،،ثبوتِ لقاءٍ ولو مرةً،، دا شرط صرف د ابن المدينی رحمه الله په نيز دی.حالانكه د امام بخاری رحمه الله مذهب هم هغه دې.كوم چه د امام مسلم رحمه الله دې. يعنی د حديث په اصل صحت كنبې دا شرط نشته.چه لقاء كم ازكم يوځل ثابت وی.البته پخپل ،،صحيح،، كنبې دوی ددې شرط التزام كړې دې.چه د يو داسې راوی عنعنه نه ذكركوی.چه هغه ته د خپل شيخ سره كم ازكم يو ځل لقاء شوې نه وی.(۲)

د دواړو مذهبونو په مينځ كنبې موازنه او محاكمه دپاره د اصول حديث لويو كتابونو طرف ته مراجعت اوكړئ.(۳)

④ علامه ابوالحسن قابسی رحمه الله فرمائی.چه صرف مطلق لقاء هم نه. بلكه د لقاء او ادراك ښكاره او واضح كيدل ضروری دی.(۴)

⑤ علامه ابوالمظفر سمعانی شافعی رحمه الله فرمائی.چه د متصل ګرځولو دپاره صرف واضح لقاء هم كافی نه ده.بلكه دا ضروری ده.چه راوی ته شيخ سره طويل صحبت حاصل شوې وی.(۵)

⑥ مشهور قاری ابو عمرو دانی رحمه الله فرمائی.چه صرف زيات صحبت هم كافی نه دې.بلكه ددې راوی د خپل شيخ نه روايت سره معروف كيدل ضروری دی.(۶)

علامه عبدالحي لكهنوی رحمه الله فرمائی.چه دا ټول شپږ مذاهب دی.په دې كنبې سوا د دوو مذهبونو نه. باقی ټول مردود دی.

① يو د امام بخاری رحمه الله مذهب دې.چه دا احوط دې.

② او دويم د امام مسلم رحمه الله مذهب دې.چه دې كنبې زيات وسعت دې.(۷)

**حديثِ مؤنن او ددې حكم:** كله كله د حديث په سند كنبې راوی د ،،ان،، استعمال كوی.

---

۱) مقدمة صحيح مسلم(۱۱\۲-۲٤)_

۲)قاله إبن كثير فی ،،إختصار علوم الحديث،،(٥٤) النوع الحادی عشر: المعضل. وردّه الحافظ ابن حجر فی ،،النكت علی كتاب إبن الصّلاح،،(۲\٥۹٥) فقال. لا ......و أخطا فی هذه الدعوی. بل هذا شرط فی أصل الصحة. عند البخاری. فقد أكثر من تعليل الأحاديث فی تاريخه بمجرد ذالک)_

۳) ظفرالأمانی(۲۱۹-۲۲۲) والنكت علی كتاب ابن الصلاح (۲\٥۹٥- ٥۹۹) و شرح النووی علی صحيح مسلم (۱\۲۱-۲٤) ومقدمة فتح الملهم (۱\۱۰۹-۱۱۲) وتوضيح الأفكار(۱\۲۹۹- ۳۰۳) والموقظة (٤٤) و(۱۳٤، ۱٤۰)_

٤) ظفرالأمانی(۲۲۲) وتدريب الراوی(۱\۲۱٦) النوع الحادی عشر... وفتح المغيث للعراقی(۷٤)_

٥) المصدرالسابق)_

٦) المصدرالسابق)_

۷) ظفرالأمانی(۲۲۲)_

داسې حدیث ته ،،موئن،، وائي.([1]) ددې په باره کښې هم اختلاف دې.چه آیا دا به متصل ګرځولې شي اوکه نه؟
د امام مالک رحمه الله مذهب دا دې چه دا د ،،عن،، په حکم کښې دې.او متصل دې.ابن عبدالبر رحمه الله د جمهور محدثینو رائې هم دا نقل کړې ده.چه دا هم د ،،عن،، په شان اتصال باندې دلالت کوي.په دې شرط چه ددې کوم شرطونه وړاندې ذکرشوي دي.هغه اوموندې شي.او د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه منقول دي.چه ،،ان،، او ،،عن،، دواړه برابر نه دي.([2])
حافظ عراقي رحمه الله فرمائي.که راوي داسې حدیث روایت کوي.چه په هغې کښې څه قصه یا واقعه بیان کړې شوې وي.نو دا به کتلې شي.چه آیا راوي پخپله ددې شاهد دې اوکه نه دې.مثلاً صحابي یوه واقعه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په وړاندې اوکتله.یا د صحابه کرامو رضی الله عنهم په مینځ کښې څه واقعه راپیښه شوه.او ددې مشاهده صحابي اوکړله.او بیا ئې دا روایت کړله.نو دا متصل ده.اوکه دوی پخپله مشاهده اونکړله.نو بیا هم دا د صحابي مرسل ده.چه دا د متصل په حکم کښې دې.او که راوي ددې په خپله شاهد نه دې.بلکه د نبوت د زمانې یوه واقعه څوک تابعي روایت کوي.نو دا منقطع دې.
دغه شان که یو تابعي داسې واقعه د صحابي نه نقل کوي.چه د هغې واقع کیدل ده پخپله مشاهده کړې ده.نودا متصل ده.اوکه پخپله ئې مشاهده نه ده کړې.خو صحابي طرف ته ئې نسبت کړې دې.نو دا هم متصل ده.اوکه نه ئې پخپله مشاهده اوکړله.او نه ئې صحابي طرف ته نسبت اوکړو.نو دا منقطع ده.ددې مثال د قیس بن سعد روایت دې.«عن عطاء بن أبي رباح عن ابن الحنفية، أن عماراً مرّ بالنبي صلی الله علیه وسلم فسلم عليه، فردّ عليه السّلام» دا روایت به منقطع ګڼړلې شي.ځکه چه ابن الحنفیه تابعي دې.دوی دا واقعه پخپله کتلې هم نه ده.او نه ئې صحابي طرف ته ددې نسبت کړې دې.بلکه واقعه ئې پخپله براه راست بیان کړله.
ددې په خلاف هم دا واقعه په دې طریقه نقل ده.«أبو الزبير عن محمد بن الحنفية عن عمار، قال: أتيتُ رسول الله صلی الله علیه وسلم فسلمتُ عليه، فردّ عليه السلام» دلته واقعه محمد بن الحنفیه رحمه الله حضرت عمار رضی الله عنه طرف ته منسوب کړې ده.نو دا مسند او موصول ده.([3])
د ،، **قال فلان، ذكر فلان**،، وغیره حکم: حافظ ابن الصلاح رحمه الله تصریح کړې ده.که یو راوي ،،**قال فلان**،،یا ،،**ذكر فلان**،، یا ،،**فعل فلان**،،یا،،**حدّث فلان**،، یا ،،**كان يقول كذا وكذا**،، اووائي.نو دا هم په ظاهر کښې اتصال باندې محمول دې.په دې شرط چه د تدلیس نه مامون وي.او لقاء یا معاصرت ثابت وي.([4]) البته که ،،**قال فلان**،،یا ،،**قال لنا فلان**،،یا ،،**ذكر لي فلان**،، یا،،ذکر

---

[1]) حاشیه تدریب الراوی(۲۱۷/۱)_
[2]) تقریب النووی مع شرح تدریب الراوی (۲۱۷/۱) ومقدمة ابن الصلاح(۲۹)_
[3]) فتح المغیث للعراقی(۷۶) والتقیید والإیضاح(۷۵، ۷۶)_
[4]) مقدمة ابن الصلاح(۲۹)_

لنافلان»، اووائی.او روایت کړی.نو دا په هرصورت کښې اتصال باندې محمول دې.لکه څنګه چه مونږ په دې باب کښې د ،،قال لنا الحميدی.....،، لاندې تفصيل سره ذکرکړی دی.

## حديث باب

٦٠-((حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ (١)قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَإِنَّهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ فَحَدِّثُونِي مَا هِيَ فَوَقَعَ النَّاسُ فِي شَجَرِ الْبَوَادِي قَالَ عَبْدُ اللَّهِ وَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ فَاسْتَحْيَيْتُ ثُمَّ قَالُوا حَدِّثْنَا مَا هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ هِيَ النَّخْلَةُ))

[٦٢ ، ٧٢ ، ١٣١ ، ٢٠٩٥ ، ٤٤٢١ ، ٥١٢٩ ، ٥١٣٣ ، ٥٧٧١ ، ٥٧٩٢]

## رجال الحديث

① قتيبه بن سعيد: دا شيخ الاسلام، راوية الاسلام قتيبه بن سعيد ثقفی رحمه الله دې.ددوی حالات وړاندې د کتاب الايمان په ،،باب إفشاء السلام من الإسلام،، کښې تير شوی دی.(٢)

② اسماعيل بن جعفر: دا ابواسحاق اسماعيل بن جعفر بن کثيرانصاری زُرقی مدنی دې.ددوی حالات هم د کتاب الايمان ،،باب علامة المنافق،، لاندې تيرشوی دی.(٣)

③ عبدالله بن دينار: دوی حالات مختصراً اګرچه وړاندې ذکر شوی دی.(٤) خو دلته لږشان تفصيل سره ذکر کوو.دا مشهور محدث ابوعبدالرحمن عبدالله بن دينار قرشی عدوی مدنی دې.د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مولا وو.(٥)

---

(١)الحديث اخرجه البخاری ايضاً فی صحيحه(١\٤١) كتاب العلم. باب طرح الإمام المسألة على أصحابه ليختبر ما عندهم من العلم. رقم(٦٢) و(١\١٧، ١٨) كتاب العلم. باب الفهم فى العلم. رقم(٧٢) و(١\٢٤) كتاب العلم. باب الحياء فى العلم رقم(١٣١) و(١\٢٩٣، ٢٩٤) كتاب البيوع. باب بيع الجمّار و أكله. رقم(٢٢٠٩)و(٢\٦٨١) كتاب التفسير. سورة إبراهيم. باب ﴿كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ﴾ باب بركة النخل. رقم(٥٤٤٨)و(٢\٨١٩) كتاب الأطعمة. باب أكل الجمار . رقم(٥٤٤٤) و(٢\٨١٩) كتاب الأطعمةو باب بركة النخل. رقم(٥٤٤٨)و(٢\٩٠٤) كتاب الأدب. باب ما لايُستحيا من الحق للتفقه فى الدّين. رقم(٦١٢٢) و(٢\٩٠٧) كتاب الأدب. باب إكرام الكبير. و يبدأ الأكبر بالكلام والسؤال.رقم(٦١٤٤). ومسلم فى صحيحه(٢\٣٧٥، ٣٧٦)كتاب صفة المنافقين.باب.. مثل المؤمن مثل النخلة.والترمذی فى جامعه.فى كتاب الأمثال.باب ما جاء فى مثل المؤمن القارئ للقرآن غير القارى. رقم(٢٨٦٧)

(٢) كشف البارى(٢\١٨)_

(٣) (كشف لبارى(٢\٧١)_

(٤) كشف اباری(١\٦٥٨) كتاب الإيمان. باب أمور الإيمان)_

(٥) تهذيب الكمال (١٤\٤٧١) وسير أعلام النبلاء (٥\٢٥٣)_

دوی د حضرت انس، حضرت عبدالله بن عمر، نافع مولا ابن عمر، سلیمان بن یسار، ذکوان او محمد بن اسامه بن زید رحمهم الله نه روایت کوی. د دوی نه روایت کونکو کښې سفیان ثوری، سفیان بن عیینه، امام مالك، لیث بن سعد، شعبة بن الحجاج، اسماعیل بن جعفر مدنی، او عبدالعزیز بن الماجشون رحمهم الله پشان ډیر حضرات دی.(١)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی.«ثقة مستقيم الحديث»(٢)

امام یحی بن معین، ابوزرعه، ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله فرمائی «ثقة»(٣)

ابن سعد رحمه الله فرمائی.«ثقة كثير الحديث»(٤)

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.(٥)

امام عجلی رحمه الله فرمائی.«ثقة»(٦)

امام ابن عیینه رحمه الله فرمائی.«لم يكن بذاك ثم صار»(٧)

امام ربیعه رحمه الله فرمائی.«وكان من صالحي التابعين صدوقا دينا»(٨)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«أحد الأئمة الأثبات»(٩)

او حافظ ذهبی رحمه الله ددوی تذکره شروع کولو کښې لیکی.«الإمام المحدث الحجة....»(١٠) خو ددې ټولو توثیقاتو په خلاف امام عقیلی دوی لره د مجروح کولو کوشش کړې دې.لکه چه دوی فرمائیلی دی.«وأما رواية المشائخ عنه ففيها اضطراب»(١١)

حافظ ذهبی رحمه الله د عقیلی ښه پوره تردید کړې دې.لکه چه دوی فرمائی.«وقد أساء أبوجعفر العقيلي بإيراده في كتاب الضعفاء له، فقال: في رواية المشائخ عن عبدالله بن دينار اضطراب، ثم إنه أورد له حديثين مضطربي الإسناد، ولا ذنب لعبدالله، وإنما الإضطراب من الرواة عنه، وقد وثقه جماعة»(١٢) او هم

---

١) دشیوخ اوتلامذه فهرست دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال(١٤\٤٧٢، ٤٧٣)وسیر أعلام النبلاء(٥\٢٥٤)
٢) (تهذیب الکمال(١٤\٤٧٣)_
٣) المصدرالسابق)_
٤)المصدرالسابق)_
٥) کتاب الثقات((٥\١٠)_
٦) تهذیب التهذیب(٥\٢٠٢)_
٧) المصدرالسابق)_
٨) المصدرالسابق)_
٩) میزان الإعتدال)_
١٠) سیر أعلام النبلاء(٥\٢٥٣)_
١١) کتاب الضعفاء الکبیر للعقیلی(٢\٢٤٧)_
١٢) سیر أعلام النبلاء(٥\٢٥٤، ٢٥٥)_

دوی فرمائی:((.....فلا یلتفت إلی فعل العقیلی، فإن عبدالله حجة بالإجماع، وثقه أحمد و یحیی و أبو حاتم.....))[1] نو د امام عقیلی جرح مردود ده.

د عبدالله بن دینار رحمه الله وفات ۱۲۷ھ کښې شوې دې.[2] ،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

۳ **حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما:** ددوی مختصر حالات د کتاب الایمان ،،باب الإیمان وقول النبی ﷺ ،،بنی الإسلام علی خمس،،لاندې تیر شوې دې.[3]

**قوله: إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَإِنَّهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ:** بې شکه په ونو کښې یوه ونه داسې ده.چه دهغې پاڼړې نه غورزیږی.او هغه د مسلمان پشان ده.

په،،مثل المسلم،،کښې،،مثل،،((بکسر المیم وسکون الثاء المثلثة، او بفتحهما)) په دواړو طریقو ونیل صحیح دی.[4]

**د کجورې د ونې او مسلمان په مینځ کښې وجوه تشبیه:** د مسلمان او د کجورې د ونې په مینځ کښې وجوه د تشبیه کوم کوم دی؟ په دې کښې مختلف اقوال منقول دی.

۱ بعضو حضراتو وجه د تشبیه‌دا بیان کړې ده.چه د کجورې د ونې خاصه دا ده.چه که په اوبو کښې ددې (کجورې) سر ډوب کړې شی.نو مړه کیږی.لکه څنګه چه سرې ډوب شی.نو مړ کیږی.یا دا که د کجورې سر کټ کړې شی.نو ونه اوچیږی.لکه څنګه چه د سړی سر کټ کړې شی.نو هغه ختمیږی.

۲ بعضو حضراتو ونیلی دی.چه په کجوره کښې مذکر او مونث دواړه وی.او هلته د تلقیح او تابیر (په ماده کجوره کښې د نرکجورې غوټۍ لګولو) سره میوه راځی.دغه شان په انسانانو کښې هم مذکر او مونث دواړه وی.او د ښځې خاوند د اجتماع نه پس توالد او تناسل کیږی.

۳ بعضو حضراتو ونیلی دی.چه د نر کجورې په غونچو کښې داسې بوئی وی.لکه څنګه چه د انسان په منی کښې وی.

۴ بعضو حضراتو ونیلی دی.چه په کجوره کښې د عشق صفت دې.لکه څنګه چه انسان عاشق وی.[5]

مذکوره وجوه دتشبیه ټول ضعیف دی.ځکه چه دلته کښې د کجورې او مسلمان په مینځ کښې وجوه د تشبیه مطلوب دی.حالانکه مذکوره وجوه مسلمان سره خاص نه دی.بلکه دا

---

[1] ) میزان الإعتدال( ۲\۴۱۷)_

[2] ) تهذیب الکمال( ۱۴\۴۷۳) و سیر أعلام النبلاء(۵\۲۵۵)_

[3] ) کشف الباری (۱\۶۳۷)_

[4] ) عمدة القاری(۲\۱۴)_

[5] ) نقل هذه الجوه الکرمانی فی شرحه (۲\۱۱) وضعفها، وانظر أیضاً العمدة (۲\۱۴) والفتح(۱\۱۴۷)_

خبري کافرانو کښې هم موندلې کیږی.([1])

⑤ یوه وجه د شباهت دا بیان کړې شوې ده.چه یو حدیث کښې دی.«أکرموا عمتکم النخلة فإنها خلقت من فضلة طینة آدم....»([2])دغه شان په یو دویم حدیث کښې دی.«أحسنوا إلی عمتکم النخلة، فإن الله خلق آدم و فضل من طینة، فخلق منها النخلة»([3]) په دې دواړو حدیثونو کښې کجوره د انسان دپاره عمه(د پلار خور) ګرځولې شوې ده.هم دا وجه د شباهت ده.خو① اول خو دا وجه د شباهت هم مسلمان سره مخصوص نه ده.بلکه مسلمان او کافر دواړو ته عام ده.② او دویم دا چه دا دواړه حدیثونه ثابت هم نه دی.([4])

**د تشبیه یو څو معقولې وجې:** دحدیث باب طرق ته د کتلو نه معلومیږی.چه وجوه د شبهې درې څیزونه دی

①د حارث بن ابی اسامه په طریق کښې دی.«إن مثل المؤمن کمثل شجرة لا تسقط لها أنملة، أتدرون ما هي؟قالوا لا، قال: هي النخلة، لایسقط لها أنملة ولا تسقط لمؤمن دعوة»([5])

ددې نه معلومه شوه.چه تشبه په دې څیز کښې ده.چه لکه څنګه د کجورې د هرڅیز نه فائده او نفع اخستلې شی.ددې تنه د شهتیر،او ستنو جوړولو په کار راځی.که کمزورې شی. د سوزولو په کار راځی.ددې پاڼې په چټونو کښې استعمالیږی.پکو ( بیوځو) دپاره استعمالیږی. ددې د میزرو ( نرو پاڼو) نه رسۍ ( پړی) جوړولې شی.ددې میوې انسان خوری. اوددې هډوکی څاروی خوری.دغه شان ددې د مینځ نه چیړ راوځی.هغه هم انسان خوری.غرض دا چه ددې هیڅ څیز نه ضائع کیږی.

---

[1]) المصدرالسابق)_

[2]) الموضوعات الکبیر لإبن الجوزی(۱۸٤\۱) کتاب المبتدأ. باب خلق النخل من طین آدم)_

[3]) المصدرالسابق. وانظر کشف الباری(۱۷۱\۱، ۱۷۲)_

[4]) فی الحدیث الأول: مسرور بن سعید التمیمی. فقد قال ابن عدی:..وهذا حدیث عن الأوزاعی. منکر. وعروة بن رویم عن علی لیس بالمتصل. ومسرور بن سعید غیر معروف. لم أسمع بذکره إلا فی هذا الحدیث.. الکامل (٤٣٢\٦).

وقال إبن الجوزی. قال ابن حبان: یروی عن الأوزاعی المناکیر التی لاتجوز الإحتجاج بمن یرویها. ومنها هذا الحدیث. کتاب الموضوعات(۱۸٤\۱). وانظر أیضاً . المیزان(٩٧\٤).

و أما الحدیث الثانی ففیه جعفر بن أحمد بن علی. قال ابن عدی: ..حدثنا هو عن أبی صالح کاتب اللیث و.....و.....بأحادیث موضوعة. وکنا نتهمه بوضعها. بل نتیقن فی ذالک. وکان مع ذالک رافضیاً. وقال بعد ذکر حدیثین رواهما بإسناده. أحدهما هذا الحدیث. وهذان الحدیثان بإسنادیهما موضوعان. ولا أشک أن جعفراً وضعهما. أنظر الکامل(١٥٦\٢).

وقال الذهبی فی المیزان(٤٠٠\١).... وذکره ابن یونس فقال:..کان رافضیاً یضع الحدیث..)_

[5]) فتح الباری(١٤٥\١)_

دغه شان د مؤمن هيڅ يوه دعا نه مسترد کيږی.يا هم دغه څيز ورکولې شی.دکوم چه ده سوال کړې دې.يا څه مصيبت دفع کولې شی.يا دا په آخرت کښې دعا کونکی دپاره ذخيره کولې شی.بهرحال دعا کله هم نه ضائع کيږی.(١)

② د صحيح بخاری په کتاب الاطعمه کښې هم په دې حديث کښې دا الفاظ دی.چه «إن من الشجر لما بركته كبركة المسلم»(٢)ددې نه معلومه شوه. چه دا تشبيه په بابرکته کيدو کښې دی.ايمان والا ډير زيات برکت لری.دده ايمان د عالم د بقاء سبب دی.که هيڅ څوک ايمان والا پاتې نشی.نو بيا به قيامت قائميږی.(٣)دغه شان د ايمان والا هيڅ څيز نه ضائع کيږی.يعنی دده هيڅ يو عمل کوم چه د ايمان د تقاضې مطابق وی.نه ضائع کيږی.ګرځيدل، ناسته ولاړه، اوده کيدل پاڅيدل، خوراك څکاك، ټول اعمال که د ايمانی تقاضې مطابق وی.نو ټول دده په حق کښې مفيد دی.

③ د ابن حبان رحمه الله په روايت کښې دی.«من يدلني على شجرة مثلها مثل المؤمن، أصلها ثابت وفرعها في السماء....»(٤)يعنی ددې مثال د مسلمان مثال دې.چه جرړې ئې خو زمکه کښې دی.او ښاخونه ئې په آسمان کښې دی.يعنی دا د خپل وجود په اعتبار سره ارضی (زمکې) دې.او سر ئې آسمان کښې لګيدلې دې.دغه شان بعينه مسلمان د خپل وجود په اعتبار سره ارضی دې.او د علوم او معارفو په اعتبار سره آسمانی دې.يا مطلب دا دې.چه مسلمان عمل خودلته په زمکه کښې کوی.خودده اعمال پورته اوچتولې شی.اودالله تعالی په نيزقبليږی.

حاصل دا چه ددې تشبيه ډير زيات وجوه دی.دهغې خلاصه دا ده.چه مسلمان ډير بابرکته دې.دده هيڅ يوه دعا رد کيږی نه.او دې دخپل وجود په اعتبار سره زمکی دې.او دخپلو علومو او معارفو په اعتبار سره آسمانی دې.چه دده علوم په آسمان کښې دی.دده د معرفت تعلق د الله تعالی د ذات اقدس سره دې.داسې اوګنړئ.چه د کجوري ونه ډيره برکتی او فائده منده ده.ددې هيڅ يو څيز ضائع نه څی.د صورت په اعتبار سره ددې جرړې خو په زمکه کښې لګيدلی دی.او تنه ئې آسمان سره ملاو شوې ده.

---

(١) عن جابر رضي الله عنه أن رسول الله ﷺ قال:..مامن عبد مسلم يدعو بدعاء إلا آتاه الله ما سأل، أو ادّخر له في الآخرة خيراً منه أوكفّ عنه من السّوء مثله، مالم يدع بإثم أو قطيعة رحم.. ذكره رزين، كما في جامع الأصول(٥١٣/٩) وأخرج الترمذي في كتاب الدّعوات، باب ماجاء أن دعوة المسلم مستجابة، رقم(٣٣٨١): ..مامن أحد يدعو بدعاء إلا آتاه الله ما سأل أوكفّ عنه من السوء مال يدع بإثم أو قطيعة رحم..)_

(٢) أنظر الصحيح للبخاري(٨١٩/٢) كتاب الأطعمة، باب أكل الجمار، رقم(٥٤٤٤)_

(٣) عن أنس:أن رسول الله ﷺ قال:..لا تقوم الساعة حتى لا يقال في الأرض ..الله الله.. وفي رواية قال، قال رسول الله ﷺ:..لا تقوم السّاعة على أحد يقول..الله الله.. أخرجهما مسلم في صحيحه (٨٤/١) في كتاب الإيمان، باب ذهاب الإيمان آخر الزمان، وانظر أيضاً الجامع للإمام الترمذي، كتاب الفتن، باب منه بعد باب ما جاء في أشراط السّاعة، رقم(٢٢٠٧)، ومسند الإمام أحمد بن حنبل (١٦٢/٣)_

(٤) فتح الباري(١٤٦/١، ١٤٧)_

**قوله فَحَدِّثُونِي مَا هِيَ:** ماته اوښايئ چه هغه کومه يوه ونه ده؟
ددې نه معلومه شوه چه دونړې ويشتل جائز دی.خو په دې باندې اشکال کيږی.چه حديث کښې دی.«ان النبى ﷺ نهى عن الغلوطات»[1] دې جواب دا دې.چه ددې نه مراد داسې خبرې دی.چه دهغې هيڅ فائده نه وی.صرف د يوکس تنګول او حقير او ذليل کول مقصود وی.او د دونړې ويشتلو اجازت هغه وخت دې.کله چه څه دينی يا دنيوی منفعت وی.ذهن تيزول مقصود وی.دچا تذليل او تحقير مقصود نه وی.([2]) [دونړې داسې سوال ته وائی.چه مفهوم ني واضح نه وی.په اردوکښې ورته ،،پہيلياں،، وائی.(رمرمه)]

**قوله فَوَقَعَ النَّاسُ فِي شَجَرِ الْبَوَادِي:** نو خلق د ځنګل د ونو په خيال کښې اخته شو. يعنی چا د يوې ونې نوم واخستلو.او چا د بلې ونې، يا د يوکس ذهن يو طرف ته لاړو.او د بل کس بلې ونې طرف ته.

**قوله قَالَ عَبْدُ اللَّهِ وَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ فَاسْتَحْيَيْتُ:** حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی.زما په زړه کښې راغلل.چه دا دکجورې ونه ده.خو زه اوشرميدم.

**د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د شرميدو وجه څه وه؟:** د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د شرميد وجه دا وه.چه په دې مجلس کښې تقريباً لس کسان وو.([3]) چه په دې کښې حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما هم وو.([4]) دا حضرات چونکه خاموش وو.په دې وجه دې هم ادباً خاموش شو.د کتاب العلم په آخر کښې روايت راوان دې.چه حضرت عمر رضي الله عنهما خپل پلار ته ذکرکړل. چه جواب خو زما په ذهن کښې راغلې وو.خو ستاسو حضراتو په وجه زه خاموش پاتې شوم.په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.«لأن تكون قلتها أحب إلى من أن يكون لى كذا وكذا»[5] د ابن حبان په روايت کښې په دې باندې دا اضافه ده.«أحسبه قال: حمر النعم»[6] يعنی که تا ښودلې وې. نو زه به ډير زيات خوشحاله شوې ووم.دومره به خوشحاله شوې ووم.چه دهغې په مقابله کښې سره اوښان هم هيڅ نه دی.

**د اولاد په ترقئ سره د مورپلار زړه خوشحاليږی.** دا يو فطری څيز دې.چه د اولاد په ترقئ

---

[1] سنن أبي داؤد. كتاب العلم. باب التوقى فى الفتياء. رقم(٣٦٥٦). ومسند أحمد(٥\٤٣٥)_
[2] فتح البارى(١\١٤٦)_
[3] كما أخرج البخارى فى صحيحه(٢\٨١٩) كتاب الأطعمة و باب أكل الجمار. رقم(٥٤٤٤)..فإذا أنا عاشر عشرة أحدثهم..)_
[4] أخرج البخارى فى صحيحه(٢\٦٨١) كتاب التفسير. سورة إبراهيم. باب ﴿كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ﴾ رقم(٤٦٩٨). ورأيت أبابكر وعمر لا يتكلمان......)_
[5] صحيح بخارى(١\٢٤) كتاب العلم. باب الحياء فى العلم رقم(١٣١)_
[6] فتح البارى(١\١٤٦)_

سره د مور پلار زړه خوشحالیږی .بیا که دلته کښې حضرت ابن عمر ﷺ جواب ورکړې وې.نو دوی ته به د نبی کریم ﷺ د طرفه ښې ډیرې د برکت دعاګانې ملاو شوې وې.په دې وجه حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل.که تا ښودلې وې.نو زه به دومره زیات خوشحاله شوې ووم.چه ددې په مقابله کښې ماته دا خوښه نه ده.چه څه ډیر زیات قیمتی دولت ملاوشی.

**د علامه تقی الدین سبکی واقعه** علامه تقی الدین علی بن عبدالکافی سبکی ته چه کله دا اوونیلی شو.چه ستاسو د خوئی بهاءالدین احمد بن علی درس ستاسو نه ښه وی.نو دوی د ډیرې خوشحالئ نه یو شعر اوونیلې.

دروس أحمد خير من دروسي وذاك منه على غاية الأمل[1]

**د حافظ عراقی واقعه** کله چه دحافظ زین الدین عبدالرحیم بن الحسین عراقی ﷺ زمانه راغله.نو دوی ته هم دغه شان خبره اوکړې شوه.چه ستاسو د خوئی ولی الدین ابوزرعه احمد بن عبدالرحیم درس ستاسو نه ښه دې.نو دوی د تقی الدین سبکی په شعر کښې معمولی شان تصرف (تبدیلی) اوکړه.او وې وئیل.

دروس أحمد خير من دروس أبيه وذاك منه أبيه منتهى أربه[2]

**قوله: ثُمَّ قَالُوا حَدِّثْنَا مَا هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ هِيَ النَّخْلَةُ:** بیا حاضرینو تپوس اوکړو.چه ای د الله رسوله ﷺ! چه دا کومه ونه ده؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه دا د کجورې ونه ده.

**په ترجمة الباب او حدیث باب کښې مطابقت:** ددې باب په شروع کښې مونږ وئیلی دی.چه د امام بخاری ﷺ مقصد د ،،تحدیث،، ،،انباء،، او ،،اخبار،، استعمالولو جواز بیانول دی.دا ټول الفاظ په جواز د تمسك او معمول بها کیدو کښې برابر دی.دا جدا خبره ده.چه بعضو ته په بعضو طریقو باندې ترجیح حاصل وی.،،کما سبق ذالك تفصيلا،،

**په دې حدیث سره د ترجمة الباب اثبات:** په دې حدیث سره به د ترجمة الباب اثبات څنګه کیږی؟ددې جواب دا دې.چه په دې حدیث سره ،،ترجمة الباب،، ددې په طرقجمع کولو سره ثابتیږی.څکه چه دلته ،،فحدثوني ما هي،، دې.په کتاب التفسیر کښې د ،،أخبروني،، لفظ راغلې دې.[3] او د اسماعیلی په یو طریق کښې د ،،أنبئوني،، لفظ وارد شوې دې.[4] دغه شان دلته د ،،حدثنا ماهی،، الفاظ دی.او هم ددې کتاب العلم په یو طریق کښې د ،،اخبرنا بها،، الفاظ راغلی دی.[5] ،،والله سبحانه وتعالى أعلم،،

---

[1]) الدرر الكامنة في أعيان المائة الثامنة(۱/۲٤۹)_

[2]) الضوء اللامع(۱/۳۳۸)_

[3]) صحیح البخاری(۲/۶۸۱) کتاب التفسیر، سورة إبراهیم باب ﴿كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ﴾ رقم(٤۶۸۹)_

[4]) فتح الباری(۱/۱٤٤)_

[5]) صحیح بخاری(۱/۱٤٤)کتاب العلم، باب الحیاء فی العلم، رقم(۱۳۱)_

# ۵- باب طرح الإمام المسألة على أصحابه ليختبر ما عندهم من العلم

د امام د خپلو اصحابو او شاګردانو په وړاندې سوال پیش کول، چه هغوی سره کوم علم دې دهغې امتحان واخلي.

**ماقبل سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ددې باب، ماقبل باب سره مناسبت بالکل ښکاره دې خکه چه دواړو بابونو کښې حدیث یو دی.(۱) دا هم ممکن ده چه په مخکنی باب کښې دا ښودلی شوی وو چه علم هغه مستند دې کوم چه سند سره بیان کړې شی او په دې سلسله کښې چه د سند کوم الفاظ د محدثینو په نیز رائج دی هغه ئې ثابت کړې وو اوس په دې کښې دا بیانوی چه د طالبانو کله کله امتحان هم اخستل پکار دی خکه چه امتحان اخستلو سره تیقظ او بیداری پیداکیږی او دوی په طلب د علم کښې مستعد کیږی لکه څنګه چه استاد دپاره دا ضروری ده چه هغه مستند علم پیش کړی کوم چه سند سره ثابت وی دغه شان طالب علم دپاره ضروری ده چه هغه مستعد او بیدار اوسیږی غفلت او بې پرواهی مضر او خطرناك ده.

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاری رحمه الله مقصد د ترجمة الباب نه یا خو دا دې که استاذان او مدرسین د شاګردانو د معلوماتو اندازه لګولو دپاره څه سوالات اوکړی نو دا جائز ده یا دا بیانول غواړی چه داسې قسمه سوالونه کول جائز هم نه بلکه غوره دی چه شاګردان بیدار اوسیږی او په غفلت کښې وخت ضائع نکړی.

په تیر شوی باب کښې مونږ ذکرکړی دی چه د حضرت معاویه رضی الله عنه د حدیث «ان النبی ﷺ نهی عن الغلوطات»(۲) محمل د امتحان سوالونه نه دی. بلکه په مغالطه کښې غورزولو دپاره مشکل او ګډ وډ سوالونه کول دی چه ددې مقصد هم دا وی چه مخاطب په مشکل کښې پریوځی یا عاجز (لاجوابه) راشی.

## حدیث باب

۶۲- حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ (۳) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَإِنَّهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ حَدِّثُونِي مَا هِيَ قَالَ فَوَقَعَ النَّاسُ فِي شَجَرِ الْبَوَادِي قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ فَاسْتَحْيَيْتُ ثُمَّ قَالُوا حَدِّثْنَا مَا هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ هِيَ النَّخْلَةُ [ر: ۶۱]

---

(۱) عمدة القاری (۲\۱۵)_

(۲) سنن أبی داود. کتاب العلم. باب التوقی فی الفتیا. رقم (۳۶۵۶). و مسند أحمد (۵\۴۳۵)

(۳) قد سبق تخریج هذا الحدیث فی الباب السابق. فارجع إلیه إن شئت)_

## رجال الحديث

① خالد بن مخلد: دا ابو الهيثم خالد بن مخلد (بفتح الميم واللام بينهما خاء معجمة ساكنة)[1] القطواني (بفتح القاف والطاء المهملة)[2] البجلي الكوفي دي.([3])
دوى د سليمان بن هلال، على بن مسهر، امام مالك، ثابت بن قيس اونافع بن ابى نعيم رحمهم الله وغيره نه روايت د حديث كړې دي.
ددوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، عباس دورى، اسحاق بن راهويه، محمد بن عثمان كرامه، ابو كريب محمد بن العلاء، معاويه بن صالح.او ابويعلى محمد بن شداد المسمعى رحمهم الله وغيره دى.([4])

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى: ،،ليس به بأس،،([5])

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى: ((لخالد بن مخلد أحاديث مناكير ويكتب حديثه))([6])

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى: ((صدوق ولكنه يتشيع))([7])

امام عجلى رحمه الله فرمائى: ((ثقة فيه قليل تشيع وكان كثير الحديث))([8])

امام صالح بن محمد جزره رحمه الله فرمائى: ((ثقة فى الحديث إلا أنه كان متهماً بالغلو))([9])

امام ابن عدى رحمه الله فرمائى: ((هومن المكثرين وهوعندى إن شاء الله لا بأس به))([10])

امام جوزجانى رحمه الله فرمائى: ((كان شتاماً معلناً بسوء مذهبه))([11])
ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دي.([12])
عثمان بن ابى شيبه رحمه الله دوى لره ،،ثقة صدوق،، ګرځولې دي.([13])

---

[1]) المغنى(۷۰)_
[2]) المغنى(۶۵)_
[3]) تهذيب الكمال(۱۶۳\۸)_
[4]) د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۶۴\۸، ۱۶۵)، وسير أعلام النبلاء(۲۱۷\۱۰، ۲۱۸)
[5]) تاريخ عثمان بن سعيد الدارمى عن أبى زكريا يحى بن معين فى تخريج الرواة وتعديلهم(۱۰۵) رقم(۳۰۱)
[6]) تهذيب التهذيب(۱۱۸\۳)_
[7]) تهذيب الكمال(۱۶۵\۸)_
[8]) تهذيب التهذيب(۱۱۷\۳)
[9]) المصدر السابق)_
[10]) تهذيب الكمال(۱۶۶\۸) وتهذيب التهذيب(۱۱۷\۳)، وانظر الكامل(۳۶\۳)_
[11])تهذيب التهذيب(۱۱۷\۳، ۱۱۸)_
[12]) ألثقات(۲۲۴\۸)_
[13]) تهذيب التهذيب۱۹۳\۱۱۸)

ابن سعد رحمه الله فرمائي: «وكان منكر الحديث، في التشيع مفرطاً، وكتبوا عنه ضرورةً»[1]
د تشيع الزام او ددې حقيقت ددې اقوالو خلاصه دا ده چه د جرح او تعديل اکثرو عالمانو دوی لره په روايت د حديث صادق ګرځولې دې. البته په دوی باندې دوه قسمه الزامات دي.
① يو داچه منکر او غريب روايتونه ډير زيات نقل کوی.
② دويم دا چه نه صرف شيعی وو بلکه په تشيع کښې غلو کونکې هم وو.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: «أما التشيع فقد قدمنا أنه إذا كان ثبت الأخذ والأداء لا يضره، لا سيما ولم يكن داعية إلى رأيه»[2] يعنی ترکومه پورې چه د تشيع تعلق دې نو کله چه راوی په تحمل د حديث او بيا په اداء د حديث کښې قابل اعتماد وی نو دا بدعت مضر نه دې. خاص طور باندې په دې وجه هم، چه دوی بدعت طرف ته داعی نه وو. د مبتدع روايت په هغه صورت کښې مردود وی. کله چه دې ،،داعی الی البدعة،، وی.
ترکومه پورې چه د دويم الزام تعلق دې نو په دې باره کښې هم حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.
«وأما المناكير فقد تتبعها أبو أحمد بن عدي من حديثه، وأوردها في ،،كامله،، وليس فيها شيء مما أخرجه له البخاري، بل لم أر له عنده من أفراده سوى حديث واحد، وهو حديث أبي هريرة ،،من عادى لي ولياً ...الحديث،،»[3] يعنی ترکومه پورې چه د منکر احاديثو روايت کولو تعلق دې نو حافظ ابن عدی رحمه الله دهغې تتبع کړې ده او پخپل کتاب ،،الکامل،، کښې ئې جمع کړی دی. په هغې کښې يو حديث هم د صحيح بخاری نه دې بلکه په صحيح بخاری کښې چه ددوی خومره مرويات دی. په هغې کښې صرف يو حديث کښې دوی تفرد اختيار کړې دې. باقی په يو روايت کښې هم هغه متفرد نه دې. نو د صحيح بخاری حده پورې کم ازکم ددوی تفرد مضر نه دې. والله أعلم.
ددوی وفات په ٢١٣ھ کښې شوې دې.[4] ،،سامحه الله تعالى وغفرله،،_

② سليمان: دا سليمان بن بلال قرشی تيمی، مولی د عبدالله بن عتيق محمد بن عبدالرحمن بن ابی بکر الصديق دې. بعضو حضراتو د قاسم بن محمد بن ابی بکر مولی ګرځولې دې. ددوی کنيت ابو ايوب يا ابو محمد دې.[5]
دوی دعبدالله بن دينار، زيد بن اسلم، ربيعة الراي، سهيل بن ابی صالح، يونس بن يزيد او محمد بن عبدالله بن ابی عتيق رحمهم الله وغيره نه د حديثونو روايت کړې دې.

---

[1]) الطبقات الكبرى لابن سعد(٤٠٦/٦)_
[2]) هدى السارى(٤٠٠)_
[3]) هدى السارى(٤٠٠)_
[4]) تهذيب الكمال(١٦٦/١٨). وسير أعلام النبلاء.(٢١٨/١٠)_
[5]) تهذيب الكمال(٣٧٢/١١)و سير أعلام النبلاء.(٤٢٥/٧)_

ددوى نه په حديث روايت كونكى كښې ابو عامر عقدى، يحي بن صالح وحاظى، سعيد بن ابى مريم، عبدالله بن المبارك، محمد بن خالد بن عثمه، او اسماعيل بن ابى اويس رحمهم الله وغيره حضرات دى.[1]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى «لا بأس به ثقة»[2]

عباس دورى د امام يحي بن معين رحمه الله نه نقل كړى دى «ثقة صالح»[3]

د امام يحي بن معين نه تپوس اوكړې شو «سليمان بن بلال أحب إليك أو الدراوردى؟» نو دوى اوفرمائيل «سليمان وكلاهما ثقة»[4]

امام نسائى او يعقوب بن شيبه رحمهما الله هم دوى لره ثقه ګرځولې دې.[5]

ابن سعد رحمه الله فرمائى «وكان ثقة كثير الحديث»[6]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[7]

امام خليلى رحمه الله فرمائى «ثقة ليس بمكثر...»[8]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «ثقة إمام»[9]

ددې ټولو توثيقاتو په مقابله كښې عثمان بن ابى شيبه رحمه الله فرمائى «لا بأس به وليس ممن يعتمد على حديثه»[10]

خو ښكاره دا ده چه ټول عالمان بالاتفاق دوى لره ثقه ګرځولې دې.ددوى په مقابله كښې صرف عثمان بن ابى شيبه دوى لره كمزورې ګرځوى.چه ددې هيڅ وجه هم دوى نه ده بيان كړې.نو دا د صريح تعديلاتو په مقابله كښې مبهم جرح ده.چه دا مقبول نه ده.هم دا وجه ده چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «وهو تليين غير مقبول فقد اعتمده الجماعة»[11] يعنى دا تضعيف قابل قبول نه دې.او اصحاب د اصول ستة ددوى روايات حجت ګرځولى دى.او

---

[1] د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۱\۳۷۲، ۳۷۳) وسير أعلام النبلاء(۷\۴۲۶)

[2] سير أعلام النبلاء(۷\۴۲۶)و تهذيب التهذيب(۴\۱۷۵)_

[3] تهذيب الكمال(۱۱\۳۷۴)_

[4] تاريخ الدارمى(۱۲۵) رقم(۳۸۹)_

[5] تهذيب الكمال(۱۱\۳۷۴)_

[6] ألطبقات الكبرى(۵\۴۲۰)_

[7] ألثقات لابن حبان(۶\۳۸۸)_

[8] تهذيب التهذيب (۴\۱۷۶)_

[9] (الكاشف(۱\۴۵۷) رقم(۲۰۷۳)_

[10] تهذيب التهذيب(۴\۱۷۶)_

[11] هدى السارى(۴۰۷)_

قبول کړی دی. د سلیمان بن بلال رحمه الله وفات په ۱۷۲ھ یا ۱۷۷ھ کښې شوې دې.(۱)

④ عبدالله بن دينار: د عبدالله بن دینار رحمه الله حالات په وړاندې باب کښې تیر شوی دی.

⑤ ابن عمر: د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات په کتاب الایمان کښې د ((باب الايمان وقول النبي ﷺ بني الإسلام على خمس)) لاندې تیر شوی دی.(۲)

**قوله** إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَإِنَّهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ: ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله بعینه هم هغه حدیث نقل کړې دې.کوم نې چه وړاندې باب کښې ذکر کړې دې.چونکه د ترجمة الباب په ذریعه ئې یو زیاتې فائدې طرف ته اشاره اوکړله.کوم چه ددې حدیث نه مستنبط ده.او په سند د حدیث کښې هم فرق اوشو.په دې وجه به امام بخاری رحمه الله باندې د تکرار اعتراض نه کیږی.(۳)

**په حدیث باب کښې د اسناد په رجالو کښې د تغیر فائده:** دلته ددې سوال په جواب کښې چه داسناد په رجالو کښې د تغیر څه فائده ده؟ علامه کرمانی رحمه الله اوفرمائیل.چه په اصل کښې امام بخاری رحمه الله کله دا حدیث د خپل شیخ قتیبه نه واوریدو.نو د تحدیث د معنی بیانولو په سیاق کښې ئې واوریدو.او کله ئې چه د خپل شیخ خالد بن مخلد نه واوریدو.نو هغوی: ,,طرح المسئلة،، لاندې بیان کړو.په دې و جه دهغوی تقلید کولو سره امام صاحب حدیث هم دهغه بابونو لاندې ذکرکړې دې.د کومو بابونو لاندې چه هغوی حدیث اوریدلې وو.(۴)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله ددې تردید کړې دې.هغه فرمائی.چه د امام بخاری رحمه الله نه واقفیت لرونکو اهل علمو کښې چاهم دا خبره نه ده نقل کړې.چه هغه په د ابوابو په تراجمو کښې د نورو تقلید کوی.که داسې وی.نو بیا د صحیح بخاری هیڅ مزیت (او خصوصیت) نه پاتې کیږی.بلکه ددې په عکس دا منقول دی.چه امام بخاری رحمه الله د ابوابو په تراجمو منعقد کولو کښې کوم تصرف کوی.او دقت نظر (او ژور سوچ) نه کار اخلی.دا د صحیح بخاری رحمه الله یو ممتاز صفت دې.

بیا دا خبره هم قابل د غور ده.چه ددې مشائخو په ابوابو باندې څه تصنیف هم معروف نشته. چه مونږ دا اووایو.چه دغه شیوخو چونکه د فلانی باب لاندې حدیث ذکرکړې دې.په دې وجه د هغوی شاګرد امام بخاری رحمه الله د هغوی تقلید کړې دې.(۵)

**د حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت** په حدیث باب کښې د نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه سوال کول مذکور دی.ددې نه ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې.

---

(۱) تهذيب الكمال(۱۱\۳۷۶) وسير أعلام النبلاء(۷\۴۲۷)_

(۲) كشف البارى(۱\۶۳۷)_

(۳) فتح البارى(۱\۱۴۷، ۱۴۸)_

(۴) شرح الكرمانى(۲\۱۳)_

(۵) فتح البارى(۱\۱۴۸)_

# ٦-((باب ما جاء في العلم))

((وقوله تعالى ﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾ (طه:١١٤) ((القراءة والعرض على المحدث ورأى الحسن والثوري ومالك القراءة جائزة واحتج بعضهم في القراءة على العالم بحديث ضمام بن ثعلبة قال للنبي صلى الله عليه وسلم آلله أمرك أن نصلي الصلوات قال نعم قال فهذه قراءة على النبي صلى الله عليه وسلم أخبر ضمام قومه بذلك فأجازوه واحتج مالك بالصك يقرأ على القوم فيقولون أشهدنا فلان ويقرأ ذلك قراءة عليهم ويقرأ على المقرء فيقول القارء أقرأني فلان)).

**په دې باب كښې دنسخو اختلاف** دلته په بعضو نسخو كښې ((باب ما جاء في العلم وقول الله تعالى ﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾ دې.خو په اكثرو نسخو كښې دا نشته.بيا په بعضو نسخو كښې ددې نه پس ((باب القراءة والعرض على المحدث))شته.او په بعضو كښې نشته.په بعضو نسخو كښې لفظ د ،،باب،، دې.او په بعضو كښې نشته.(١)

**تيرشوى باب سره مناسبت** په دې باب كښې او په تيرشوى باب كښې مناسبت دا دې.چه په تيرشوى باب كښې قراءة الشيخ مذكور دې.او په دې باب كښې د قراءة على الشيخ ذكر دې.په دې طريقه دواړو بابونو كښې مناسبت ښكاره دې.(٢)

**په ،،باب قول المحدث حدثنا... ،،او دمذكوره باب په مينځ كښې فرق** تيرشوى باب سره نيزدې باب كښې امام بخارى رحمه الله ،،باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا...،، فرمائيلى وو.دهغې نه مقصود دا بيانول وو.چه استاذ وائى.او شاګرد اورى.نو دا جائز ده.او دلته دا بيانوى.كه شاګرد وائى.او استاذ اورى.نو دا جائز ده.

**ايا په قراءت او عرض كښې فرق شته؟:** په قراءت او عرض كښې فرق شته او كه نشته.په دې كښې اختلاف دې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دواړو كښې فرق دې.،،قراءت،، عام دې.او ،،عرض،، خاص دې.ځكه چه ،،عرض،، به هغه وخت ونيلې شى.كله چه شاګرد پخپله د شيخ په وړاندې اولولى.كه اصل د شيخ په لاس كښې موجود وى.او كه د بل يو ثقه په لاس كښې وى.اوكه د شيخ په وړاندې د هغه د مرويات لوستلې كيږى.او د لوستونكى نه علاوه نور شاګردان هم په اوريدو كښې شريك وى.نو ددې اوريدونكو په حق كښې به دې ته ،،عرض،، نشى ونيلې.بلكه ،،قراءت،، به ونيلې شى.ګويا ،،قراءت،، عام دې.د لوستونكى شاګرد په حق كښې هم دا قراءت دې.او د اوريدونكو شاګردانو په حق كښې هم،

---

(١) قال القسطلانى: باب ما جاء فى العلم وقول الله تعالى:﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾...وهذا ساقط فى رواية ابن عساكر. والأصيلى. وأبوذر.والوقت. والباب التالى له ساقط عند الأصيلى و أبى ذر و إبن عساكر. باب القراءة والعرض على المحدّث. وفى نسخة. القراءة والعرض على المحدث. بحذف الباب.. إرشاد السارى(١٥٨\١)_
(٢) عمدة القارى(١٦\٢)_

او د ،،عرض،، صرف د لوستونکی شاګرد په حق کښې اطلاق کیږی.(١)
خو علامه کرمانی (٢)، علامه قسطلانی(٣)او د اصول حدیث جمهورو عالمانو د دوارو په مینځ کښې هیڅ فرق نه دې کړې.بلکه دواړه ئې مساوی ګرځولی دی.(٤)
دلته چه امام بخاری رحمه الله کوم ،،باب القراءة والعرض.....،، فرمائیلی دی.دا عطف تفسیری دې.(٥)

**د ترجمة الباب مقصد** امام بخاری رحمه الله دا باب د بعضو حضراتو د تردید دپاره قائم کړې دې.کوم چه ،،قراءت علی الشیخ،، جائز نه ګڼړی.

**د ،،قراءت علی الشیخ،، مانعین** لکه چه د ابو عاصم النبیل. عبدالرحمن بن سلام جُمحی. محمد بن سلام جُمحی او وکیع بن الجراح رحمهم الله نه منقول دی.چه ،،قراءت علی الشیخ،، معتبر نه دې.(٦)

رامهرمزی رحمه الله د ابوعاصم النبیل نه نقل کړی دی.((سمعتُ سفیان وأباحنیفة ومالکاً وابن جریج، کل هؤلاء لسمعتهم یقولون: لا بأس بها یعنی القراءة، وأنا لا أراه، وما حدثت بحدیث عن أحد من الفقهاء قراءة))(٧)

خطیب بغدادی رحمه الله د امام وکیع رحمه الله نه نقل کړی دی.هغه فرمائی چه((ما أخذنا حدیثاً قط عرضاً))(٨)

دغه شان رامهرمزی رحمه الله د عبدالرحمن بن سلام جُمحی په باره کښې نقل کړی دی.هغه فرمائی. ((دخلتُ علی مالك بن أنس وعلی بابه من یحجبه قال: وبین یدیه ابن أبی أویس، وهو یقول: حدثك فلان، حدثك ابن شهاب، حدثك فلان وفلان، فیقول مالك: نعم، نعم، فلمّا فرغ قلت: یا أبا عبدالله، عوّضنی مما حدثته بثلاثة أحادیث تقرؤها علیّ قال: أعراقیّ؟ أعراقیّ؟ أخرجوه عنی))(٩)

---

١) فتح الباری(١٤٩\١)_
٢) شرح الکرمانی(١٣\٢)_
٣) ارشاد الساری(١٥٨\١، ١٥٩)_
٤) قال إبن الصلاح(١٣٧، تحقیق نورالدین عتر):،،من أقسام الأخذ والتحمل. القراءة علی الشیخ،وأکثر المحدثین یسمونه عرضاً من حیث إن القاری یعرض علی الشیخ ما یقرؤه، کما یعرض القرآن علی المقرئ،، او اوګورئ: اختصارعلوم الحدیث لابن کثیر(١١٠) وفتح المغیث للعراقی (١٨٥) وفتح المغیث للسخاوی (١٦٧\٢) وتوضیح الأفکار(١٨٧\٢)_
٥) شرح الکرمانی(١٣\٢) وعمدة القاری(١٦\٢)_
٦) فتح المغیث للسخاوی(١٦٩\٢)_
٧) المحدث الفاصل بین الراوی والواعی(٤٢٠)_
٨) الکفایة(٢٧١) وفتح المغیث للعراقی(١٨٦)_
٩) المحدث الفاصل(٤٢١)_

داسې قسمه خبره د محمد بن سلام جمحي نه هم منقول ده.لکه چه هغه فرمائي.((أدركتُ مالكاً والناس يقرؤون عليه فلم أسمع منه لذالك))[1]

هم داسې قول د عراق د بعضو نورو حضراتو نه هم منقول دې.[2]

د ,,قراءت على الشيخ،،مجوزين ددې په مقابله کښې په حضرات تابعينو کښې د عطاء، نافع، عروه، شعبى، زهرى، مکحول، حسن بصرى، منصور، ايوب. په امامانو حضراتو کښې د ابن جريج، سفيان ثورى، ابن ابى ذئب،شعبه، ائمه اربعه، ابن مهدى، شريك، ليث، ابو عبيد ، او د امام بخارى رحمه الله نه علاوه د ډيرو حضراتو رائې دا ده.چه لکه څنګه سماع معتبر او جائز ده.دغه شان ، ,قراءت على الشيخ،، او عرض هم جائز دې.[3]

**قول فيصل** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه د ، ,قراءت على الشيخ،، د نه صحيح کيدو کوم قول وو.هغه ختم شوې دې.اوس ددې په جواز او صحيح کيدو کښې هيڅ اختلاف نشته.[4] لکه چه خطيب بغدادى رحمه الله د ابراهيم بن سعد رحمه الله نه نقل کړى دى.هغه فرمائي.((لاتدعون تنطعكم[5] يا أهل العراق، العرض مثل السماع))[6]

**تنبيه** مونږ وړاندې د ، ,مناوله،،د بيان لاندې ذکرکړى دى.چه لکه څنګه ، ,قراءت على الشيخ،، ته ، ,عرض،، وائي.دغه شان دې صورت ته هم عرض وائي.چه طالب شيخ ته يو کتاب يا د حديثو يو جزء راوړى.او شيخ ته ئې پيش کړى.شيخ په هغې کښې غور او فکر اوکړى.او بيا ددې د واپس کولو په وخت داسې اووائي.((وقفت على ما فيه، وهو حديثي عن فلان، أو روايتي عن شيوخي فيه، فاروه عني))[7]

خو په دواړو کښې د فرق کولو دپاره ، ,قراءت على الشيخ،، ته مطلق ، ,عرض،، يا ، ,عرض القراءة،، وائي.او مذکوره صورت ته ، ,عرض المناولة،، وائي.[8]

امام بخارى رحمه الله دلته د ، ,عرض القراءة،، مسئله بيان کړې ده.د ، ,عرض المناولة،،مسئله ئې نه ده بيان کړې.[9] امام حاکم رحمه الله ته دلته وهم شوې دې.دوى په ، ,معرفة علوم

---

[1] فتح المغيث للسخاوى(۱۶۹\۲)_

[2] المصدرالسابق)_

[3] فتح المغيث للعراقى(۱۸۶)_

[4] فتح البارى(۱۵۰\۱)_

[5] التنطع فى الكلام: التعمّق فيه. أنظر مختارالصحاح(۶۶۶)_

[6] الكفاية(۱۶۶)_

[7] مقدمة ابن الصلاح(۱۶۶). وفتح المغيث للعراقى(۲۱۶).وظفرالأمانى(۵۲۰). وفتح المغيث للسخاوى (۲۸۹\۲)_

[8] مقدمة ابن الصلاح(۱۶۶)_

[9] فتح البارى(۱۴۹\۱)_

الحديث،، كښې په ،،عرض المناولة،، باندې د ،،عرض،، اطلاق اوكړو.او دا ئې اوفرمائيل چه امام بخاري رحمه الله ددې ،،عرض،،اثبات د حديث باب په ذريعه كړې دې.([1]) حالانكه امام بخاري رحمه الله دلته ،،عرض القراءة،، ذكركړې دې عرض المناوله ئې نه ده ذكركړې.او مناوله دپاره امام بخاري رحمه الله روستو باب قائم كړې دې.([2])

**قوله** وَرَأَى الْحَسَنُ وَالثَّوْرِيُّ وَمَالِكٌ الْقِرَاءَةَ جَائِزَةً: او حسن بصرى، سفيان ثورى.او مالك رحمه الله ،،قراءت على الشيخ،، صحيح ګرځوى.

ددې حضراتو رائې وړاندې تعليقاً او بيا ئې روستو موصولاً ذكركړې ده.هم دا رائې د جمهورو ده.بلكه اوس دا اختلاف هم ختم شوې دې.،،كما سبق ذالك قبل سطور،،

**قوله** وَاحْتَجَّ بَعْضُهُمْ فِي الْقِرَاءَةِ عَلَى الْعَالِمِ بِحَدِيثِ ضِمَامِ بْنِ ثَعْلَبَةَ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آللَّهُ أَمَرَكَ أَنْ نُصَلِّيَ الصَّلَوَاتِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَهَذِهِ قِرَاءَةٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: په ،،قراءت على العالم،، باندې بعضو حضراتو د ضمام بن ثعلبه رضي الله عنه د حديث نه استدلال كړې دې.چه دوى نبى كريم ﷺ ته ونيلى وو.چه آيا الله تعالى تاته حكم دركړې دې.چه مونږ مونځونه اوكړو؟ نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.آو.وې فرمائيل.چه دا ،،قراءت على النبى ﷺ،، دې.

علامه عينى په عمدة القارى ([3])كښې.حافظ ابن حجر په هدى السارى([4])كښې حميدى شيخ د امام بخارى، او علامه كرمانى ،،ثورى، حسن بصرى ونحوهما،،([5]) د ،،بعضهم،، مصداق ګرځولې دې.حالانكه ددې ،،بعضهم،، مصداق ابوسعيد الحداد دې.لكه څنګه چه امام بيهقى رحمه الله په كتاب المعرفة كښې د ابن خزيمه په طريق سره نقل كړې دى.هغه فرمائى. ((سمعتُ البخارى يقول: قال ابوسعيد الحداد، عندى خبرعن النبىّ ﷺ فى القراءة على العالم، فقيل له،([6])فقال: قصة ضمام بن ثعلبة، قال آلله امرك بهذا؟ قال: نعم....))([7])

---

[1]) لكه چه امام حاكم رحمه الله په ،،النوع الثانى والخمسون،، كښې فرمائى...وبيان العرض: أن يكون الراوي حافظاً متقناً فيقدم المستفيد إليه، جزءً من حديثه أو أكثر من ذالک. فيناوله، فتأمل الراوى حديثه، فإذا أخبره وعرف أنه من حديثه قال للمستفيد. قد وقفت على ما ناولتنيه. وعرفت الأحاديث كلها. وهذه رواياتي عن شيوخي فحدث بها عني. فقال جماعة من أئمة الحديث. أنه سماع. منهم من أهل المدينة...و من أهل مكة....و من أهل الكوفة....ومن أهل البصرة....ومن أهل المصر....و كذالک جماعة من أهل الشام و خراسان. وقال بعدذكرحديث الباب: قال أبوعبدالله. إحتج شيخ الصنعة أبوعبدالله محمدبن اسماعيل البخارى رحمه الله فى كتاب العلم من الجامع الصحيح فى باب العرض على المحدث. معرفة علوم الحديث(۲۵۶-۲۵۸)

[2]) يعنى ،،باب ما يذكر فى المناولة وكتاب أهل العلم بالعلم إلى البلدان(۱۵۱۱)_

[3]) عمدة القارى(۱۷۱۲)_

[4]) هدى السارى(۲۵۱)_

[5]) شرح الكرمانى(۱٤۱۲)_

[6]) أى سألوه عن ذالک الخبر الذى يدل على إثبات القراءة على العالم)_

[7]) فتح البارى(۱٤۹۱۱) وفتح المغيث للسخاوى(۱۷۰۱۲)_

هم دا خبره امام بیهقی رحمه الله په ،،المدخل،، کښې هم نقل کړې ده.(۱)
امام ترمذی رحمه الله په ،،کتاب الزکاة،، کښې هم دا حدیث ذکر کړې دې. نو هلته ئې هم د امام بخاری رحمه الله نه دا نقل کړی دی چه بعضې عالمانو به ددې حدیث نه د ،،عرض علی العالم،، په صحت باندې استدلال کوو.(۲) او خطیب بغدادی رحمه الله په کتاب الکفایه کښې براه راست د امام بخاری رحمه الله نه دا استدلال نقل کړې دې.(۳) داسې ښکاری چه امام بخاری رحمه الله به په عامو حالاتو کښې خو اکثر مستدل طرف ته اشاره کوله او بعضو وختونو کښې به ئې د استدلال صحیح کیدو په وجه پخپله د ضمام د قصې نه احتجاج او استدلال کولو لکه څنګه چه دلته کښې هم امام بخاری رحمه الله هم په دې سیاق کښې د حضرت ضمام بن ثعلبه رضي الله عنه روایت نقل کړې دې.

**قوله**: أَخْبَرَ ضِمَامٌ قَوْمَهُ بِذَلِكَ فَأَجَازُوهُ: ضمام رضي الله عنه خپل قوم ته ددې خبر ورکړو. هغوی دا قبول کړو.

امام بخاری رحمه الله ددې باب لاندې د ضمام قصه نقل کړې ده. خو په دې کښې دا تصریح نشته چه هغوی خپل قوم ته لاړل. نو خبر ئې ورکړو. او هغوی دا خبر اومنلو. البته په مسند احمد کښې ددې تصریح وارد ده. په کوم کښې چه حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د حضرت ضمام بن ثعلبه رضي الله عنه قصه تفصیل سره ذکرکړې ده. د هغې په آخر کښې چه کله حضرت ضمام رضي الله عنه دا اوفرمائیل: «إني قد جئتكم من عنده بما أمركم به ونهاكم عنه» نو ددې اثر دا اوشو چه تول په تول مسلمانان شو. «فوالله ما أمسى من ذالك اليوم وفي حاضره رجل ولا إمرأة إلا مسلماً»(۴) هم دا قبول د اسلام امام بخاری رحمه الله په ،،اجازوه،، سره تعبیر کړې دې. چه ددې مطلب ،،قبلوه،، دې. اصطلاحی ،،اجازت،، مراد نه دې.(۵)

**د امام مالک رحمه الله استدلال:**

**قوله**: وَاحْتَجَّ مَالِكٌ بِالصَّكِّ يُقْرَأُ عَلَى الْقَوْمِ فَيَقُولُونَ أَشْهَدَنَا فُلَانٌ وَيُقْرَأُ ذَلِكَ قِرَاءَةً عَلَيْهِمْ وَيُقْرَأُ عَلَى الْمُقْرِءِ فَيَقُولُ الْقَارِءُ أَقْرَأَنِي فُلَانٌ: او امام مالک رحمه الله د دستاویز (اقرار نامې) نه استدلال کړې دې. کوم چه خلقو ته لوستلې شی. او اوروله کیږی. نو هغوی وائی چه مونږه فلانی سړی په دې دستاویز باندې ګواه جوړ کړو. او ښودونکی استاذ ته قرآن

---

(۱) تدریب الراوی (۱۳/۲، ۱٤)_
(۲) سمعت محمد بن إسماعيل يقول: قال بعض أهل العلم فقه هذا الحديث أن القراءة على العالم والعرض عليه جائز. مثل السماع. وإحتج بأن الأعرابي عرض على النبي ﷺ فأقربه النبي ﷺ. جامع الترمذي. كتاب الزكاة. باب ماجاء إذا أديت الزكاة فقد قضيت ما عليك. رقم(٦١٩)_
(۳) الكفاية (٢٦١) باب القول في القراءة على المحدث وما يتعلق بها)_
(٤) مسند احمد (٢٦٤/١، ٢٦٥) وسنن الدارمي (١٧٣/١) كتاب الطهارة. باب فرض الوضوء والصلاة. رقم(٦٥٢)
(٥) فتح الباري (١٤٩/١)_

لوستلې شي.او اوروليې شي.نو لوستونكې وائي.چه ماته فلانى اوروليې دې.
امام مالك رحمه الله د ،،قراءت على الشيخ،، په صحت باندې د دوو متفق مسئلو نه استدلال كړې دې:
① يوه مسئله د ،،صك،، ده.دا د ،،چك،، معرب دې.چه دې ته په فارسئ كښې ،،قباله، يا ،اقرارنامه،،وائي.امام مالك رحمه الله فرمائي.چه اوګوره. ،،اقرار نامه،، د مقر او شهود په موجودګئ كښې لوستلې كيږي.د مقر نه دا تپوس كولې شي.چه كوم څه ليكلى شوى دى.دا ته منې؟ هغه وائي.،،نعم،، يعنى آو زه ئې منم.ددې نه پس ګواهان د حاكم په مجلس كښې حاضريږي.او دا وائي.چه كوم څه په دې كښې ليكلى شوى دى.فلانى زمونږ په وړاندې ددې اقرار كړې دې.حالانكه ده د ،،نعم،، نه علاوه بل څه نه وو وئيلى.
دغه شان چه كله شاګرد د استاذ په وړاندې حديث اووائي.او استاذ قولاً يا عملاً سره اثبات اوكړي.او آو اوكړي.نوهلته هم د شاګرد دا وينا چه ،،حدثني فلان،،،،اخبرني فلان،، صحيح دې.
ددې مسئلې نه امام ابوحنيفه رحمه الله هم د ،،قراءة على الشيخ،، په حجيت او صحت باندې استدلال كړې دې.ددوى دا استدلال رامهرمزى رحمه الله په ،،المحدث الفاصل،، كښې، او خطيب بغدادى رحمه الله په ،،الكفايه،، كښې ذكركړې دې.[1]
خطيب بغدادى رحمه الله د تفصيل سره نقل كړى دى.چه ابوعبيد القاسم بن سلام رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل كړل.چه دوى د امام ابوحنيفه رحمه الله نه ددې مسئلې په باره كښې تپوس اوكړو.نو امام صاحب رحمه الله اوفرمائيل.چه د ګواهانو په موجودګئ كښې د مقر په وړاندې اقرارنامه لوستلې شي.او دهغه نه تپوس كولې شي.چه كوم څه ليكلى شوى دى.دا صحيح دى.هغه وائي ،،نعم،،.نو لكه څنګه چه هلته كښې شهود وائي.چه هغه زمونږ په وړاندې اقرار كړې دې.كوم څه چه په دې كښې ليكلى شوى دى.صحيح دى.دغه شان كه شاګرد د استاذ په وړاندې اووائي.او استاذ اثبات اوكړي.نو شاګرد ،،حدثني،، او ،،اخبرني،، وائي.ابو عبيد قاسم بن سلام رحمه الله فرمائي.چه هم دا د امام ابويوسف رحمه الله قول دې.او هم دا زما هم قول دې.[2]
② دويمه مسئله: دويمه مسئله امام مالك رحمه الله د ،،عرض على العالم،، په حجيت باندې پيش كړې ده.چه اوګوره.د قرآن كريم طالب علم د ښودونكى په وړاندې لولي.او دهغه نه تپوس كولې شي.چه تاته قرآن چا لوستلې دې؟ نو هغه وائي.چه فلانى لوستلې دې.حالانكه فلانې خو صرف خاموش وو.او اوريدلې ئې دې.او طالب علم دهغه په وړاندې لوستلې دې.
خطيب بغدادى رحمه الله وغيره د امام مالك رحمه الله نه نقل كړى دى.چه ددوى نه كله تپوس اوكړې شو.چه د ،،عرض على العالم،، په طور باندې كوم حديثونه لوستلې كيږي.آيا د حديث اداكولو په وخت ،،حدثني،، وئيل صحيح دى؟ نو وې فرمائيل.چه آو.دغه شان د قرآن كريم

[1] المحدث الفاصل(٤٢٥، ٤٢٦) فقره(٤٧١). والكفاية(٢٦٨)_
[2] الكفاية(٢٧٩) ذكر الرواية عمن كان يختار القراءة على المحدث على السماع من لفظه)_

د حصول صورت هم دې چه اوګوره.یو طالب علم نې لوستونکی ته اوروی.او بیا وائی.چه مانه فلانی ښودونکی لوستلې دې.(۱)

امام مالک رحمه الله فرمانی.«كيف لا يجزيك هذا في الحديث ويجزيك في القرآن، والقرآن أعظم؟»(۲)امام حاکم په معرفة علوم الحديث کښې نقل کړی دی.چه مطرف رحمه الله فرمانی «صحبت مالكا سبع عشرة سنة، فما رأيته قرأ الموطأ على أحد»(۳) دامام مالک رحمه الله وینا دا ده.چه هرکله د قاری د مقری (ښودونکی) په وړاندې لوستل، او بیا دا ونیل.چه ،،أقرأني فلان،، کافی دې.نو په حدیث کښې دا څنګه نشی کافی کیدې؟

## حديث باب

((حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ الْوَاسِطِيُّ عَنْ عَوْفٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ لَا بَأْسَ بِالْقِرَاءَةِ عَلَى الْعَالِمِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ إِذَا قُرِئَ عَلَى الْمُحَدِّثِ فَلَا بَأْسَ أَنْ يَقُولَ حَدَّثَنِي قَالَ وَسَمِعْتُ أَبَا عَاصِمٍ يَقُولُ عَنْ مَالِكٍ وَسُفْيَانَ الْقِرَاءَةُ عَلَى الْعَالِمِ وَقِرَاءَتُهُ سَوَاءٌ))

مصنف رحمه الله رومبې د حسن بصری، سفیان ثوری، او امام مالک رحمهم الله قول تعليقاً نقل کړې وو.اوس د هریو اثر موصولاً نقل کوی.

## رجال الحديث

① محمد بن سلام: دا ابو عبدالله محمد بن سلام بیکندی رحمه الله دې.ددوی حالات د کتاب الایمان «باب قول النبي ﷺ: أنا أعلمكم بالله وأن المعرفة فعل القلب» لاندې تیر شوی دی.(۴)

② محمد بن الحسن الواسطي: دا محمد بن الحسن بن عمران مزنی واسطی دې.په اصل کښې د شام دې.په واسط کښې قاضی پاتې شوې دې.(۵)

دوی د اسماعیل بن ابی خالد، عوام بن حوشب، عوف اعرابی، او فضیل بن غزوان رحمهم الله وغیره نه روایت د حدیث کړې دې.

ددوی نه امام احمد، محمد بن سلام بیکندی، محمد بن سلام جُمحی، زید بن الحریش، محمد بن اسماعیل حسانی، او محمد بن اسماعیل احمسی رحمهم الله وغیره علم حدیث حاصل کړې دې.(۶)

---

(۱) الكفاية(۲۷۱)، وفتح الباري(۱۱/۱٤۹)_
(۲) معرفة علوم الحديث للحاكم(۲۵۹) والكفاية(۲۷۱) وفتح الباري(۱۱/۱۵۰)_
(۳) معرفة علوم الحديث للحاكم((۲۵۹) وفتح الباري(۱۱/۱٤۹) وفتح المغيث للسخاوى(۱۲/۱۷۰)
(۴) كشف الباري(۲/۹۳)_
(۵) تهذيب الكمال(۲۵/۷۱) وسير أعلام النبلاء(۹/۳۰۳)_
(۶) د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۲۵/۷۲) وسير أعلام النبلاء(۹/۳۰۳)_

امام احمد رحمه الله فرمائی.،،لیس به بأس،،(۱)

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائ.،،ثقة،،(۲)

امام محمد بن حاتم رحمه الله فرمائی.«حدثنا محمد بن الحسن الواسطی ثقة»(۳)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.،،لابأس به»(۴)

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،(۵)

ابن سعد رحمه الله فرمائی.،،وکان ثقة،،(۶)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،(۷)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی.،،لابأس به،،(۸)

ابن حبان رحمه الله ددوی تذکره د ،،الضعفاء،، لاندې کړې ده.او فرمائیلی ئې دی.«یرفع الموقوف و یسند المراسیل»چه دوی موقوف لره مرفوع، او مراسیل سنداً روایت کوی.او بیا ئې ددې یو مثال هم ذکرکړې دې.«ذکاة الجنین ذکاة أمه» دا حدیث دوی د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه مرفوع نقل کړې دې.حالانکه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.چه دا ،،موقوف علی ابن عمر.. صحیح دې.مرفوع روایت کول صحیح نه دی.(۹)

① خواول خو ابن حبان رحمه الله ددې غلطئ یو مثال پیش کړې دې.حالانکه ددې په مقابله کښې پورته تاسو د جرح او تعدیل د عالمانو توثیقات کتلی دی.چه یوکس هم دوی لره مجروح نه دې ګرځولي.

② دویمه دا چه امام بخاری رحمه الله ددوی نه صرف د حضرت حسن بصری رحمه الله اثر. په واسطه د عوف اعرابی نقل کړې دې.ددوی نه ئې د یو مرفوع حدیث اثبات یا د یو شرعی حکم د استنباط په سلسله کښې احتجاج نه دې کړې.

③ بیا ابن حبان رحمه الله پخپله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.(۱۰)

---

(۱) تهذیب الکمال(۷۳\۲۵)_

(۲) المصدرالسابق)_

(۳)المصدرالسابق)_

(۴) المصدرالسابق)_

(۵) المصدرالسابق)_

(۶) طبقات ابن سعد(۳۱۵\۷)_

(۷) الکاشف(۱۶۴\۲) رقم(۴۷۹۷)_

(۸) تهذیب التهذیب(۱۱۹\۹)_

(۹) میزان الإعتدال((۵۱۵\۳) رقم(۷۳۸۴) وتهذیب التهذیب(۱۱۹\۹)_

(۱۰) الثقات لابن حبان(۴۱۱\۷)_

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی ،،وهذا أصوب،،(۱)

ددوی وفات په ۱۸۷ھ یا ۱۸۹ھ کښې شوې دې.،، رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

۳ **عوف:** دا ابوسهل عوف بن ابی جمیلة العبدی الهجری البصری دې.دا د عوف اعرابی په نوم سره مشهور دې.ددوی حالات د کتاب الایمان د ((باب اتباع الجنائز من الإیمان))لاندې تیرشوی دی.(۲)

۴ **الحسن:** دا مشهور تابعی امام حضرت حسن بصری رحمه الله دې.ددوی حالات هم د کتاب الایمان ((باب المعاصی من أمرالجاهلیة))لاندې تیرشوی دی.(۳)

**قوله لَابَأْسَ بِالْقِرَاءَةِ عَلَى الْعَالِمِ:** عالم ته په لوستلو سره اورولو کښې هیڅ باك نشته.

**د مذکوره اثر تخریج:** دا اثر خطیب بغدادی رحمه الله د((أحمد بن حنبل عن محمد بن الحسن الواسطی عن عوف الأعرابی)) په طریق تفصیل سره ذکر کړې دې.په دې کښې دی.چه یو سړی حضرت حسن بصری رحمه الله ته اووئیل.چه ای ابو سعید! زما کور لرې دې.بار بار تلل راتلل زما دپاره مشکل دی.که تاسو څه باك نه ګنړئ.نو زه ستاسو په وړاندې احادیث لوستلو سره اوروم.حضرت حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل.((ما أبالی قرأت علیك أو قرأت علیّ)) دې سړی بیا تپوس اوکړو.چه زه د حدیث ادا کولو دپاره ،،حدثنی الحسن،، اووایم؟ نو دوی اوفرمائیل.((نعم، قل حدثنی الحسن))(۴)

**قوله وَحَدَّثَنَا عُبَيْدُاللّٰهِ بْنُ مُوسَى عَنْ سُفْيَانَ:** ددې خائې نه د حضرت سفیان ثوری رحمه الله قول موصولاً نقل کوی.د عبیدالله بن موسی او د حضرت سفیان ثوری رحمهما الله حالات وړاندې تیر شوی دی.(۵)

**قوله قَالَ إِذَاقُرِءَعَلَى الْمُحَدِّثِ فَلَابَأْسَ أَنْ يَقُولَ حَدَّثَنِي:** سفیان ثوری رحمه الله فرمائی.چه کله د محدث په وړاندې اولوستلې شی.نو ادا دپاره ،،حدثنی،، وئیلو

---

۱) میزان الإعتدال( ۵۱۵\۳) رقم( ۷۳۸٤)_

۲) کشف الباری(۵۲۲\۲)_

۳) کشف الباری(۲۲۰\۲)_

٤) الکفایة(۲۲۵) وفتح الباری(۱۵۰\۱) وانظر ایضاً المحدث الفاصل للرامهرمزی(٤۲٦، ٤۲۷) رقم الفقرة(٤۷۳)_

۵) د عبیدالله بن موسی حالاتو دپاره اوګورئ: کشف الباری(۲۳٦\۱) کتاب الإیمان. باب الإیمان وقول النبی ﷺ بنی الإسلام علی خمس.. او د سفیان ثوری رحمه الله حالاتو دپاره اوګورئ: کشف الباری(۲۷۸\۲) کتاب الإیمان. باب ظلم دون ظلم)_

كښې هيڅ باك نشته.

**قوله**: قَالَ وَسَمِعْتُ أَبَا عَاصِمٍ يَقُولُ عَنْ مَالِكٍ وَسُفْيَانَ الْقِرَاءَةُ عَلَى الْعَالِمِ وَقِرَاءَتُهُ سَوَاءٌ: امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ما د ابوعاصم نه واوریدل.هغه د امام مالك او سفيان ثوری رحمهما الله نه نقل کوی.چه ..قرات علی العالم.. او ..قرات د عالم.. دواړه برابر دی.

**قوله**: ابوعاصم: دا امام ابوعاصم ضحاك بن مخلد بن ضحاك بن مسلم شیبانی بصری رحمه الله دی.[1] په ۱۲۲ھ کښې پيدا شو.[2]

دوی د امام ابوحنیفه، سفیان ثوری، امام مالك، شعبه، اوزاعی، ابن جریج، جعفر صادق، محمد بن عجلان، او حیوة بن شریح رحمهم الله پشان ډیرو حضراتو نه روایت د حدیث کړی دی.
ددوی نه روایت کونکو کښې امام بخاری، جریر بن حازم (دا ددوی شیخ هم دی)، امام اصمعی، اسحاق بن راهویه، ابو خیثمه، بندار، محمود بن غیلان او ابو مسلم کجی رحمهم الله پشان ډیر محدثین دی.[3]

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی..ثقة..[4]

امام عجلی رحمه الله فرمائی.«ثقة، كثير الحديث، وكان له فقه»[5]

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی.«صدوق، وهو أحب إلى من روح بن عبادة»[6]

عمر بن شبه رحمه الله فرمائی.«حدثنا أبوعاصم النبيل، والله ما رأيت مثله»[7]

ابن سعد رحمه الله فرمائی.«وكان ثقة فقيهاً»[8]

ابو يعلى خليلى رحمه الله فرمائی.«متفق عليه زهداً وعلماً وديانة وإتقاناً»[9]

عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله فرمائی.«لم يُرَ في يده كتاب قط»[10]

---

[1]) تهذيب الكمال(۱۳\۲۸۱) وسير أعلام النبلاء(۹\۴۸۰)_
[2]) سير أعلام النبلاء(۹\۴۸۰) وتهذيب الكمال(۱۳\۲۸۸)_
[3]) د شیوخ او تلامذه تفصیل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۳\۲۸۲-۲۸۵) وسير أعلام النبلاء (۹\۴۸۰-۴۸۱)
[4]) تاريخ الدارمي عن إبن معين((۱۳۶) رقم(۴۴۴)_
[5]) تهذيب الكمال((۱۳\۲۸۶) وسير أعلام النبلاء(۹\۴۸۱)_
[6])المصدر السابق)_
[7]) المصدر السابق)_
[8]) طبقات ابن سعد(۷\۲۹۵)_
[9]) تهذيب الكمال(۱۳\۲۸۶) وسير أعلام النبلاء(۹\۴۸۲)_
[10]) المصدر السابق)_

ابن قانع رحمه الله فرمائی: «ثقة مامون».(۱)
ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی.(۲)
البته عقیلی رحمه الله دوی لره پخپل کتاب الضعفاء کښې ذکرکړې دې.او يو حديث ئې نقل کړې دې.چه په هغې کښې ددوی مخالفت شوې دی.(۳) خو① اول د کتاب الضعفاء په بعضو نسخو کښې خو ددوی تذکره شته.او په بعضو کښې د سره ددوی تذکره هم نشته.(۴)
② دويمه داچه د معمولی خطايانو نه څوك محفوظ پاتې کيدې شی؟ په دې وجه د داسې خطايانو باوجود محدثين د ثقاتو روايت قبلوی.
عقیلی رحمه الله دا هم ذکرکړی دی.چه کله ابو عاصم ضحاك بن مخلد رحمه الله ته دا اوونيلی شو.چه يحي بن سعيد القطان ستاسو په باره کښې کلام کوی.نو وې فرمائيل.«لستُ بحیٍ ولا میتٍ إذا لم أذکر».(۵)
ښکاره خبره ده.چه د ابن معين، عجلی، ابو حاتم، ابن سعد، ابن قانع او ابن حبان رحمهم الله وغيره حضراتو د توثيق نه پس دچا د مبهم جرح څه حيثيت پاتې کيږی؟
لکه چه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«اجمعوا علی توثیق أبی عاصم».(۶)
امام ابو عاصم رحمه الله پخپله فرمائی.«ما دلست حدیثاً قط».(۷)
**د ،،نبيل،، لقب پريوتلو دلچسپ وجوه:** د امام ابوعاصم رحمه الله لقب ،،نبيل،، دی(۸)، چه ددې مختلف وجوه نقل کړې شوی دی
① بعض حضرات فرمائی.چه يوځل بصره کښې هاتهی راورسيدو.نو ټول خلق ئې کتلو دپاره لاړل.او دې لاړ نشو.ابن جريج رحمه الله تپوس اوکړو.چه ته ولې لاړنشوې.جواب ئې ورکړو چه «لا أجد منك عوضاً» په دې باندې ابن جريج رحمه الله اوفرمائيل.«أنت نبيل».
② بعضې حضرات فرمائی.چه ددوی پوزه ډيره غټه وه.په دې وجه دوی ته نبيل اووئيلی شو.
③ بعضې حضرات فرمائی.چه دوی به ډيره قيمتی او ښه کپړه اغوستله.په دې وجه ددوی لقب ،،نبيل،، مشهور شو.

---

(۱) تهذيب التهذيب(۴۵۲\۱۴)_
(۲) الثقات(۴۸۳\۶)_
(۳)كتاب الضعفاء الكبير(۲\۲۲۲، ۲۲۳)_
(۴) ميزان الإعتدال( وتعليقات على الميزان(۲\۳۲۵)، وتعليقات كتاب الضعفاء(۲\۲۲۲، ۲۲۳)_
(۵) كتاب الضعفاء(۲\۲۲۳)وميزان الإعتدال(۲\۳۲۵)_
(۶) ميزان الإعتدال((۲\۳۲۵)_
(۷) تهذيب الكمال(۱۳\۲۸۶) وسير أعلام النبلاء(۹\۴۸۲)_
(۸) نَبُل يَنْبُل نُبلاً و نَبالةً: عظُمَ وشرُفَ. يقال: أجاد غذاءها حتى نبُل جسمها، وأحسنَ تربيته، فنَبُلَتْ أخلاقه. أنظر المعجم الوسيط(۲\۸۹۸)_

④ بعضې حضرات فرمائي چه يو خل امام شعبه‌رحمه‌الله د يو مياشت پورې د حديث نه اورولو قسم اوخوړلو امام ابوعاصم هغوی ته لاړو او وې فرمائيل «حدث وغلامي العطار حر لوجه الله كفارة عن يمينك» په دې وجه ددوی لقب ‹‹نبيل›› مقرر شو.

⑤ بعضو ونيلي دی چه دې به د امام زفر‌رحمه‌الله سره اوسيدلو او ددوی سره به يو بل كس هم ابوعاصم نومې اوسيدلو. چه هغه د ابوعاصم نبيل پشان غټ مالدار نه وو په زړو شليدلو كپړو كښې به اوسيدو. يو خل ابو عاصم نبيل امام زفر‌رحمه‌الله ته راغې. خادم اطلاع وركړله چه په دروازه باندې ابوعاصم راغلې دې. تپوس ئې اوكړو چه كوم يو ابوعاصم دې؟ خادم اووئيل ‹‹ذاك النبيل›› دغه وخت دا لقب مقرر شو.(۱)

دامام ابوعاصم وفات په۲۱۲ه يا۲۱۳ه يا ۲۱۴ه كښې اوشو.(۲) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

## قوله: الْقِرَاءَةُ عَلَى الْعَالِمِ وَقِرَاءَتُهُ سَوَاءٌ:

ددې قول څه مقصد دې؟ د امام مالك او سفيان ثوری رحمهما الله د قول اصل مقصد دا دې چه لكه څنګه قراءت دعالم معتبر دې دغه شان قراءت على العالم هم معتبر دې يعنى په معتبر كيدو كښې دواړه مساوی دی. خو ددې نه د يوې بلې مسئلې تائيد كيږی هغه دا چه تحديث او اخبار يعنی ‹‹قراءت الشيخ›› او ‹‹قراءة على الشيخ›› كښې هيڅ فرق نشته د دواړو درجه برابر ده. په دې مسئله كښې د عالمانو درې اقوال دی. د كوم تفصيل چه مونږ په «باب قول المحدث: حدثنا ....» كښې د عنوان ‹‹د قراءت على الشيخ مرتبه›› لاندې تفصيل سره ذكركړی دی. ‹‹فارجع إليه إن شئت››_

---

(۱) ددې ټولو وجو دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۳\۲۸۷) وسيرأعلام النبلاء(۹\۴۸۲، ۴۸۳)، وعمدة القاری(۲\۱۸)_

(۲) تهذيب الكمال(۱۳\۲۸۸، ۲۸۹)_

## حديث باب

٦٣-((حدثنا عبد الله بن يوسف قال حدثنا الليث عن سعيد هو المقبري عن شريك بن عبد الله بن أبي نمر أنه سمع أنس بن مالك ((يقول بينما نحن جلوس مع النبي صلى الله عليه وسلم في المسجد دخل رجل على جمل فأناخه في المسجد ثم عقله ثم قال لهم أيكم محمد والنبي صلى الله عليه وسلم متكئ بين ظهرانيهم فقلنا هذا الرجل الأبيض المتكئ فقال له الرجل يا ابن عبد المطلب فقال له النبي صلى الله عليه وسلم قد أجبتك فقال الرجل للنبي صلى الله عليه وسلم إني سائلك فمشدد عليك في المسألة فلا تجد علي في نفسك فقال سل عما بدا لك فقال أسألك بربك ورب من قبلك آلله أرسلك إلى الناس كلهم فقال اللهم نعم قال أنشدك بالله آلله أمرك أن نصلي الصلوات الخمس في اليوم والليلة قال اللهم نعم قال أنشدك بالله آلله أمرك أن نصوم هذا الشهر من السنة قال اللهم نعم قال أنشدك بالله آلله أمرك أن تأخذ هذه الصدقة من أغنيائنا فتقسمها على فقرائنا فقال النبي صلى الله عليه وسلم اللهم نعم فقال الرجل آمنت بما جئت به وأنا رسول من ورائي من قومي وأنا ضمام بن ثعلبة أخو بني سعد بن بكر ورواه موسى وعلي بن عبد الحميد عن سليمان عن ثابت عن أنس عن النبي صلى الله عليه وسلم بهذا))

## رجال الحديث

① عبدالله بن یوسف: دا مشهور محدث عبدالله بن یوسف تنیسی رحمه الله دي. ددوی مختصر تذکره په ،،بدءالوحی،، کښې د دویم حدیث لاندې تیره شوې ده.(٢)

② اللیث: دا مشهور محدث امام لیث بن سعد فهمی رحمه الله دي. ددوی حالات هم په ،،بدءالوحی،، کښې د دریم حدیث په تشریح کښې تیر شوی دی.(٣)

③ سعید: دا سعید بن ابی سعید مقبری رحمه الله دي. ددوی تفصیلی تذکره په کتاب الایمان

---

١) قوله: أنس بن مالک الحديث أخرجه مسلم فی صحيحه (١/٣٠، ٣١) كتاب الإيمان، باب السؤال عن أركان الإسلام، رقم(١١١) و(١١٢) والنسائی فی سننه فی كتاب الصيام، باب وجوب الصيام، رقم(٢٠٩٣) وأبوداؤد طرفاً منه فی سننه، فی كتاب الصلاة، باب ماجاء فی المشرک يدخل المسجد، رقم(٤٨٦) والترمذی فی جامعه فی أبواب الزكاة، باب ماجاء إذا أديت الزكاة فقد قضيت ما عليک، رقم(٦١٩) والدارمی فی سننه (١/١٧١، ١٧٢) فاتحة كتاب الطهارة، باب فرض الوضوء والصلاة، رقم(٦٥٠) و إبن ماجه فی سننه فی كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها، باب ما جاء فی فرض الصلوات الخمس والمحافظة عليها، رقم(١٤٠٢)

٢) كشف البارى(١/٢٨٩، ٢٩٠)

٣) كشف البارى(١/٣٢٤)

كښې د ،،باب الذين يسر،، لاندې تيره شوې ده.[1]

۴ شريك بن عبدالله بن ابى نمر: دا ابوعبدالله شريك بن عبدالله بن ابى نمر قرشى مدنى رحمه الله دې.[2]

دوى د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه علاوه د سعيد بن المسيب، عامر بن سعد بن ابى وقاص، عطاء بن يسار، عكرمه مولى ابن عباس، كُريب مولى ابن عباس، او ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمهم الله وغيره حضراتو نه روايت د حديث كوى.

ددوى نه روايت كونكو كښې سعيد مقبرى (وهو أكبر منه) سليمان بن هلال، سفيان ثورى، امام مالك، مسلم بن خالد زنجى او اسماعيل بن جعفربن ابى كثير رحمهم الله وغيره حضرات دى.[3]

امام يحيي بن معين رحمه الله فرمائى.،،ليس به بأس،،[4]

امام ابو داؤد رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،[5]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[6]

ابن سعد رحمه الله فرمائى.((كان ثقة كثير الحديث))[7]

امام عجلى رحمه الله فرمائى.،،تابعى ثقة،،[8]

امام نسائى رحمه الله فرمائى.،،ليس بالقوى،،[9]

د امام يحيي بن معين رحمه الله نه هم منقول دى.،،ليس بالقوى،،[10]

ابن الجارود رحمه الله فرمائى.((ليس به بأس وليس بالقوى))[11]

امام يحيي بن سعيد القطان رحمه الله به ددوى نه روايت نه كولو.[12]

ساجى رحمه الله فرمائى.،،كان يرى القدر،،[13]

---

[1] كشف البارى(۲\۳۳۶)_

[2] تهذيب الكمال(۱۲\۴۷۵) وسير أعلام النبلاء(۶\۱۵۹)_

[3] د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۲\۴۷۵، ۴۷۶) وسير أعلام النبلاء(۶\۱۵۹)_

[4] تاريخ ابن معين برواية الدارمى(۱۳۲) رقم(۴۲۰)_

[5] تهذيب التهذيب(۴\۳۳۸)_

[6] ألثقات لإبن حبان(۴\۳۶۰) وقال ..ربما أخطأ..)_

[7] تهذيب الكمال(۱۲\۴۷۷) وتهذيب التهذيب(۴\۳۳۸)_

[8] تعليقات على تهذيب الكمال(۱۲\۴۷۷) نقلاً عن ..ألثقات.. للعجلى)_

[9] سير أعلام النبلاء(۴\۱۵۹)_

[10] المصدر السابق، وميزان الإعتدال(۲\۲۶۹) رقم(۳۶۹۶)_

[11] تهذيب التهذيب(۴\۳۳۸)_

[12] المصدر السابق)_

[13] المصدر السابق)_

په دوى باندې د ,,وضع حديثه، او د ,,قدرى، كيدو الزام او دهغې ترديد ددې ټولو اقوالو نه معلوميږى.چه بعضو حضراتو ددوى توثيق كړى دې. او بعضو حضراتو ددوى تضعيف كړې دې.ترديې چه ابن حزم رحمه الله دوى لره ,,متهم بالوضع،، ګرځولې دې[1] او په دوى باندې د قدرى كيدو الزام هم دې.خو ددوى په باره كښې معتدل رائې داده.چه شريك اګرچه د ډير مضبوط رواتو نه نه دې.خو دهغه راويانو نه ضرور دې.د كومو روايات چه د متابعت او استشهاد په طور باندې پيش كولې شى.لكه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.چه «وقد وثقه أبوداؤد وروى عنه مثل مالك، ولا ريب أنه ليس فى الثبت كيحيى بن سعيد الأنصارى»[2]

دغه شان ټولو اقوالو ته كتلو سره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.،،صدوق يخطئ،،[3]

بلكه حافظ ابن عدى رحمه الله ددوى په باره كښې قول فيصل دا ذكركړې دې.چه «وشريك بن عبدالله رجل مشهور من أهل المدينة، حدث عنه مالك وغير مالك من الثقات، وحديثه إذا روى عنه ثقة، فإنه لا بأس بروايته إلا أن يروى عنه ضعيف»[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه ددوى احايث د صحاح سته مؤلفينو قابل د احتجاج ګرځولى دى.«أخرج له الترمذى فى شمائله لا فى الجامع، يعرف ذالك برمزة عند المزى وابن حجر وغيرهما»

البته ددوى د اسراء په حديث كښې كوم چه دوى د حضرت انس رضى الله عنه نه روايت كړې دې. بعضې خايونه داسې دى.چه هغه شاذ دى.او ددې متابعت نه ملاويږى.[5]

تركومه پورې چه د قدرى كيدو تعلق دې.نو مونږه څو ځله ونيلى دى.چه د مبتدع روايت هغه وخت مردود وى.كله چه دې داعى وى.

د شريك بن عبدالله بن ابى نمر وفات د ۱۴۰ھ په حدود كښې شوې دې.[6] الله اعلم.

**فائده** ددوى نيكه ابو نمر (بفتح النون وكسر الميم) ابن سعد او ابن السكن رحمهما الله په صحابه كرامو كښې شمار كړې دې.او ابن عبدالبر،ابن فتحون،او ابن الاثير رحمه الله ددوى تذكره پريخودې ده.[7] او ددوى د پلار ,,عبدالله بن ابى نمر،، تذكره چرته هم نه ملاويږى.والله اعلم.

⑤ **انس بن مالك رضى الله عنه:** د حضرت انس بن مالك رضى الله عنه حالات په كتاب الايمان كښې د «باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه» لاندې تيرشوى دى.[8]

---

[1] سير أعلام النبلاء(۱۵۹\۶) وانظر أيضاميزان الإعتدال(۲۶۹\۲)_
[2] سير أعلام النبلاء(۱۵۹\۶، ۱۶۰)_
[3] تقريب التهذيب(۲۶۶) رقم(۲۷۸۸)_
[4] الكامل لإبن عدى(۶\٤)
[5] هدى السارى(٤۱۰) سير أعلام النبلاء(۱۶۰\۶)_
[6] تقريب التهذيب(۲۶۶) رقم(۲۷۸۸)_
[7] فتح البارى(۱۵۰\۱۱) والإصابة(۱۹۸\٤)_
[8] كشف البارى(٤\۲)_

**قوله بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ دَخَلَ رَجُلٌ عَلَى جَمَلٍ:** مونږ د نبى كريم ﷺ سره په جمات كښې ناست وو.چه يو سړې په اوښ باندې سور داخل شو.

داسړې حضرت ضمام بن ثعلبه رضی الله عنه دې.لکه څنګه چه دروايت په آخر كښې تصريح وارد ده

**د حضرت ضمام بن ثعلبه رضی الله عنه راتګ په كوم سن كښې شوې وو؟** حضرت ضمام بن ثعلبه رضی الله عنه د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې كوم سن كښې حاضر شوې وو؟ په دې كښې اختلاف دې.

① واقدى. ابن سعد او محمد بن حبيب رحمه الله فرمائى.چه په ۵ھ كښې ددوى حاضرى شوې وه.(۱) ابن سعد رحمه الله د واقدى په واسطې سره د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما يو روايت هم نقل كړې دې.چه په هغې كښې د ۵ھ تصريح وارد شوې ده.((بعثت بن سعد بن بكر إلى رجب سنة خمس ضمام بن ثعلبة....))(۲)

خو دا روايت مقبول نه دې.څكه چه دا د ((الواقدى عن أبى بكر بن عبدالله بن أبى سبرة عن شريك بن عبدالله بن أبى نمر عن كريب عن ابن عباس)) طريق سره نقل دې.(۳)اول خو په دې كښې ..واقدى.. دې.چه په دوى باندې د رجال عالمانو اوګد كلام كړې دې.بعضو حضراتو توثيق كړې دې.خو اكثرو عالمانو دا غيرموثوق به ګرځولې دې.(۴) اوكه اومنلې شى.چه په مغازى او سير كښې داخه په درجه كښې معتبر دې.لكه څنګه چه د حافظ ذهبى رحمه الله د كلام نه معلوميږى.(۵) بيا هم دا روايت معتبر نه دې.څكه چه په دې كښې ددوى استاذ ابو بكر بن عبدالله بن ابى سبره دې.چه دا مجروح راوى دې.امام نسائى رحمه الله دا متروك ګرځولې دې. امام ابن معين رحمه الله فرمائى.((ليس بشىء)) اوامام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى.((كان يضع الحديث))(۶)

بيا ددوى استاذ شريك بن عبدالله بن ابى نمر دې.ددوى په باره كښې مونږه ددوى په حالاتو كښې اوس د حافظ ابن عدى رحمه الله كلام ذكر كړې دې.چه((وحديثه إذا روى عنه ثقة فإنه لا بأس بروايته إلا أن يروى عنه ضعيف))(۷) او دلته د ابوبكر بن عبدالله بن ابى سبره پشان وضاع يا

---

(۱) فتح البارى(۱۵۲۱۱) والطبقات الكبرى لابن سعد(۲۹۹۱۱) وفد سعد بن بكر)_

(۲) طبقات ابن سعد(۲۹۹۱۱) والبداية والنهاية(۶۱۱۵) قدوم ضمام بن ثعلبة وافداً على قومه)_

(۳) المصدرالسابق)_

(۴) تهذيب الكمال(۱۲۶-۱۸۰-۱۹۴) وسير أعلام النبلاء(۱۹ ۴۵۴-۴۶۹) وميزان الإعتدال(۳ ۶۶۲-۶۶۶)_

(۵) حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.((وقد تقرر أن الواقدى ضعيف، يحتاج اليه فى الغزوات والتاريخ....)) سير أعلام النبلاء(۱۹ ۴۶۹) او هم دوى فرمائى.((كان إلى حفظه المنتهى فى الأخبار والسير والمغازى والحوادث و أيام الناس والفقه وغير ذالک)) ميزان الإعتدال( ۳ ۶۶۳)_

(۶) ميزان الاعتدال( ۴ ۵۰۳، ۵۰۴) رقم(۱۰۰۲۴)_

(۷) الكامل لابن عدى( ۴ ۶)

متهم بالوضع راوى ددوى شاګرد دې نو روايت قابل د احتجاج نه دې.

④ قرطبي ﷫ يو قول د ۵ه نقل کړې دې (۱).

③ علامه ابن عبدالبر او ابن الاثير رحمهما الله د بعضو حضراتو نه نقل کړى دى چه ددوى حاضرى په ۷ه کښې شوې وه. (۲)

④ د ابن اسحاق او ابوعبيده رحمهما الله وغيره رائې دا ده چه ددوى راتګ په ۹ه عام الوفود کښې شوې وو (۳) چه ددې وجوه دا دى

① هم په دې باب کښې راروان روايت کښې دى. (۴) او دا امام مسلم ﷫ هم نقل کړې دې (۵) «نهينا في القرآن أن نسأل النبي ﷺ» چه مونږ په قرآن کريم کښې د نبي کريم ﷺ نه د سوال کولو نه منع کړې شوى يو. ددې نه مراد د سورۀ مائده آيت ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾ (۶) دې. (۷) اودا خبره معلومه ده چه د سورۀ مائده نزول د ۸ه نه ګانى روستو دې. (۸)

② دويمه وجه داده چه په دې روايت کښې د حضرت ضمام ﷛ دا جمله هم ده «أتانا رسولك» ستاسو قاصد مونږ ته راغې. نبي کريم ﷺ قاصدان د صلح حديبيه نه پس ليګلى وو. (۹)

③ دريمه وجه دا ده چه د ضمام په قصه کښې ذکر دى چه دوى لره دده قوم راليګلې وو. (۱۰) نبي کريم ﷺ ته عام طور باندې د وفودو حاضرى د فتح مکې نه پس شوې ده (۱۱)

④ د حضرت ابن عباس ﷠ په روايت کښې دا دى چه ددوى د واپس تلو نه پس ددوى ټول قوم مسلمان شو. (۱۳) دا خبره هم معلومه او متعين ده چه ددوى قوم بنوسعد بن بکر بن

---

(۱) شرح الأبي على صحيح مسلم(۸۱\۱)_
(۲) ألإستيعاب بهامش الإصابة(۲۱۵\۲) وأسد الغابة(۵۷\۳)_
(۳) السيرة النبوية لإبن هشام بهامش الروض الأنف(۳۳۹\۲) وفتح البارى(۱۵۲\۱) وعمدة القارى(۲۲\۲)_
(۴) صحيح بخارى(۱۵\۱) دا روايت د بخارى په بعضو نسخو کښې شته او په بعضو کښې نشته...کما نبه على ذالک الحافظ فى فتح البارى..(ج۱۵۳\۱)_
(۵) صحيح مسلم(۳۰\۱) کتاب الإيمان. باب السؤال عن أركان الإسلام)_
(۶) (المائدة:۱۰۱)_
(۷) إكمال المعلم للأبيّ(۸۱\۱)_
(۸) فتح البارى(۱۵۲\۱) وعمدة القارى(۲۲\۲)_
(۹) صحيح بخارى(۱۵\۱)و صحيح مسلم(۳۰\۱)_
(۱۰) فتح البارى(۱۵۲\۱)_
(۱۱) كما فى رواية إبن اسحاق. أنظر السيرة النّبوية لإبن هشام(۳۳۹\۲)_
(۱۲) فتح البارى(۱۵۲\۱)_
(۱۳) أنظر سنن الدارمى(۱۷۳\۱) كتاب الطّهارة. باب فرض الوضوء والصّلاة. رقم(۶۵۲) ، مسند أحمد (۲۶۴\۱،

هوازن دي.او دا قوم د غزوهٔ حنين نه پس مسلمان شوي دي.(۱).او غزوهٔ حنين په شوال۸ﻫ کښې واقع شوې وو.(۲)

ددې ټولو خبرو ملاوولو نه راجح هم دا معلومېږي.چه ددوى راتګ په ..سنة الوفود..يعنى ۹ﻫ کښې شوې وو.والله اعلم.

**قوله** فَأَنَاخَهُ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ عَقَلَهُ: نو دا ئې په جمات کښې کېنولو.بيا ئې دا اوتړلو.

علامه خطابى او ابن بطال رحمهما الله ددې نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې.چه د ماکول اللحم ځاروو ارواث او ابوال ( سوټي او متيازې) پاکې دى.(۳).ځکه چه دلته کښې اوښ جمات کښې دننه تړلې شوې دې.ښکاره ده.چه ددې خبرې ضمانت نشي ورکولې كيدې.چه اوښ به دومره وخته پورې جمات په سوټي (خاشنړو) او متيازو سره نه ګنده کوى.

خو ددې نه استدلال د حد نهزيات ضعيف دې.ځکه

① ښکاره ده.چه ددې استدلال مدار په دې خبره باندې دې.چه د اوښ د روث او بول نه د جمات پليت کيدو امکان دې.صرف په دومره احتمال باندې ددې په طهارت باندې حکم لګول صحيح نه دى.

② ددې نه علاوه ابونعيم په ..مستخرج.. کښې چه دا روايت نقل کړې دې.د هغې الفاظ دى.«اقبل على بعيرله حتى اتى المسجد، فأناخه ثم عقله، فدخل المسجد»(۴) ددې سياق نه واضح کيږى.چه دوى په جمات کښې داخل کړې نه وو.

③ ددې نه هم زيات صريح د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روايت دې.چه دا امام دارمى، امام احمد ، حاکم، او ابن اسحاق رحمهم الله وغيره نقل کړې دې.«فأناخ بعيره على باب المسجد، ثم عقله، ثم دخل المسجد....»(۵)

ددې ټولو طرقو نه معلومه شوه.چه په حديث باب کښې د «فأناخه في المسجد» نه مراد «في داخل المسجد» نه دې.بلکه «فأناخه في باب المسجد»يا«في ساحة المسجد» مراد دې.(۶).نو ددې نه په طهارت د ارواث او ابوال (خاشنړو او متيازو) باندې استدلال صحيح نه دې.

---

(۱) فتح البارى(۱۵۲/۱) وعمدة القارى(۲۲/۲)_

(۲) المصدر السابق)_

(۳) معالم السنن للخطابى..مع مختصر سنن أبى داؤد للمنذرى وتهذيب إبن القيم. (۲۶۵/۱).. كتاب الصلاة، باب فى المشرک يدخل المسجد. وفتح البارى(۱۵۱/۱). وعمدة القارى(۲۲/۲) وشرح الكرمانى(۱۹/۲)_

(۴) فتح البارى(۱۵۱/۱) وعمدة القارى(۲۱/۲)_

(۵) سنن الدارمى(۱۷۲/۱) كتاب الطهارة. باب فرض الوضوء والصلاة. رقم(۲۵۲) ومسند احمد(۱۶۴/۱) والمستدرک للحاكم(۵۴/۳) كتاب المغازى. حكاية قدوم ضمام بن ثعلبه عندالنبى صلى الله عليه وسلم و إسلامه. والسيرة النبوية لإبن هشام((۳۳۹/۲)_

(۶) فتح البارى(۱۵۱/۱) وعمدة القارى(۲۱/۲)_

**قوله** ثُمَّ قَالَ لَهُمْ أَيُّكُمْ مُحَمَّدٌ: بيا ئې د صحابه كراموﷺ نه تپوس اوكړو په تاسو كښې محمد (ﷺ) څوك دې؟ ضمام بن ثعلبهﷺ د نبى كريمﷺ نوم واخستلو. او تپوس ئې اوكړو چه دا په ښكاره د ادب خلاف دې. ددې جواب دا دې كه هغه ددې وختـه پورې مسلمان شوى نه وو. بيا خو هيڅ اشكال نشته. او كه مسلمان شوې وو. نو ونيلې شى چه نوې نوې راغلې وو. د قرآن كريم د تعليماتو نه پوره واقف نه وو. او نه د رسالت د ادابو نه واقف وو په دې وجه دوى د نبى كريمﷺ نوم اخستې وو. او تپوس ئې كړې وو. (١)

**قوله** وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئٌ بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِمْ: او نبى كريمﷺ ددوى په مينځ كښې ډډه لګولې وه. اوناست وو.

**ايا ډډه لګولو سره كيناستل د نبى كريمﷺ عادت وو؟** نبى كريمﷺ به عام طور باندې ډډه لګولو سره په امتيازى شان سره كيناستو. (٢) دلته ممكن ده چه څه داسې ضرورت راپيښ شوې وى. چه نبى كريمﷺ ډډه لګولې وى. ددې نه علاوه ،،اتكاء،، په بستر وغيره باندې اطمينان سره كيناستلو ته هم وائى. اګر كه ډډه ئې نه وى لګولې. حالانكه عام طور باندې ،،اتكاء،، نه دا معلوميږى. چه سړې يو طرف ته مائل او ډډه وهونكې ناست دې. (٣)

**قوله** بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِمْ:

د ،، **بين ظهرانيهم**،، **تحقيق** په ،،**ظهرانيهم**،، كښې به نون باندې فتحه ونيلې شى. كسره صحيح نه ده. دا په اصل كښې ،،**بين ظهريهم**،، دې. په دې كښې د الف او نون اضافه شوې ده. او ،،**بين ظهرانيهم**،، جوړ كړې شوې دې. چه دا د ،،**بينهم**،، په معنى كښې دې. لكه چه ونيلې شى. ((**أقام فلان بين ظهرانى قومه وبين ظهرانيهم**))، **أى: بينهم**،، ګويا لفظ د ،،ظهر،، مقحم دې. علامه زمخشرى وائى. ((**وكان معنى التثنية فيه أن ظهراً منهم قدامه، وآخر وراءه، فهو مكنوف من جانبيه**))

بيا لكه څنګه چه په بعضو الفاظو كښې نسبت كولو سره، مبالغتاً او تاكيداً د الف او نون اضافه كولې شى. لكه د ،،نفس،، په نسبت كښې ،،نفسانى،، او د ،،صيدل،، او ،،صيدن،، (**وهما أصول الأشياء وجواهرها**) په نسبت كښې ،،صيدلانى،، او ،،صيدنانى،، ونيلې كيږى. دغه شان دلته هم د ،،ظهر،، نه پس د الف او نون اضافه كړې شوې ده. علامه زمخشرى وائى. ((**هذا أصله، ثم كثر (أى استعماله) حتى استعمل فى الإقامة بين القوم مطلقاً وإن لم يكن مكنوفاً**)) (٤)

---

١) عمدة القارى (٢١\٢)_

٢) لكه چه د سنن ابى داؤد روايت دې. ((كان رسول الله ﷺ يجلس بين ظهرى أصحابه. فيجئ الغريب. فلا يدرى أيهم هو (ﷺ) حتى يسأل...))_

٣) معالم السنن للخطابى (٢٦٥\١) كتاب الصلاة. باب فى المشرک يدخل المسجد)_

٤) الفائق للزمخشرى (٤١١\١) والنهاية لابن الأثير (١٦٦\٣) وتاج العروس (٣٧٣\٣)_

**فائده** ددې روایت نه معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ به صحابه کرامو ﷺ سره یوشان اوسیدو او ددې نه دا هم معلومه شوه چه دخپلې اتباع په مینځ کښې مشرانو دپاره گنجائش (اجازت) شته چه ډډه اووهي.او کینی.(۱)

**قوله فَقُلْنَا هٰذَا الرَّجُلُ الْأَبْيَضُ الْمُتَّكِئُ:** مونږ اووئیل چه دا سپین بنائسته بزرگ (محمد ﷺ) دی.چه ډډه ئې لګولې ده.

**د نبی کریم ﷺ رنګ مبارک** دلته د ..ابیض.. نه مراد د چونې پشان سپین نه دی بلکه سپینوالې مراد دی.چه په هغې کښې د سوروالی ګډون وی.(۲) خکه چه په بعضو روایتو کښې راغلی دی.((ولا بالأبیض الأمهق ولا بالآدم))(۳) یعنی دوی نه خالص سپین رنګې وو او نه غنم رنګې وو.لکه چه د حارث بن عمیر په روایت کښې دی.((هو الأمغر))(۴)..أمغر.. د ..مغره.. نه ماخوذ دی.مغره هغه سپینوالی ته وائی.چه په هغې کښې د سور رنګ ګډون وی.لکه چه حمزه بن الحارث د ..امغر.. تفسیر بیان کړې دی.((هو الأبیض المشرب بحمرة))(۵) دغه شان د نبی کریم ﷺ په صفت کښې نقل دی.((أبیض مشرب))(۶)چه ددې تفسیر امام اصمعی رحمه الله په ((ألذی فی بیاضه حمرة)) سره کړې دی.(۷)

**قوله فَقَالَ لَهُ الرَّجُلُ يَا ابْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ:** دې سړی اووئیل.ای د عبدالمطلب خویه! دلته د ..ابن.. نه وړاندې حرف نداء محذوف دی.د ..کشمیهنی.. په روایت کښې ..یا ابن عبدالمطلب.. دی.(۸)

**د ,,ابن عبدالمطلب،، وئیلو وجه** دې سړی نبی کریم ﷺ عبدالمطلب طرف ته خکه منسوب کړو.چه تراوسه دوی لا پیدا شوی هم نه وو.چه ددوی پلار وفات شو.او ددوی پرورش نیکه اوکړو.ددوی نیکه په عربو کښې مشهور وو.هم ددې شهرت په موقعه نبی کریم ﷺ د غزوه حنین په موقعه باندې فرمائیلی وو.

أنا النبی لا کذب أنا ابن عبد المطلب(۹)

---

(۱) فتح الباری(۱۱\۱۵۰)_
(۲) فتح الباری(۱۱\۱۵۱)و عمدة القاری(۲\۲۱)_
(۳) شمائل الترمذی..مع شرح المواهب اللدنیة للبیجوری(ص۸) باب ماجاء فی خلق رسول الله ﷺ)_
(۴) فتح الباری(۱۱\۱۵۱) وعمدة القاری(۲\۲۱) وسنن النسائی الکبری(۲\۶۳) کتاب الصیام. باب وجوب الصیام رقم(۲۴۰۴)_
(۵) فتح الباری(۱۱\۱۵۱) وسنن النسائی الکبری(۲\۶۳)_
(۶) شمائل ترمذی(ص۱۸) باب ماجاء فی خلق رسول الله ﷺ)_
(۷) شمائل ترمذی(ص۲۱)_
(۸) فتح الباری(۱۱\۱۵۱)_
(۹) الروض الأنف(۲\۲۸۹) ومعالم السنن للخطابی(۲۶۶)_

يعنې كه داصل او دينى كمال په حيثيت سره اوكتلې شى.نو زه نبى يم.او كه دنيوى فخرونه كتل غواړې.نو د عبدالمطلب پشان د مشهور سردار خوئې يم.ددې نه معلومه شوه. چه د سړى خپل نيكه طرف ته نسبت كولو كښې هيڅ باك نشته.

**قوله** فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَجَبْتُكَ: نبى كريم ﷺ هغه ته اوفرمائيل.زه اورم.

**د "قد اجبتك" معنى** د ..قد اجبتك.. ښكاره معنى دا جوړيږى.چه ..ما تاته جواب دركړو.. په دې باندې اشكال كيږى.چه اوسه پورې نبى كريم ﷺ جواب كوم خانې دركړې دې.چه ..قد اجبتك.. ئې اوفرمائيلې؟ ددې جواب دا دې.چه دلته ..اجبتك.. د ..سمعتك.. په معنى كښې دې.(۱) يعنى زه اورم.بعضې حضرات فرمائى.چه دا ..انشاء اجابت.. دې.(۲) يعنى گويا نبى كريم ﷺ د هغه د خطاب په جواب كښې ..نعم.. فرمائيلى دى.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى.چه په ابتداء كښې كله هغه "أيكم محمد" اووئيل.نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل ..څه دى؟..اوددې سره صحابه كرامو رضي الله عنهم اوفرمائل. چه محمد (ﷺ) دا دې.نو ده دوباره اووئيل.«يا ابن عبدالمطلب» په دې باندې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.چه ..ما تاته وړاندې جواب دركړې دې..نو گويا په دې صورت كښې دا كلمه د تنبيه نه ده.بلكه ددې نه اجابت حقيقى مراد دې.(۳)

بعضې حضرات وائى.چه نبى كريم ﷺ ته ددوى انداز كلام خوښ نشو.په دې وجه نبى كريم ﷺ ..قد اجبتك.. اوفرمائيل.د مستقل جواب وركولو ضرورت ئې اونه گڼړلو.(۴) خو دا په ظاهره صحيح نه دې.ځكه چه د نبى كريم ﷺ د اخلاقو نه دا خبره لرې ده.والله اعلم.

**قوله** فَقَالَ الرَّجُلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي سَائِلُكَ فَمُشَدِّدٌ عَلَيْكَ فِي الْمَسْأَلَةِ: دې سړى نبى كريم ﷺ ته اووئيل.چه زه ستا نه يو څو سوالونه كوم.او (په انداز د خبرو كښې) تاسو باندې سختى كونكې يم.

ددې سختئ نه مراد قسم وركول، او تپوس كول دى.

**قوله** فَلَا تَجِدْ عَلَيَّ فِي نَفْسِكَ: تاسو پخپل زړه كښې ما باندې مه ناراضه كيږئ.

**د "وجد" د مصادرو لغوى تحقيق** ددې مصدر ..موجدة.. دې.وئيلې شى.«وجد عليه موجدة: غضب»، "وجد" د باب "ضرب" نه استعماليږى.د مصادرو په اختلاف سره ددې معنى مختلف كيږى.لكه چه وئيلې شى.

---

۱) شرح الكرمانى(۲/۱۷)_

۲) المصدر السابق)_

۳) تقرير بخارى شريف(۱/۱۷۰)_

۴) معالم السنن(۱/۶۵ ل) وشرح الكرمانى(۲/۱۷)_

((وجد ضالته به وجداناً)) ورك شوې څيز موندل.... ((وجد مطلوبه وُجوداً)) مطلوبه څيز حاصلول.
((وجدَ فى الحزن وَجداً)) غمگين كيدل...... ((وجد فى المال وِجداً (بضم الواو وفتحها وكسرها) وجدةً))
مالداره كيدل.((وجد على فلان موجدةً)) ناراضه كيدل.(١)

**قوله** فَقَالَ سَلْ عَمَّا بَدَا لَكَ: نبى كريم ﷺ ورته اوفرمائيل.څه چه دې زړه كښې راځى.تپوس كوه.

**قوله** فَقَالَ أَسْأَلُكَ بِرَبِّكَ وَرَبِّ مَنْ قَبْلَكَ أَاللّٰهُ أَرْسَلَكَ إِلَى النَّاسِ كُلِّهِمْ فَقَالَ اللّٰهُمَّ نَعَمْ: هغه اووئيل.چه زه تاسو ته د ستا د پروردګار او ستا نه د وړاندې خلقو د پروردګار قسم دركوم او تپوس كوم.چه آيا الله تعالى ته ټولو خلقو طرف ته رالېګلې يې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمايل.آو.

**په تفصيل سره د قسم وركولو وجه** دې سړى چه كوم (تفصيل سره) قسم وركړو.دده په ذهن كښې دا وو.چه كله زه دا اووايم.چه زه ستا د رب، او دټول مخلوق كوم چه ستا نه وړاندې تير شوى دى.د هغوى دټولو د رب قسم دركوم.او تپوس كوم.نو كه دا سړې غلط بيانى كونكې وى.نو د لوئې ذات د هيبت نه به اوېريږى.او ژبه ئې به ګډه وډه شى.او يقيناً څه نه څه به دده په كلام كښې ګډ وډې پيدا شى.اوكه رشتونې وى.نو بې يرې (په ډاډه زړه) به خبرې اوكړى.خو چونكه نبى كريم ﷺ رشتونې وو.په دې وجه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.((اللهم نعم)).

وريسې د موسى بن اسماعيل په روايت (چه ددې تخريج امام مسلم رحمه الله هم كړې دې) كښې دى.((أتانا رسولك فأخبرنا أنك تزعم أن الله عزوجل أرسلك قال صدق فقال فمن خلق السماء؟ قال الله عز وجل، قال فمن خلق الأرض والجبال؟، قال الله عزوجل، قال فمن جعل فيها المنافع؟ قال الله عزوجل، قال فبالذى خلق السماء وخلق الأرض ونصب الجبال وجعل فيها المنافع آلله أرسلك؟ قال: نعم))(٢)

**قوله** قَالَ أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ أَاللّٰهُ أَمَرَكَ أَنْ نُصَلِّيَ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ قَالَ اللّٰهُمَّ نَعَمْ: هغه اووئيل.زه تاته د الله تعالى قسم دركوم.چه آيا تاته الله تعالى حكم دركړې دې.چه په ورځ او شپه كښې پنځه مونځونه كوه؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل آو!

**قوله** قَالَ أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ أَاللّٰهُ أَمَرَكَ أَنْ نَصُومَ هَذَا الشَّهْرَ مِنَ السَّنَةِ قَالَ اللّٰهُمَّ نَعَمْ: هغه اووئيل.چه زه تاته د الله تعالى قسم دركوم.چه آيا الله تعالى تاته حكم دركړې

---

١) مختار الصحاح(٧٠٩، ٧١٠)_
٢) صحيح مسلم(٣٠١١، ٣١)كتاب الإيمان، باب السؤال عن أركان الإسلام)_

دې چه مونږ په کال کښې ددې (رمضان) میاشتې روژې نیسو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.آو!

**قوله** قَالَ أَنْشُدُكَ بِاللَّهِ أَاللَّهُ أَمَرَكَ أَنْ تَأْخُذَ هَذِهِ الصَّدَقَةَ مِنْ أَغْنِيَائِنَا فَتَقْسِمَهَا عَلَى فُقَرَائِنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ نَعَمْ: هغه اوونیل چه زه تاته د الله تعالی قسم درکوم.چه آیا الله تعالی تاته حکم درکړې دې.چه تاسو دا صدقه زمونږ د مالدارو نه واخلئ.او زمونږ په فقیرانو کښې ئې تقسیم کړئ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.آو!

**ایا سرې خپل زکات پخپله نشی تقسیمولې؟** ابن التین رحمه الله د «ان تأخذ هذه الصدقة» نه دا استدلال کړې دې.چه سړې خپل زکاة پخپله نشی تقسیمولې.خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. «وفیه نظر»(١) بنکاره خبره ده.چه دا استدلال کمزورې دې.او مفهوم مخالف. حجت نه دې.

**صرف د «فقراء» دتخصیص وجه** بیا دلته یو وړوکې شان دا سوال کیږی.چه د زکاة مصارف په قرآن کریم کښې اته بیان کړې شوی دی.دلته صرف د «فقراء» ذکر دې؟ ددې جواب دا دې.چه دلته د فقراء ذکر د غالب عنصر په طور شوې دې.یا په دې وجه شوې دې.چه د مالدارو په مقابله کښې د فقراء ذکر کولې شی.(٢)

**بل ښار ته د زکاة منتقل کولو مسئله** دلته په دې خبره باندې هم استدلال شوې دې.چه په نقل د زکاة کښې یو ښار نه بل ښارته اوړل جائز نه دی.ځکه چه دلته دا دی.چه مالدارو نه واخستلې شی.او ددوی په فقیرانو کښې تقسیم کړې شی.(٣)

① د شافعیه، مالکیه او جمهورو رحمهم الله په نیز د اصح قول مطابق یو ښار نه بل ښار ته نقل کول جائز نه دی.که یوکس ئې منتقل کړی.نو زکاة به ادا کیږی اوکه نه؟ دمالکیه په نیز د اصح قول مطابق اداکیږی.او د شافعیه په نیز نه ادا کیږی.البته که په دې ښار کښې د سره مستحقین نه وی.نو بل ښار ته منتقل کولو سره به زکاة ادا کیږی.

② د امام ابوحنیفه رحمه الله او ددوی د اصحابو او امام لیث بن سعد رحمهم الله په نیز نقل کول جائز دی.(٤) «والتفصیل إن شاء الله سیأتی فی کتاب الزکاة».

---

١) فتح الباری(١\١٥٢)_

٢) عمدة القاری(٢\٢٣)_

٣) أعلام الحدیث للخطابی(١\٧٢٧) کتاب الزکاة، باب وجوب الزکاة. وقال النووی فی شرحه لصحیح مسلم(١\٣٧)..کتاب الإیمان، باب الدعاء إلی الشهادتین وشرائع الإسلام.. وهذا الإستدلال لیس بظاهر، لأن الضمیر فی ..فقرائهم.. محتمل لفقراء المسلمین و لفقراء أهل تلک البلدة والناحیة، وهذا الإحتمال أظهر)_

٤) فتح الباری(٣\٣٥٧) کتاب الزکاة، باب أخذ الصدقة من الأغنیاء، وتردّ فی الفقراء حیث کانوا، او اوګورئ ..مختصر اختلاف العلماء(١\٤٨٤، ٤٨٥) رقم(٤٨١) والمجموع شرح المهذب(١٢\٢٢٠، ٢٢١)_

**قوله**: فَقَالَ الرَّجُلُ آمَنْتُ بِمَا جِئْتَ بِهِ: دې سړي اوونيل چه تاسو کوم څه راوړلي دي.په هغې باندې زه ايمان راوړم.

**د حضرت ضمام رضی الله عنه حاضرۍ په حالت د اسلام کښې شوې وه اوکه په حالت د کفر کښې؟**

حضرت ضمام رضی الله عنه چه کله د نبی کريم ﷺ په بارګاه (دربار) کښې حاضر شو.نو دغه وخت دې مسلمان شوې وو.اوکه اوس د مسلمانيدو اعلان کوی؟ په دې کښې اختلاف دې.

① د امام بخاری او امام حاکم رحمهما الله رائې دا ده.چه دې د وړاندې نه مسلمان شوې وو.د نبی کريم ﷺ په وړاندې هغه اعلان کوی.او خبر ورکوی.ګويا ،،آمنت،، داخبار دپاره دې.د انشاء ايمان دپاره نه دې.په دې وجه امام بخاری رحمه الله په دې حديث باندې باب قائم کړې دې.((باب القراءة والعرض على المحدث)) ګويا چه هغه مخکښې مسلمان شوې وو.او اوس د اسلام دهغه شرائعو معلومات دپاره حاضر شوې دې.کوم چه هغه د وړاندې نه د نبی کريم ﷺ د قاصد نه حاصل کړی وو.([1])

② امام حاکم رحمه الله ددې حديث نه د اوچت اسناد طلب کولو. سنت کيدو باندې استدلال کړې دې.چه دوی مخکښې د اسلام د شرائعو علم د نبی کريم ﷺ د قاصد نه حاصل کړو.او په هغې دوی ايمان راوړو.او بيا نبی کريم ﷺ ته د اسناد اوچتيدو دپاره راورسيدو.([2]) قاضی عياض رحمه الله هم دې رائې ته ترجيح ورکړې ده.([3])

**د ،،زعم،، نه د حضرت ضمام په عدم اسلام باندې استدلال او د هغې جواب**: ③ ددې په مقابله کښې د بعضو حضراتو رائې دا ده.چه دې د نبی کريم ﷺ په دربار کښې کله حاضر شو.تر هغه وخته پورې مسلمان شوې نه وو.د نبی کريم ﷺ د تعليماتو نه موثق (او يقينی) طور باندې خبريدو نه پس انشاء دايمان کوی.([4]) امام قرطبی رحمه الله هم دې رائې ته ترجيح ورکړې ده.([5]) ځکه چه ددې روايت په بعضو طرقو کښې ((زعم رسولك)) الفاظ وارد شوی دی.([6]) او د اهل لغت تصريح کړې ده.چه ،،زعم،، غيرموثق قول ته وائی.([7]) نو ګويا دوی د قاصد او مبلغ نه احکام د اسلام اوريدلی وو.خو يقين ئې نه وو کړې.بلکه د نبی کريم ﷺ نه د تصديق کولو نه پس ددوی يقين اوشو.نو اوس دوی د ايمان راوړو اعلان کوی.

په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلی دی.چه ،،زعم،،صرف د ،،غير موثق به قول،، دپاره نه دې. بلکه د ،،محقق قول،، دپاره هم استعماليږی.لکه څنګه چه ابوعمر زاهد په

---

[1] فتح الباری(۱۵۲/۱) وعمدة القاری(۲۲/۲)_
[2] معرفة علوم الحديث (ص۵، ۶)_
[3] فتح الباری(۱۵۲/۱) وعمدة القاری(۲۲/۲) وشرح الأبيّ على صحيح مسلم(۸۲/۱)_
[4] المصدر السابق)_
[5] المصدر السابق)_
[6] كمافي رواية صحيح مسلم(۳۱/۱) كتاب الإيمان، باب السؤال عن أركان الإسلام)_
[7] تاج العروس(۳۲۴/۸) وفتح الباری(۱۵۲/۱)_

،،شرح فصيح ثعلب،، كښي تصريح كړې ده.هم دا وجه ده.چه امام سيبويه خاني په خاني ،،زعم الخليل،، ليكى.حالانكه هغوى دا د احتجاج او استدلال په خاني كښي ليكى.(۱)
علامه عينى رحمه الله فرمائي چه د ،،زعم،، حقيقي معنى ،،غير موثق به،، قول دې.او د ،،محقق قول،، په معنى كښې دا مجاز دې.چه ددې دپاره د قرينې ضرورت راځى.(۲)
د امام ابوداؤد رحمه الله د ترجمة الباب نه هم دا معلوميږي.چه ددوى په نيز هغه ،،آمنت،، ونيلو سره انشاء د ايمان كوى.د مخكښې نه مسلمان شوې نه دې راغلې.په دې وجه دوى په دې حديث باندې «باب فى المشرك يدخل المسجد» عنوان قائم كړې دې.(۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه امام ابوداؤد رحمه الله طرف ته ددې رائې نسبت كول. دترجمة الباب په بنياد باندې مشتمل ده.ځكه چه ددې عنوان نه دا نشي اخذ كيدې.چه هغه مسلمان شوې نه وو.بلكه كيدې شي.چه د امام ابوداؤد ترجمه په دې خبره باندې مبنى وى.چه صحابو يو سړې جمات ته تللو باندې اوكتلو.او دا سوال ئې اونكړو.چه ته مسلمان ئې. اوكه كافر ئې.معلومه شوه.چه جمات ته د مسلمان پشان مشرك هم داخليدې شى.(۴)
خو دحافظ رحمه الله دا احتمال صحيح نه دې.ځكه چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې ددې حديث نه پس د دوو يهوديانو زناكارو قصې هم روايت كړى دى.(۵) لكه څنګه چه امام ابوداؤد رحمه الله دحديث ضمام نه د خپلې دعوې استدلال كړې دې.چه غير مسلم جمات ته داخليدې شى.بعينه هم په دغه انداز ئې د روايت نه هم استدلال كړې دې.والله اعلم.
علامه كرمانى رحمه الله د امام بخارى رحمه الله رائې ته ترجيح وركړې ده.او فرمائيلى ئې دى.چه ،،آمنت،، د اخبار دپاره دې.او ددې تائيد ددې خبرې نه كيږى.چه دوى دنبى كريم ﷺ نه د توحيد د دليل تپوس اونكړو.بلكه دا تپوس ئې اوكړو.چه ستاسو رسالت د ټولو دپاره عام دې اوكه نه دې؟ اودا چه شرائع داسلام كوم كوم دى؟ كه دوى د وړاندې مسلمان شوې وې.نو ددوى نه به ئې څه معجزه يا دليل طلب كړې وې.(۶)
**د مقلد ايمان معتبر دې:** هم ددې ،،آمنت،، نه امام قرطبى او ابن الصلاح رحمهما الله په دې باندې استدلال كړې دې.چه د مقلد ايمان معتبر دې.ځكه چه دوى د هيڅ معجزې مطالبه نه ده كړې.(۷) والله اعلم.

---

(۱) فتح البارى(۱۵۲/۱)_
(۲) عمدة القارى(۲۲/۲)_
(۳) سنن أبى داؤد(۶۹/۱)_
(۴) فتح البارى(۱۵۲/۱)_
(۵) سنن أبى داؤد(۷۰/۱) كتاب الصلاة. باب فى المشرك يدخل المسجد)_
(۶) شرح الكرمانى(۱۸/۲)_
(۷) شرح الأبى(۸۳/۱) وعمدة القارى(۲۲/۲)_

**قوله**: وَأَنَا رَسُولُ مَنْ وَرَائِي مِنْ قَوْمِي وَأَنَا ضِمَامُ بْنُ ثَعْلَبَةَ أَخُو بَنِي سَعْدِ بْنِ بَكْرٍ: زه د خپل قوم قاصد (استازې) يم چه هغوی دلته نه دی راغلی.زه د بنی سعد بن بکر ضمام بن ثعلبه يم.

**په حديث باب كښې دحج ذكر نشته** په دې روايت كښې دحج ذكر نشته.علامه ابن التين رحمه الله فرمائی چه حج نه وو فرض شوې.په دې وجه نې ددې ذكر اونكړو.(۱) خو ددوی دا خبره صحيح نه ده.غالباً په دې سلسله كښې ددوی استناد د واقدی او محمد بن حبيب وغيره د قول نه دې.چه د ضمام بن ثعلبه رضی الله عنه راتګ په ۵ھ كښې شوې وو.او دغه وخته پورې حج نه وو فرض شوې.(۲) مونږ ددې قول بطلان وړاندې تفصيل سره ذكر كړې دې.

علامه بدرالدين زركشی رحمه الله فرمائی.چه د حج ذكر ځكه نه دې شوې.چه حج يو معروف او مشهور څيز وو.د شريعت ابراهيمی مطابق خلق په دې باندې عمل كونكی راروان دی.(۳) دا جواب هم ضعيف دې.ځكه چه دا څه ضروری خو نه ده.چه هرهغه څيز كوم چه په شريعت د ابراهيم عليه السلام كښې موجود وی.په شريعت د مصطفی صلی الله عليه وسلم كښې دې هم هغه په پوره طريقه اومنلې شی.

صحيح جواب دا دې.چه دلته د رواتو د طرفه اختصار شوې دې.د بخاری شريف په راروان روايت كښې، د صحيح مسلم په روايت كښې، (۴)او د مسند احمد، (۵) مستدرك حاكم (۶) سنن دارمی(۷) او ابن اسحاق (۸) په روايت كښې د حج ذكر موجود دې.والله اعلم.

**تنبيه**: حديث باب په صحيح بخاری كښې «اَللَّيث بن سعد عن سعيد بن ابى سعيد المقبرى، عن شريك بن عبدالله بن ابى نمر عن أنس بن مالك» نقل دې.بعينه هم دا سند اسماعيلی او ابن منده رحمهما الله هم ذكر كړې دې.(۹) خو امام نسائی رحمه الله دا روايت په پورته ذكر شوی روايت سره ذكركولو سره په يو بل سند هم ذكركړې دې.چه په هغې كښې د ،،ليث بن سعد،، او ،،سعيد مقبری،، په مينځ كښې د ،،محمد بن عجلان،، اضافه ده.ګويا سند داسې دې.«اَللَّيث عن محمد بن عجلان عن سعيد....»(۱۰)

---

۱) فتح البارى(۱۵۲/۱) وعمدة القارى(۲۲/۲)_

۲) المصدرالسابق)_

۳) فتح البارى(۱۵۲/۱)_

۴) صحيح مسلم(۳۰/۱، ۳۱)_

۵) مسند احمد(۲۶۴/۱)_

۶) المستدرک(۵۴/۳) كتاب المغازى)_

۷) سنن الدارمى(۱۷۲/۱، ۱۷۳) كتاب الطهارة، باب فرض الوضوء والصلاة، رقم(۶۵۲)_

۸) السيرة النبوية لابن هشام بهامش الروض الأنف(۳۳۹/۲)_

۹) فتح البارى(۱۵۰/۱)

۱۰) سنن النسائى الصغرى(۲۹۷/۱) كتاب الصيام باب وجوب الصيام، رقم(۲۰۹۵)، وسنن النسائى الكبرى(۶۲/۲، ۶۳) كتاب الصيام، باب وجوب الصيام، رقم(۲۴۰۳)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه يا خو د نسائي دا روايت وهم دې.او د «المزيد في متصل الأسانيد» د قبيل څنې دې يا به داسې اوونيلې شي چه ليث مخکښې د محمد بن عجلان نه حديث واوريدو.روستو براه راست د سعيد مقبرى نه ددې سماع حاصل شوه.[1]

**د حديث باب تعلق** په دې مقام کښې يو دويم اختلاف دې.چه اکثرو حضراتو دا حديث په ..مسانيد انس بن مالك.. کښې ذکرکړې دې.او بعضو حضراتو دا په ..مسانيد ابى هريره رضي الله عنه.. کښې نقل کړې دې.لکه چه د بغوى اونسائي [2] په يو طريق کښې «الحارث بن عمير عن أبيه عن عبيدالله بن عمرعن سعيد المقبرى عن أبي هريرة» او د ابن منده په يو طريق کښې «الضحاك بن عثمان عن سعيد المقبرى عن أبي هريرة» مذکور دې.[3]

حافظ جمال الدين مزى رحمه الله په ..مسانيد انس..کښې کيدل محفوظ ګرځولې دى.او د بخارى او جمهورو روايت ته ئې ترجيح ورکړې ده.[4]

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه په دې کښې يو خو دا احتمال موجود دې.چه سعيد مقبرى د حضرت انس او حضرت ابوهريره رضي الله عنهما دواړو حضراتو نه حديث اوريدلې وى.د دويم اختلاف منلو په صورت کښې به د ..ليث.. طريق راجح وى.ددې

① رومبئ وجه خو دا ده.چه «ليث أثبت الناس في سعيد المقبرى»دې.

② او دويم «سعيد المقبرى عن أبي هريرة» يو مشهور اومعروف طريق دې.ددې مخالفت د يو ضابط، متقن، او متثبت راوى د طرفه ممکن دې.دلته ليث ددې جادهٔ معروفه (مشهور طريقې) مخالفت کړې دې.نو ددوى روايت به راجح وى.هم دا وجه ده.چه ابو حاتم رحمه الله د «الضحاك عن سعيد عن ابى هريرة» طريق ..وهم.. ګرځوى.دغه شان امام دارقطنى رحمه الله هم د «عبيدالله بن عمر، عبدالله بن عمر، او ضحاك بن عثمان عن سعيد المقبرى عن ابى هريرة» طرق وهم ګرځولې دى.او د ليث طريق ئې راجح ګرځولې ده.[5]

حافظ رحمه الله فرمائي.چه امام مسلم رحمه الله ددې ټولو اختلافاتو نه د بچ کيدو دپاره دسره دا طريق پريخودو.او د «سليمان بن المغيرة عن ثابت عن أنس» طريق سره ئې روايت ذکرکړو.[6]

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه په دې طريق کښې هم يوه خبره دا ده.چه دا روايت حماد بن سلمه هم د ثابت نه نقل کړې دې.خو د سليمان په شان د موصولاً نقل کولو په ځائې ئې

---

[1] فتح البارى(۱۱۰۵۱)_

[2] سنن النسائى الكبرى(۶۳۱۲) كتاب الصيام. باب وجوب الصيام رقم(۲٤۰٤)_

[3] فتح البارى(۱۱۰۵۱)_

[4] تحفة الأشراف(۴۸۰۱۹. ٤۸۱) رقم(۱۲۹۹۳)_

[5] فتح البارى(۱۱۰۵۱)_

[6] المصدرالسابق)_

مرسلاً نقل كړې دي.چونكه حماد بن سلمه ((أثبت الناس فى ثابت)) دې.په دې وجه ددوى روايت امام دارقطنى رحمه الله راجح گرځولې دې.(١)
خو دلته دا ياد ساتئ،چه سليمان بن المغيره هم د ثابت د خاصو اصحابو څخه دې.اګرچه حماد بن سلمه ددوى په مقابله كښې هم اثبت دې.(٢)
او د صغانى دتصريح مطابق د سليمان روايت امام بخارى رحمه الله هم پخپل صحيح كښې ذكركړې دې.(٣) چه دا ددوى په نيز د راجح كيدو دليل دې.والله اعلم.

**قوله** وَرَوَاهُ مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ وَعَلِيُّ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا: دا حديث موسى او على بن عبدالحميد ((سليمان عن ثابت عن أنس عن النبى ﷺ)) بالمعنى روايت كړې دې.

**د مذكوره متابعاتو تخريج** د موسى نه مراد موسى بن اسماعيل تبوذ دې.دا د امام بخارى رحمه الله شيخ دې.ددوى حالات د ،،بدءالوحى،، څلورم حديث لاندې تيرشوى دى.(٤) ددوى دا روايت امام مسلم پخپل صحيح كښې (٥)، ابو عوانه رحمه الله پخپل صحيح كښې (٦). او ابن منده رحمه الله پخپل ،،كتاب الايمان،، كښې (٧) تخريج كړې دې.
د على بن الحميد روايت د مؤلف په واسطة امام ترمذى رحمه الله پخپل سنن كښې (٨). امام دارمى رحمه الله پخپل سنن كښې (٩)، او ابو عوانه رحمه الله پخپل صحيح كښې (١٠) تخريج كړې دې.

**قوله** على بن عبدالحميد: دا على بن عبدالحميد بن مصعب ازدى مغنى شيبانى كوفى دې.دده كنيت ابوالحسن دې.بعضو ابوالحسين كنيت ښودلې دې.(١١)

---

(١) المصدرالسابق)_
(٢) امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى.((ما خالف حماد بن سلمة فى ثابت فالقول قول حماد. قيل فسليمان بن المغيرة عن ثابت؟ قال: سلمان بن ثابت وحماد أعلم الناس بثابت)) تهذيب الكمال(٧\٢٦٧) ترجمة حماد بن سلمة.وقال على بن المدينى: ((لم يكن فى أصحاب ثابت أثبت من حماد بن سلمة. ثم بعده سليمان بن المغيرة.....))تهذيب الكمال(١٢\٧٢) ترجمة سليمان بن المغيرة)_
(٣) فتح البارى(١\١٥٣)_
(٤) كشف البارى(١\٤٣٣)_
(٥) صحيح مسلم(١\٣٠) كتاب الإيمان. باب السؤال عن أركان الإسلام)_
(٦) تغليق التعليق(٢\٦٩) وفتح البارى(١\١٥٣) وعمدة القارى(٢\٢٣)_
(٧) المصدرالسابق)_
(٨) سنن ترمذى. كتاب الزكاة. باب ما جاء إذا أديت الزكاة فقد قضيت ما عليك. رقم(٦١٩)_
(٩) سنن الدارمى(١\١٧١) فاتحة كتاب الطهارة. باب فرض الوضوء والصلاة. رقم(٦٥٠)_
(١٠) تعليق التعليق(٢\٧٠)_
(١١) تهذيب الكمال(٢١\٤٦)_

دوى د حفص بن صبيح، حماد بن سلمه، زهير بن معاويه، سليمان بن المغيره، شريك بن عبدالله او عبدالعزيز بن الماجشون رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.

ددوى نه امام بخارى رحمه الله صرف په دې مقام كښې تعليقاً دا روايت كړې دې.د امام بخارى رحمه الله نه علاوه ددوى نه احمد بن ابى خيثمه، بشر بن موسى، عباس دورى، او محمد بن سعد رحمهم الله وغيره ډير حضرات روايت كوى. (۱)

ابوحاتم، ابو زرعه او عجلى رحمهم الله ددوى توثيق كړې دې (۲)

ابن وارہ رحمه الله فرمائى.«كان من الفاضلين»(۳)

ابن سعد رحمه الله فرمائى.«كان فاضلاً خيراً»(۴)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.(۵)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(۶)

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى.،،ثقة،،(۷)

په ۲۲۲ھ كښې ددوى وفات شوې دې.(۸) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

**د مذكوره متابعاتو تعليقاً د تخريج كولو وجه** ددې حديث متابعة او تعليق راوړلو څه وجه ده؟ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه ددې د ذكر فائده استشهاد ده.او د مخكښې روايت تقويت مقصود دې.(۹) لكه څنګه چه د متابعات نه اصل مقصود هم دا دې.

**ايا امام بخارى رحمه الله سليمان بن المغيره قابل د احتجاج نه ګنړى؟** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه په اصل كښې دلته سليمان بن المغيره لره امام بخارى رحمه الله قابل د احتجاج نه دې ګنړلې.په دې وجه ئې د تعليق په صورت كښې ذكركړې دې.(۱۰)

③ علامه عينى رحمه الله ددې پوره ترديد كړې دې.او فرمائيلى ئې دى.چه امام بخارى رحمه الله په «أبواب السترة» كښې ددوى دحديث تخريج كړې دې.(۱۱) بيا د امام احمد بن حنبل رحمه الله په

(۱) د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۲۱\٤٦، ٤۷)_
(۲) تهذيب التهذيب(۱۷\۳٦۰)_
(۳) تهذيب الكمال(۲۱\٤۷)_
(۴) طبقات ابن سعد(۶\٤۰۸)_
(۵) الثقات لابن حبان(۸\٤٦۵)_
(۶) الكاشف(۲\٤۳) رقم(٤۷٦٤)_
(۷) تقريب التهذيب(٤۰۳) رقم(۳۹٤۱)_
(۸) الكاشف(۲\٤۳) رقم(۳۹٤۱)_
(۹) شرح الكرمانى(۲\۱۹)_
(۱۰) فتح البارى(۱\۱۵۳)_
(۱۱) صحيح بخارى(۱\۷۳)، كتاب الصلاة، ابواب سترة المصلى، باب يرد المصلى من مرّ بين يديه، رقم(۵۰۹)

باره كښې فرمائى.((ثبت ثبت، ثقة ثقة)) ابن سعد رحمه الله فرمائى ،،ثقة ثبت،، امام شعبه رحمه الله دوى لره ((سيد أهل البصرة)) گرځولې دې.امام ابوداوُد طيالسى رحمه الله فرمائى.((كان من خيار الناس)) ارباب د اصول سته ددوى احاديث اخستى دى.نو دا وينا څنگه صحيح كيدې شى چه امام بخارى رحمه الله دوى لره قابل د احتجاج نه دې گرځولې.(١)

خو دلته ددې خبرې لحاظ ساتل پكار دى.چه حافظ ابن حجر رحمه الله چه دا فرمائى.چه سليمان بن المغيره ئې قابل د احتجاج نه دې گرځولې.دا ددوى د متكلم فيه يا مجروح كيدو په وجه نه دى.بلكه په يوه بله وجه دى.هغه دا چه هم دا روايت د ثابت نه حماد بن سلمه هم روايت كړې دې.خو هغه دا د سليمان پشان موصولاً نه روايت كوى.بلكه مرسلاً ئې روايت كوى چونكه د سليمان په مقابله كښې حماد لره د ثابت په روايت كښې اثبت گڼلې كيږى.په دې وجه امام بخارى رحمه الله د سليمان روايت اصلاً او احتجاجاً ذكر نكړو.بلكه تعليق په صورت كښې ئې ذكركړې دې.امام دارقطنى رحمه الله هم په دې بنياد باندې د حماد روايت ته د سليمان په روايت باندې ترجيح وركړې ده.(٢)

شيخ الحديث مولانا محمد يونس مدظلهم فرمائى.چه د علامه عينى رحمه الله اعتراض صحيح نه دې.څكه چه امام بخارى رحمه الله په ..ابواب الستره.. كښې د سليمان روايت احتجاجاً او اصلاً نه دې تخريج كړې.بلكه د يونس بن عبيد روايت سره ئې مقروناً ذكركړې دې.

خو حقيقت دا دې.چه امام بخارى رحمه الله د سليمان روايت په بعضو مقاماتو كښې احتجاجاً او استدلالاً هم ذكر كړې دې.(٣) او په اكثرو مقاماتو كښې ئې متابعتاً ذكركړې دې.(٤) كوم ځائې ئې چه متابعتاً ذكركړې دې.د هغې وجه دانه ده.چه دا د امام بخارى رحمه الله د شرائطو مطابق نه دې.يا داچه په دوى باندې دڅا څه قادح ( مجروح) كلام دې.كه داسې وې نو حافظ رحمه الله به په ..هدى السارى.. كښې دوى هم ذكر كړې وې.كوم ځائې چه دوى متكلم

---

(١) عمدة القارى(٢\٢٣، ٢٤)_

(٢) فتح البارى(١\١٥٠، ١٥٣)_

(٣) لكه چه د صحيح بخارى(١\٧٣) ..باب يردّ المصلى من مرّ بين يديه.. رقم(٥٠٩) د ..ابواب الستره.. د حديث په تشريح كښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((وقد قرن البخارى روايته (أى رواية يونسؒ بن عبيد) برواية سليمان بن المغيرة. وتبين من إيراده أن القصة المذكورة فى رواية سليمان. لا فى رواية يونس ولفظ المتن الذى ساقه هنا هو لفظ سليمان أيضاً لا لفظ يونس....)) ددې نه معلومه شوه.چه د سليمان روايت د امام بخارى رحمه الله په نيز قابل داستدلال او احتجاج دې لكه څنگه چه دلته كښې امام بخارى رحمه الله د سليمان په الفاظو باندې اعتماد كړې دې.والله أعلم)_

(٤) صحيح بخارى(١\١٧٤) كتاب الجنائز. باب قول النبى ﷺ ..إنا بك لمحزونون.. رقم(١٣٠٣) و(١\٤٣٨) كتاب فرض الخمس. باب ما ذكر من درع النبى ﷺ وعصاه.... رقم(٣١٠٨) و(٢\١٠٧٥) كتاب التمنى. باب ما يجوز من اللو. رقم(٧٢٤١)_

فيه راويان ذكركړى دى.حالانكه هلته كښې نې ددوى هيڅ ذكر نه دې كړې.(۱) بلكه امام بخارى رحمه الله د مختلفو اغراضو دپاره ددوې روايت متابعتاً ذكركړې دې.
او دلته ددوى د روايت متابعتاً او تعليقاً ذكركولو وجه دا كه.چه د حماد بن سلمه د مرسل روايت په مقابله كښې د سليمان روايت مرجوح دې،،كما سبق ذكره،، البته دلته دا اشكال كيږى چه حافظ رحمه الله خو فرمائى.چه امام بخارى رحمه الله د سليمان روايت قابل د احتجاج نه دې گرځولې حالانكه روستو دا روايت راروان دې. ددې جواب دا دې.چه د بخارى په نسخو كښې اختلاف دې.په عامو نسخو كښې ددې روايت تذكره نشته.البته حسن بن محمد صغانى رحمه الله فرمائى.چه دا روايت په هغه نسخه كښې موجود دې.كوم چه د فربرى په وړاندې اولوستلې شو.په كوم كښې چه د فربرى خط موجود دې.(۲)
چونكه په عامو نسخو كښې دا روايت موجود نه دې.په دې وجه په دې بنياد باندې حافظ رحمه الله دا كلام كړې دې.والله اعلم.

**د ضمام حديث او د هغې ترجمه** حَدَّثَنِي موسى بن اسماعيل، قال: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، قال: ثنا ثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ (۳) قَالَ نُهِينَا فى القرآن أَنْ نَسْأَلَ النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ يُعْجِبُنَا أَنْ يَجِيءَ الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ الْعَاقِلُ فَيَسْأَلَهُ وَنَحْنُ نَسْمَعُ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ فَقَالَ: أَتَانَا رَسُولُكَ فأخبرنا أَنَّكَ تَزْعُمُ أن الله عز وجل أَرْسَلَكَ قَالَ صَدَقَ قَالَ فَمَنْ خَلَقَ السَّمَاءَ قَالَ اللهُ عز وجل قَالَ فَمَنْ خَلَقَ الْأَرْضَ والجبال، قَالَ اللهُ عز وجل، قَالَ فمن جعل فيها المنافع؟ قال: الله عز وجل، قال: فَبِالَّذِى خَلَقَ السَّمَاءَ وَخَلَقَ الْأَرْضَ وَنَصَبَ الْجِبَالَ وجعل فيها المنافع، آللهُ أَرْسَلَكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ: زَعَمَ رَسُولُكَ أَنَّ عَلَيْنَا خَمْسَ صَلَوَاتٍ، وزكاة فى أموالنا، قَالَ صَدَقَ قَالَ بِالَّذِى أَرْسَلَكَ آللهُ أَمَرَكَ بِهَذَا؟ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَزَعَمَ رَسُولُكَ أَنَّ عَلَيْنَا صَوْمَ شَهْرٍ فِى سَنَتِنَا قَالَ صَدَقَ قَالَ فَبِالَّذِى أَرْسَلَكَ آللهُ أَمَرَكَ بِهَذَا؟ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَزَعَمَ رَسُولُكَ أَنَّ عَلَيْنَا حَجَّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا قَالَ صَدَقَ قَالَ فَبِالَّذِى ارسلك آللهُ أمرك بهذا؟ قال: نعم، قال فوالذى بعثك بِالْحَقِّ لَا أَزِيدُ عَلَيْهِنَّ شيئاً وَلَا أَنْقُصُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ صَدَقَ لَيَدْخُلَنَّ الْجَنَّةَ»

حضرت انس رضي الله عنه فرمائى.چه مونږ خو په قرآن كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه د سوالاتو كولو نه منع كړې شوى وو.او مونږه به دا خوښول.چه د كلو د خلقو نه څوك هوښيار سړې راشى.هغه سوال اوكړى.او مونږ واورو.نو د كلو والو نه يو سړې راغې.او وې وئيل چه ستاسو يو قاصد

---

۱) عقد الحافظ رحمه الله فى ،،هدى السارى،، فصلاً مستقلاً. ساق فيه أسماء من طعن فيهم من رجال صحيح البخارى. و أجاب عن الإعتراضات. وميز من أخرج له منهم فى الأصول أو فى المنابعات. والإستشهادات. ثم عقب لذالك فصلاً فى سياق من علق البخارى. شيئاً من احاديثهم ممن تكلم فيه. و إيراد أسمائهم مع الإشارة إلى أحوالهم. أنظر هدى السارى مقدمة فتح البارى(ص ۳۸٤-٤٥۹)_
۲) فتح البارى(۱۵۳/۱)_
۳) قد سبق تخريجه فى هذا الباب)_

مونږ ته راغي.هغه دا بيان کړل چه تاسو وايئ:چه الله تعالى تاسو لره رسول جوړ کړې او رالېګلې دې.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.رشتيا ئې وئيلى دى.بيا ئې اووئيل.بنه آسمان چا جوړ کړې دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.الله تعالى ( جوړ کړې دې).هغه اووئيل.زمکه چا جوړه کړله او غرونه چا جوړ کړل؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.الله تعالى (جوړ کړل).وې وئيل.بنه نو په دې کښې د فائدې څيزونه چا جوړ کړل؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.الله تعالى جوړ کړل).هغه اووئيل.بيا قسم دهغه ذات چا چه اسمان او زمکه جوړه کړله.غرونه ئې اولګول په دې کښې ئې د فائدې څيزونه جوړ کړل.الله تعالى تاسو رالېګلى يئ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.آو. بيا هغه اووئيل.ستاسو قاصد اووئيل.چه په مونږ باندې پنځه مونځونه دى.او پخپلو مالونو کښې زكاة دې.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.هغه رشتيا اووئيل.بيا هغه اووئيل.نو قسم دې د هغه ذات. چا چه تاسو راوليګلې.آيا الله تعالى تاسو ته ددې خبرو حكم درکړې دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.آو. بيا هغه اووئيل.چه ستاسو قاصد وائى.چه په مونږ باندې ټول كال کښې يوه مياشت روژې دى؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.رشتيا وائى.بيا هغه اووئيل.قسم دهغه ذات. چاچه ته راوليګلې.آيا الله تعالى تاته دا حكم درکړې دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.آو.بيا ئې اووئيل.ستاسو قاصد دا هم اووئيل.چه په مونږه باندې حج دې.يعنى په هغه كس باندې څوك چه هغه خانې پورې رسيدو لاره بيامومى.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.رشتيا ئې اووئيل.بيا هغه اووئيل.چه قسم دې دهغه ذات چا چه ته راليګلې يې.آيا الله تعالى تاته دا حكم درکړې دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل. آو.بيا هغه اووئيل.چه قسم دې د هغه خدائې چاچه ته حق سره راوليګلې.نه به په دې كارونو کښې څه زياتوم.نه به په دې کښې زه څه كمى كوم.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.كه دې رشتيا وائى.نو ضرور به جنت ته څى.

## رجال الحديث

① موسى بن اسماعيل: داابوسلمة موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله دې.ددوى حالات د .. بدءالوحى .. د څلورم حديث لاندې تير شوى دى.(١)

② سليمان بن المغيرة: دا ابوسعيد سليمان بن المغيرة القيسى البصرى رحمه الله دې.(٢) دوى د ثابت بنانى، حسن بصرى، حميد بن هلال عدوى، سعيد ابن اياس جُريرى، محمد بن سيرين.ابو موسى هلالى. او د خپل پلار مغيره رحمه الله نه روايت كوى.

ددوى نه روايت كونكو کښې سفيان ثورى، ابو اسامه. بهز بن اسد . ابوداؤد. ابو عامر عقدى. عبدالسلام بن مطهر. عمرو بن عاصم. على بن عبدالحميد المعنى. موسى بن اسماعيل تبوذكى او يحي بن آدم رحمهم الله وغيره حضرات دى.(٣)

---

(١) كشف البارى(١١/٤٣٣)_

(٢) تهذيب الكمال(١٢/٦٩)_

(٣) د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال (١٢/٧٠) وسير أعلام النبلاء(٧/٤١٧، ٤١٨)_

ایوب رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «لیس أحد أحفظ لحديث حميد بن هلال من سليمان بن المغيرة»[1]

امام شعبہ رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «سليمان بن المغيرة سيد أهل البصرة»[2]

امام ابو داؤد طیالسی رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «كان خياراً من الرجال»[3]

معلی بن منصور رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «سألت ابن علية عن حفاظ أهل البصرة فذكر سليمان بن المغيرة»[4]

عبداللہ بن داؤد خریبی رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «ما رأيت بالبصرة أفضل من سليمان بن المغيرة و مرحوم بن عبدالعزيز»[5]

امام احمد بن حنبل رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «ثبت ثبت»[6]

امام یحیی بن معین رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «ثقة ثقة»[7]

امام علی بن المدینی رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «لم يكن في أصحاب ثابت أثبت من حماد بن سلمة، ثم بعده سليمان بن المغيرة، ثم بعده حماد بن زيد»[8]

امام ابن سعد رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «كان ثقة ثبتاً»[9]

امام نسائی رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «ثقة»[10]

سلیمان بن حرب رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «حدثنا سليمان بن المغيرة الثقة المأمون»[11]

عبداللہ بن مسلمہ رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «ما رأيت بصرياً أفضل منه»[12]

عثمان بن ابی شیبہ رحمہ اللہ فرماتے ہیں: «هو ثقة»[13]

---

[1] تهذيب الكمال(۱۲\۷۱)_

[2] المصدر السابق)_

[3] المصدر السابق)_

[4] المصدر السابق)_

[5] تهذيب الكمال(۱۲\۷۲)_

[6] المصدر السابق)_

[7] المصدر السابق)_

[8] المصدر السابق)_

[9] الطبقات(۷\۲۸۰)_

[10] تهذيب الكمال(۱۲\۷۲)_

[11] تهذيب التهذيب(٤\۲۲۱)_

[12] المصدر السابق)_

[13] المصدر السابق)_

ابن خلفون د ابن نمير او عجلی رحمهما الله نه ددوی توثیق نقل کړې دی.[1]
ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی.[2]
امام بزار رحمه الله فرمائی: «كان من ثقات أهل البصرة».[3]
د سلیمان بن المغیره رحمه الله وفات په سن ۱۶۵ هـ کښې شوې دی.[4] «رحمه الله تعالى رحمة واسعة».

③ ثابت: دا مشهور تابعی بزرگ ابو محمد ثابت بن اسلم بنانی بصری رحمه الله دی.[5]
دوی د حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن مغفل، حضرت عبدالله بن الزبیر، حضرت ابوبرزه اسلمی، حضرت عمر بن ابی سلمه، او حضرت انس بن مالک رضی الله عنهم نه علاوه د شعیب بن محمد، عمرو بن شعیب، ابوالعالیه ریاحی، ابورافع الصائغ، او ابوعثمان نهدی رحمهم الله وغیره نه روایت د حدیث کړې دی.

ددوی نه په روایت کونکو کښې عطاء بن ابی رباح (وهو أكبر منه) قتاده، یونس بن عبید، حمید الطویل، سلیمان تیمی، عبدالله بن المثنی، سلیمان الاعمش، حماد بن زید، حماد بن سلمه، مبارک بن فضاله، معمر بن راشد او ابوعوانه وضاح بن عبدالله یشکری رحمهم الله وغیره حضرات دی.[6]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی: «ثابت يثبت في الحديث، وكان يقص وقتادة كان يقص وكان أذكر، وكان محدثا من الثقات المأمونين صحيح الحديث».[7]
امام عجلی رحمه الله فرمائی: «ثقة رجل صالح».[8]
امام نسائی رحمه الله فرمائی: «ثقة».[9]
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: «أثبت أصحاب أنس، الزهري، ثم ثابت ثم قتادة».[10]
ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی.[11]

---

[1] المصدر السابق)_
[2] الثقات لابن حبان (٦/٣٩٠)_
[3] تهذيب التهذيب (٤/٢٢١)_
[4] سير أعلام النبلاء (٧/٤١٩)_
[5] تهذيب الكمال (٤/٣٤٢)_
[6] دشيوخ اوتلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال (٤/٣٤٣-٣٤٦) وسير أعلام النبلاء (٥/٢٢٠، ٢٢١)
[7] تهذيب الكمال (٤/٣٤٦) وسير أعلام النبلاء (٥/٢٢١، ٢٢٢)_
[8] تهذيب الكمال (٤/٣٤٧) وسير أعلام النبلاء (٥/٢٢٢)_
[9] المصدر السابق)_
[10] المصدر السابق)_
[11] الثقات لابن حبان (٤/٨٩)_

ابن سعد رحمه الله فرمائی: «كان ثابت ثقة في الحديث مأموناً»(۱)
ددې ټولو توثيقاتو باوجود ابن عدی رحمه الله ددوی تذکره په ..الکامل.. کښې کړې ده. اګرچه ددوی توثیق ئې هم کړې دې لکه چه فرمائی: «ثابت البناني من تابعي اهل البصرة و زهادهم و محدثيهم، وقد كتب عن الأئمة والثقات من الناس، وأروى الناس عنه حماد بن سلمة، وما هو إلا ثقة صدوق، وأحاديثه أحاديث صالحة مستقيمة، إذا روى عنه ثقة، وله حديث كثير وهو من ثقات المسلمين، وما وقع في حديثه من النكرة فليس ذاك منه، إنما هو من الراوي عنه، لأنه قد روى عنه جماعة ضعفاء و مجهولين (كذا في الأصل، والصواب: مجهولون) وإنما هو في نفسه إذا روى عمن هو فوقه من مشائخه، فهو مستقيم الحديث، ثقة»(۲)
حافظ ذهبی رحمه الله په ابن عدی رحمه الله باندې د خپلې ناراضګئ اظهار کړې دې په دې خبره چه دوی د ثابت البنانی ذکر په ..الکامل.. کښې کړې دې لکه چه دوی فرمائی: «ثابت بن أسلم البناني، ثقة بلا مدافعة، كبير القدر، تناكر ابن عدي بذكره في الكامل»(۳) او هم دوی فرمائی: «ما أذكر الآن ما تعلق به ابن عدي في إيراده هذا السيد في كامله، بل ذكر قول يحيى القطان: عجب من أيوب يدع ثابتاً لا يكتب عنه»(٤) په آخر کښې دوی فرمائی: «وثابت ثابت كاسمه، ولولا ذكر ابن عدي له ما ذكرته»(۵)
البته د امام يحي بن سعيد القطان رحمه الله نه چه کله تپوس اوکړې شو چه په ثابت او حميد کښې کوم يو د حضرت انس رضي الله عنه نه په روايت کولو کښې ..اثبت.. دې؟ نو وې فرمائيل چه ثابت مختلط شوې وو او حميد دوی ..اثبت.. اوګرځولو.(٦) خو ددې دا مطلب نه دې چه د امام يحي القطان په نيز ثابت بنانی رحمه الله قابل د احتجاج پاتې نشو. هغه صرف دا نه چه قابل د احتجاج دې بلکه دوی ته په ايوب باندې تعجب دې چه هغه د ثابت بنانی نه حديث نه ليکی.(۷)
بيا ابوبکر البرديجی رحمه الله فرمائی چه شعبه، حمادين، سليمان بن المغيره کوم چه ثقات دی. که دا حضرات ..ثابت عن انس.. سره روايت کوی. نو روايت به صحيح وی. «مالم يكن الحديث مضطرباً»(۸) معلومه شوه چه دې حضراتو د اختلاط نه وړاندې د ثابت نه روايت

---

(۱) الطبقات لابن سعد(۷/۲۳۲)_
(۲) الکامل لابن عدی(۲/۱۰۱)_
(۳) ميزان الإعتدال(۱/۳۶۲)_
(٤) ميزان الإعتدال(۱/۳۶۲)_
(۵) ميزان الإعتدال( ۱/۳۶۳)_
(٦) تهذيب التهذيب(۲/۳)_
(۷) الکامل(۲/۱۰۰) ميزان الإعتدال( ۱/۳۶۲)_
(۸) تهذيب التهذيب(۲/۳، ٤)_

اخستي دي.( كه اختلاف اومنلي شي).والله اعلم.
**د حضرت بنانى رحمه الله عبادت اوتلاوت سره شوق** ثابت بنانى رحمه الله د خپلې زمانې ډير لوئي عابد تيرشوي دي.په صوم دهر ( ټول عمرى روژو) باندې عمل كونكې وو.او په شپه ورځ كښې به ئې يو قرآن كريم ختمولو.(١)

حضرت انس رضي الله عنه فرمائى.«إن للخير أهلاً وإن ثابتاً هذا من مفاتح الخير»(٢)

د ثابت بنانى رحمه الله وفات په ۱۲۷هـ كښې اوشو.(٣)،«رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

④ حضرت انس رضي الله عنه رحمهما الله: د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان كښې:
«باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه»لاندې تير شوي دي.(٤)

**تنبيه** مونږه اوس لږ وړاندې ونيلې دي.چه دا حديث د بخارى شريف په اكثرو نسخو كښې نشته.حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلي دي.چه دا حديث په بغدادى نسخه كښې موجود دې.د كوم تصحيح چه علامه ابو محمد بن الصغانى لغوى رحمه الله د ابوالوقت د شاګردانو نه اوريدلې ده.او د يو څو نسخو سره ئې مقابله كړې وه.علامه صغانى رحمه الله هلته حاشيه كښې ليكلي دي.«هذا الحديث ساقط من النسخ كلها إلا في النسخة التي قرئت على الفربرى صاحب البخارى وعليها خطه»حافظ رحمه الله فرمائى.،،زه چه د څومره نسخو نه خبريم.په هغې كښې يوه نسخه كښې هم نشته.،،والله اعلم بالصواب،،_(٥)

د حديث شريف تشريح د ړومبى حديث په ضمن كښې شوې ده.او ترجمة الباب سره ددې مطابقت بالكل واضح دې.

## ۷- بَابُ مَا يُذْكَرُ فِي الْمُنَاوَلَةِ وَكِتَابِ أَهْلِ الْعِلْمِ بِالْعِلْمِ إِلَى الْبُلْدَانِ

وَقَالَ أَنَسٌ نَسَخَ عُثْمَانُ الْمَصَاحِفَ فَبَعَثَ بِهَا إِلَى الْآفَاقِ [ر:٤٧٠٢] وَرَأَى عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَمَالِكُ ذَلِكَ جَائِزًا وَاحْتَجَّ بَعْضُ أَهْلِ الْحِجَازِ فِي الْمُنَاوَلَةِ بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ كَتَبَ لِأَمِيرِ السَّرِيَّةِ كِتَابًا وَقَالَ لَا تَقْرَأْهُ حَتَّى تَبْلُغَ مَكَانَ كَذَا وَكَذَا فَلَمَّا بَلَغَ ذَلِكَ الْمَكَانَ قَرَأَهُ عَلَى النَّاسِ وَأَخْبَرَهُمْ بِأَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**ماقبل سره مناسبت او د ترجمة الباب مقصد** امام بخارى رحمه الله د أستاذانو نه د روايت كولو وړاندې دوه طريقې بيان كړې وې.

---

(١) سير أعلام النبلاء(٥\٢٢٤) والكاشف(١١\٢٨) رقم(٦٨١)_
(٢) تهذيب الكمال(٤\٣٤٧)_
(٣) الكاشف(١١\٢٨) رقم(٦٨١)_
(٤) كشف البارى(٢\٤)_
(٥) فتح البارى(١\١٥٣)_

① يو ،،قراءة الشيخ على التلميذ،، چه دا ئې د ((باب قول المحدث حدثنا....)) پاندې اشارة ذكر كړې دې.
② دويم ،،قراءة التلميذ على الشيخ،، چه دا ئې په تيرشوى باب كښې صريحاً ذكركړې دې.ددې نه پس دوه طريقې نورې هم ذكركوى:
① يو ،،مناوله،، ② او دويم ،،مكاتبه،،_

**د مناوله د ابحاثو خلاصه** ،،مناوله،، دا ده.چه استاذ خپل تصنيف يا خپل مرويات يوكس ته وركړى.او دا اووائى.چه دا زما روايات دى.بيا ددې نه پس ددې دوه قسمونه دى.① مقرون بالاجازة ② مجرده عن الاجازة_كه مقرون بالاجازة وى.نو بالاتفاق ددې نه روايت كول جائز دى.البته په دې كښې معمولى شان اختلاف دې.چه د ،،مناوله مقرونه بالاجازة،، درجه د ،،سماع من الشيخ،، برابر ده اوكه كمه ده؟
د دويم قسم ،،مجرده عن الاجازه،، په باره كښې د يو جماعت نه منقول دى.چه په دې صورت كښې روايت كول جائز دى.حالانكه بعضې حضرات په دې صورت كښې د روايت كولو اجازت نه وركوى.بيا يو ،،مناوله،،ده.چه ددې تشريح پورته بيان كړې شوه.او يو دې ،،عرض المناوله،، چه شاگرد د شيخ مرويات واخلى.او شيخ ته ئې اوښائى.شيخ غور او فكر اوكړى.او دهغې توثيق اوكړى.چه آو دا زما مرويات دى.دا ته روايت كولې شى.
دغه شان په دې خبره كښې هم اختلاف دې.چه دمناوله په طريق سره د حاصل كړې شوو احاديثو ادا كولو دپاره به مطلقاً د څه تقييد نه بغير د اخبار استعمال كولې شى.يا دا چه د مناوله تقييد به كيږى.دا ټول مباحث د ،،باب قول المحدث حدثنا....،،لاندې تفصيل سره بيان شوى دى.،،فراجعه إن شئت،،

**د مكاتبت د ابحاثو خلاصه** د مكاتبه صورت دا دې.چه شيخ خپل روايات يا خپل تصنيف شاگرد ته ليكلې ور اوليگى. [1]
بيا ددې دوه قسمونه دى:① مقرونه بالاجازة ② مجرده عن الاجازة.[2]
مقرونه بالاجازة خو باالاتفاق معتبر ده.او دا په حكم كښې د مناوله مقرونه بالاجازة پشان دې.[3] البته په ،،مجرده عن الاجازة،، كښې اختلاف دې.لكه چه ايوب سختيانى، منصور بن المعتمر، ليث بن سعد، ابوحامد اسفرائينى، محاملى، صاحب محصول او ابوالمظفر سمعانى رحمهم الله وغيره د دې د معتبر كيدو قائل دى.او سيف آمدى رحمه الله فرمائى.چه داجازت نه بغير محض د كتاب په ذريعه روايت معتبر نه دې.د صاحب الحاوى الكبير علامه ابوالحسن الماوردى رحمه الله هم دا رائې ده.او د ابوالحسن بن القطان په نيز كتابت مجرده د

---

[1] ) مقدمه ابن الصلاح(ص۱۷۳)_
[2] ) المصدر السابق)_
[3] ) مقدمه ابن الصلاح(۱۷٤)_

منقطع په حكم كښې دې.(۱) خو حافظ ابن الصلاح او د دوى متبعينو د مجوزينو رائې راجح گرځولې ده.(۲)

بيا د مكاتبت په ذريعه د حاصل شوو رواياتو اداكولو دپاره په دواړو طريقو گنجائش شته.كه مطلقاً وى. اوكه ..حدثنا.. او ..اخبرنا.. وائى.او يا د كتابت قيد اولگوى.حافظ ابن الصلاح رحمه الله مقيد وئيل. راجح گرځولى دى.(۳)

**مناوله مقرونه بالاجازت ، او مكاتبه دواړه برابر دى اوكه متفاوت دى؟** د اصول حديث دعالمانو په دې كښې اختلاف دې.چه مناوله مقرونه بالاجازة. او مكاتبه مقرونه بالاجازه دواړه په درجه كښې برابر دى اوكه نه، يو ته په بل باندې ترجيح حاصل ده؟

خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى.چه مناوله ته ترجيح حاصل ده.ځكه چه شيخ تلميذ ته بالمشافهه اجازت وركوى.(۴)

او د امام بخارى رحمه الله رائې دا معلوميږى.چه دواړه برابر دى.ځكه چه دواړه ئې په يو باب كښې ذكركړى دى.(۵)

خو ياد ساتئ.چه مناوله ته كه مشافهةً ( رو برو ) خصوصيت حاصل وى.نو مكاتبه ته هم دا امتياز حاصل دې.چه شيخ مكتوب اليه (شاگرد) ته قصداً خپل روايات وركوى.(۶) هم دا خصوصيت اگرچه په مناوله كښې هم شته.خو چونكه په مناوله كښې هر څنگه كتاب وركول داخل دى.ضرورى نه ده.چه د محدث خپل تصنيف وى.خو په مكاتبه كښې محدث عام طور باندې خپل روايات ليكلې وركوى.په دې وجه دې ته دا امتياز حاصل دې.

**قوله** وَقَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ نَسَخَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ الْمَصَاحِفَ فَبَعَثَ بِهَا إِلَى الْآفَاقِ : حضرت انس رضي الله عنه فرمائى.چه حضرت عثمان رضي الله عنه مصاحف نقل كړل.او دا ئې په مختلفو اطرافو كښې اوليگل.

**د حضرت انس رضي الله عنه د مذكوره تعليق تخريج:** دحضرت انس رضي الله عنه مذكوره تعليق امام بخارى رحمه الله په كتاب المناقب كښې اجمالاً او په كتاب فضائل القرآن كښې اجمالاً اوتفصيلاً ذكر كړې دې.(۷)

**د حضرت انس رضي الله عنه د مذكوره روايت خلاصه:** ددې روايت خلاصه دا ده.چه حضرت حذيفه بن

---

(۱) فتح المغيث للعراقى(۲۲۳) وفتح المغيث للسخاوى(۳\۵-۸)_

(۲) مقدمة ابن الصلاح(۱۷٤) وفتح المغيث للعراقى(۲۲٤)_

(۳) المصدرالسابق)_

(۴) فتح المغيث للسخاوى(۲\۳)_

(۵) فتح البارى(۱\۱۵٤)_

(۶) فتح المغيث للسخاوى(۲\۳)_

(۷) صحيح بخارى(۱\۴۹۷) كتاب المناقب. باب نزل القرآن بلسان قريش. رقم(۳۵۰۶) و(۲\۷٤۵) كتاب فضائل القرآن. باب نزل القرآن بلسان قريش والعرب. رقم(٤۹۸٤) و(٤۹۸۷)_

اليمان رضي الله عنه ( چه دوی د آرمينيه او آذربائيجان په علاقو کښې جهاد کښې شريك وو) دا اوکتل چه خلق د قرآن کريم په قراءت کښې اختلاف کوی او ددې نه د سختې فتنې خطره ده.نو هغه حضرت عثمان رضي الله عنه ته حاضر شو او خپله خطره ئې دهغوی په وړاندې بيکاره کړله.حضرت عثمان رضي الله عنه د معاملې په اهميت باندې پوهه شو او حضرت حفصه رضي الله عنها ته ئې پيغام اوليګلو چه تاسو سره کومې صحيفې دی.هغه رااوليګه چه مونږ ئې نقل کړو ستاسو نسخه به مونږ واپس در اوليګو.

ددې نه پس ئې حضرت زيد بن ثابت، حضرت عبدالله بن الزبير ،حضرت سعيد بن العاص، او حضرت عبدالرحمن بن الحارث بن هشام رضي الله عنهم ته د مصاحفو د نسخ ( ليکلو) حکم ورکړو. چه کوم ځائې کښې د باقی دريو وارو حضراتو او په حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه کښې اختلاف شی.هلته به د قريشو خبرې ته ترجيح وی.ځکه چه قرآن کريم د قريشو په ژبه باندې نازل شوې دې.د مصاحفو د نقل کولو کار چه مکمل شو.نو ددې نه پس ئې حضرت حفصه رضي الله عنها ته ددوی نسخه واپس اوليګله.(١) او کومې نسخې چه نقل کړې شوې وې.هغه نسخې ئې د حکومت اطرافو ته اوليګلې.

**حضرت عثمان رضي الله عنه ټولې څومره نسخې تيار کړې وې؟ او کوم کوم ځائې ته ئې ليګلې وې؟**

حضرت عثمان رضي الله عنه ټولې څومره نسخې تيار کړې وې؟ مشهوره دا ده.چه پنځه نسخې وې.(٢) ابن ابی داؤد د حمزة الزيات نه نقل کړی دی.چه دا ټولې څلور نسخې وې.(٣) کوفې. بصرې او شام طرف ته يوه يوه نسخه اوليګلې شوه.او يوه نسخه حضرت عثمان رضي الله عنه خپل خان سره مدينه منوره کښې کيخودله.(٤) ابن ابوداؤد د ابوحاکم سجستانی نه نقل کړی دی.چه ټولې اووه نسخې تيار کړې شوې وې.يوه مکه مکرمې ته اوليګلې شوه.يوه شام ته. يوه يمن ته. يوه بحرين ته. يوه بصرې ته. او يوه کوفې ته اوليګلې شوه او يوه نسخه دوی د خان سره په مدينه منوره کښې اوساتله.(٥)

ددې واقعې نه دلته امام بخاری رحمه الله دمکاتبت په صحت باندې استدلال کړې دې.چه حضرت عثمان رضي الله عنه قرآن کريم اوليکلو.او د حکومت اطرافو ته ئې اوليګلو او خلقو په دې باندې اعتماد اوکړو.(٦)

**يو اشکال او دهغې جواب** خو دلته اشکال کيږی.چه قرآن کريم خو د الله تعالى کلام دې.او ددې د ثبوت دپاره تواتر او قطعيت پکار دې.او دلته ئې حضرت عثمان رضي الله عنه د خپلو

---

١) صحيح بخاری(٧٤٥\٢) کتاب فضائل القرآن. باب نزل القرآن بلغة قريش والعرب. رقم(٤٩٨٧)۔
٢) الإتقان فی علوم القرآن(٦٠\١) النوع الثامن عشر فی جمعه و ترتيبه. وفتح الباری(١٩\٩) کتاب فضائل القرآن. باب جمع القرآن)۔
٣) کتاب المصاحف لإبن أبی داؤد(٢٤\١) ما کتب عثمان رضي الله عنه من المصاحف رقم(١١٥)۔
٤) البرهان فی علوم القرآن للزرکشی(٢٤٠\١) نقلاً من المقنع للدانی)۔
٥) کتاب المصاحف(٢٤٢\١) رقم(١١٦)
٦) فتح الباری(١٥٤\١)۔

قاصدانو او سفيرانو په ذريعه ليګي. نو د قرآن کريم په ثبوت کښې تواتر پاتې نشو؟
**جواب**: ددې جواب دا دې چه د قرآن کريم، قرآنيت خو متواتر وو. البته صورت د کتابت خبر واحد سره ثابتيږي.(۱) خو روستو د صحابه کرامو ﷺ په دې باندې اتفاق اوشو. او دا مسئله هم مجمع عليه شوه. په دې وجه قراء حضرات ليکي. چه د مصحف عثماني د رسم (ليکلو) خلاف د ليکلو ګنجائش نشته.(۲)
دلته دا هم ممکن ده. چه ددې واقعې نه مناوله باندې هم استدلال اوکړې شي. ځکه چه حضرت عثمان ﷺ په اطراف عالم کښې، دکومو خلقو په ذريعه مصحفونه ليګلي وو. بهرحال د هغوی په لاس کښې ئې ورکړی وو. نو مناوله هم اوموندلې شوه. او په لاس کښې ددې دپاره ورکړی وو. چه لاړشي. چه دوی بيان کړي. چه حضرت عثمان ﷺ د قرآن پاک نسخه رالېګلې ده.
**قوله**: وَرَأَى عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ ذٰلِكَ جَائِزًا:
عبدالله بن عمر، يحي بن سعيد، او مالك درې واړه حضرات مکاتبه او مناوله ته جائز وائي.
**عبدالله بن عمر نه څوک مراد دې؟** علامه کرماني ﷺ فرمائي. چه دلته عبدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب عمري مدني مراد دې. لکه چه دوې فرمائي. چه عبدالله بن عمر فرمائي. «كنتُ أرى الزهري يأتيه الرجل بالكتاب لم يقرأه عليه ولم يقرأ عليه فيقول: أرويه عنك؟ فيقول نعم، وقال: ما أخذنا نحن ولا مالك عن الزهري إلا عرضاً»(۳)
بعينه هم دا خبره علامه عيني ﷺ هم ليکلې ده.(۴)
حافظ ابن حجر ﷺ فرمائي. چه ما هم عبدالله بن عمر عمري ګڼړلو. او هم ددې مطابق مې په تعليق التعليق کښې روايت تخريج کړې دې.(۵) خو بيا دا قرينه راغله. چه دلته ئې دوی د

---

۱) المصدر السابق)_
۲) قال أشهب: سئل مالک، هل يكتب المصحف على ما أحدثه الناس من الهجاء؟ فقال: لا. إلاّ على الكتبة الأولى. رواه الداني في المقنع، ثم قال: ولا مخالف له من علماء الأمة وقال في موضع آخر: سئل مالک عن الحروف في القرآن مثل الواو، والألف، أترى أن يغير من المصحف إذا وجد فيه كذالک؟ قال: لا. قال ابوعمرو: يعني الواو والألف المزيدتين في الرسم المعدومتين في اللفظ نحو «أولوا». وقال الإمام أحمد: يحرم مخالفة خط مصحف عثماني في واو، أو ياء، او الف، أو غير ذالک. وقال البيهقي في شعب الإيمان، من يكتب مصحفاً فينبغي أن يحافظ على الهجاء الذي كتبوا به تلک المصاحف ولا يخالفهم فيه ولا يغير مما كتبوه شيئاً. فإنهم كانوا أكثر علماً و أصدق قلباً و لساناً. و أعظم أمانة. فلا ينبغي أن نظنّ بأنفسنا استدراكاً عليهم». ألإتقان (۲\۱۶۶، ۱۶۷) النوع السادس والسبعون في مرسوم الخط و آداب كتابته. وانظر البرهان في علوم القرآن (۱\۳۷۹، ۳۸۰)_
۳) شرح الكرماني (۲\۲۰، ۲۱)_
۴) عمدة للقاري (۲\۲۵)_
۵) حافظ ابن حجر ﷺ په فتح الباري (۱\۱۵۴) کښې دا ذکر کړی دی. چه [بقيه حاشيه په بل مخ...

يحي بن سعيد نه وړاندې ذکر کړی دې. ددې تقديم نه معلومه شوه چه دلته د عمری نه علاوه بل څوك مراد دې. ځکه چه يحي بن سعيد، د عمری نه د عمر او مرتبې هر لحاظ سره اوچت دی.(١)

حافظ رحمه الله فرمائي چه ما تتبع (او لټون) اوکړو. خو د حضرت عبدالله بن عمر بن الخطاب نه صراحت سره هيڅ روايت ملاو نشو. البته ابن منده رحمه الله دامام بخاری رحمه الله په واسطې سره د ابو عبدالرحمن حبلی رحمه الله نه نقل کړی دی. «أنه أتى عبدالله بكتاب فيه أحاديث، فقال: انظر لي هذا الكتاب فما عرفت منه اتركه، ومالم تعرفه امحه.....»(٢)

حافظ رحمه الله فرمائي. چه دلته ،،عبدالله،، مطلق دې. چه په دې کښې دا احتمال هم شته. چه عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما وی. ځکه چه ابوعبدالرحمن حبلی د عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما نه هم روايت کوی. دا امکان هم شته. چه حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما وی. ځکه چه حبلی د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت کولو کښې مشهور دې (٣).

خو علامه عينی رحمه الله په دې خو وجو سره د حافظ رحمه الله رد کړې دې: ① ړومبۍ وجه دوی دا بيان کړې ده. چه د عبدالله بن عمر دتقديم نه دلته دا چرته لازميږی. چه دا عبدالله بن عمر عمری نه وی. ددې لزوم دپاره دليل پکار دې.(٤)

خو حافظ رحمه الله په ،،انتقاض الاعتراض،، کښې ددې دا جواب ورکړې دې. چه انتفاء د لزوم نه دا ضروری نه ده. چه د قرينې کيدو باوجود لزوم ثابت نه وی. او دلته قرينه موجود ده ځکه چه تقديم په اهتمام د شان باندې دلالت کوی. او ښکاره ده. چه اهتمام به د اسن (مشر) او اوثق وی.(٥) نو ښکاره دا ده. چه دلته کوم ،،عبدالله بن عمر،، مذکور دې ددې نه به عبدالله بن عمر بن الخطاب مراد وی.

علامه عينی رحمه الله دويم اعتراض دا کړې دې. چه د حافظ ابن حجر رحمه الله دا وينا هم صحيح نه ده. چه د حبلی د قول ،،أنه أتى عبدالله،، نه مراد ،،عبدالله بن عمر،، يا ،،عبدالله بن عمرو،، وی. ځکه چه کله په صحابو رضي الله عنهم کښې د ،،عبدالله،، اطلاق کيږی نو ددې نه حضرت عبدالله

---

.....د تيرمخ بقيه حاشيه](وكنت أظنه العمري المدني. وخرجت الأثر بذالك فی تعليق التعليق. وكذا جزم به الكرماني. ثم ظهرلي من قرينة تقديمه في الذكر على يحی بن سعيد أنه غير العمري. لأن يحی أكبر منه سناً و قدراً.. خو په تعليق التعليق کښې په شروع کښې دوی دا رائې ثابت کړې ده چه دا عبدالله بن عمرو بن العاص دې. اګرچه د عبدالله بن عمر بن الخطاب احتمال هم شته. حالانکه د عبدالله بن عمر عمری نه نې روستو اثر نقل کړی دې. اوګورئ: تغليق التعليق(٢\٧٢. ٧٣)_

(١) فتح الباری(١\١٥٤)_
(٢) فتح الباری(١\١٥٤)_
(٣) المصدرالسابق)_
(٤) عمدة القاری(٢\٢٥)_
(٥) ارشاد الساری( ١\١٦٣)_

بن مسعود رضي الله عنه مراد وى.او د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه پس وى.نو حضرت عبدالله بن المبارك رحمه الله مراد وى.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه علامه عينى رحمه الله د ،،عبدالله،، د اطلاق په سلسله كښې حصر سره كومه دعوه كړې ده.هغه ټيك نه ده.ځكه چه خطيب بغدادى رحمه الله ليكلى دى.كه مصرى حضرات عبدالله مطلق اووائى.نو ددې نه حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما مراد وى.كه اهل عراق ددې اطلاق اوكړى.نو ددې نه مراد ،،حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه،، وى.(٢)

دلته چونكه حبلى مصرى دې.(٣) په دې وجه دا عين امكان شته.چه د ،،عبدالله،، نه حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما مراد وى.

د علامه عينى رحمه الله اعتراض په دې اعتبار سره هم كمزورې دې.چه ابوعبدالله حبلى چه كوم ،،عبدالله،، اطلاق كړې دې.ددې نه، نه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مراد كيدې شى.او نه عبدالله بن المبارك رحمه الله، ځكه چه په دوى كښې يو ته هم ددوى نه سماع حاصل نه ده.(٤) خاص طور باندې عبدالله بن المبارك خو ددوى نه ډير زيات متاخر هم دى.ځكه چه: عبدالله بن المبارك ولادت په ١١٨ﻫ كښې شوې دې.او وفات ئې په ١٨١ﻫ كښې شوې دې.(٥) او د عبدالرحمن حبلى وفات په ١٠٠ﻫ كښې شوې وو.(٦)

دريم اعتراض علامه عينى رحمه الله دا كړې دې.چه د صحيح بخارى ځومره نسخې دى.په ټولو كښې حضرت عبدالله بن عمر ( بضم العين وبدون الواو فى آخره) دې.په يوه نسخه كښې هم ،،عمرو،، (بفتح العين و بالواو فى آخره) نه دې.(٧)

علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه غالب گمان هم دا دې.چه دلته د عبدالله نه مراد ،،عبدالله بن

---

١) عمدة القارى(٢\٢٥)_

٢) ارشاد السارى( ١١\١٦٣). قال ابن الصلاح فى علوم الحديث(ص٣٦٢، ٣٦٣) قال سلمة:إذا قيل بمكة ،،عبدالله،، فهو ابن الزبير. و إذا قيل بالمدينة ،،عبدالله،، فهو ابن عمر. وإذا قيل بالكوفة ،،عبدالله،، فهو ابن مسعود. و إذا قيل بالبصرة ،،عبدالله، فهو ابن عباس، و إذا قيل بخراسان ،،عبدالله،، فهو ابن المبارک. وقال الحافظ ابو يعلى الخليلى القزوينى: إذا قال المصرى: ،،عن عبدالله،، ولا ينسبه، فهو ابن عمرو يعنى ابن العاص، وإذا قال المكى: ،،عن عبدالله،، ولا ينسبه فهو ابن عباس،،

وقال العراقى فى فتح المغيث له (ص٤٣٣): قلت ( أى العراقى) لكن قال النضر بن شميل: إذا قال الشامى ،،عبدالله،، فهو ابن عمرو بن العاص، قال: و إذا قال المدنى: ،،عبدالله،، فهو ابن عمر، قال الخطيب: وهذا القول صحيح، قال: وكذالک يفعل بعض المصريين فى عبدالله بن عمرو بن العاص،،)_

٣) تهذيب الكمال(١٦\٣١٦)_

٤) د ابوعبدالرحمن حبلى شاگردانو دپاره او شيوخو دپاره اوگورئ: تهذيب الكمال(١٦\٣١٦، ٣١٧)_

٥) الكاشف للذهبى(١١\٥٩١) رقم(٢٩٤١)_

٦) الكاشف(١١\٢٠٦) رقم(٣٠٦١)_

٧) عمدة القارى(٢\٢٥)_

عمر العمرى.. دې.لكه څنګه چه علامه كرمانى رحمه الله جزماً بيان كړى دى.ددې سره سره دا قوى احتمال هم موجود دې چه دلته مراد ..عبدالله بن عمر بن الخطاب.. وى.(۱)

حقيقت دا دې چه دلته عبدالله بن عمر عمرى، عبدالله بن عمر بن الخطاب، اوعبدالله بن عمرو بن العاص درې واړه حضرات مراد كيدې شى. بلكه ددوى نه علاوه د عبيدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب نه هم دا څيز منقول دې.نو ددوى مراد كيدل هم لرې نه دى.

عبدالله بن عمر عمرى څكه مراد كيدې شى.چه ابن منده پخپل سند سره ذكركړى دى. «....سمعتُ أبا صالح، سمعت الليث، يقول: أتاني أبوعثمان عبد الحكم بن أعين بهذا الكتاب من عبدالله بن عبدالعمرى، مختوماً بخاتمه، قال أبوصالح: ولم يسمع الليث من العمرى شيئاً، وإنما روايته منه كتابه»(۲)

عبدالله بن عمر بن الخطاب څكه مراد كيدې شى.چه ابن منده پخپل سند سره د ابو عبدالرحمن حبلى نه نقل كړى دى.«أنه أتى عبدالله بكتاب فيه أحاديث، فقال: أصلحك الله، أطرني هذا الكتاب فما عرفت منه وتركته، ومالم تعرفه محوته، فنظرفيه، قال: فعرضت عليه حتى فرغت منه....»(۳)

چونكه ابوعبدالرحمن حبلى د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت كوى په دې وجه كيدې شى چه دلته هم دوى د هغه شيخ وى.(۴)

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما څكه مراد كيدې شى.چه په مذكوره روايت كښې ..عبدالله.. مطلق راغلې دې.او ابو عبدالرحمن حبلى مصرى دې.مصرى چه كله مطلق ..عبدالله.. وائى.نو حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما مراد اخلى.(۵) په دې صورت كښې به ونيلې شى.چه د بخارى په نسخو كښې ..واو.. غلطئ سره ساقط شوې دې.

عبيدالله بن عمربن حفص بن عاصم څكه مراد كيدې شى.چه رامهرمزى رحمه الله په ..المحدث الفاصل.. كښې خپل سند سره روايت نقل كړې دې. «عن عبيدالله بن عمر قال: أشهد على ابن شهاب، لقد كان يؤتى بالكتب من كتبه، فيقال له، يا أبابكر، هذه كتبك؟ فيقول نعم، فيجترئ بذالك ويحمل منه ما قرئ عليه»(۶)

دغه شان ابن عبدالبر رحمه الله هم د عبيدالله بن عمر نه نقل كړى دى.«كنتُ أرى الزهرى يأتيه الرجل

---

(۱) عمدة القارى(۲\۲۵، ۲۶)_
(۲) تغليق التعليق(۲\۷۳)_
(۳) تغليق التعليق(۲\۷۲)_
(۴) المصدر السابق)_
(۵) تغليق التعليق(۲\۷۲)_
(۶) المحدث الفاصل(ص۴۳۵)رقم(۴۹۹) باب القول فى الإجازة و المناولة)_

بالکتاب لم یقرأه علیه ولم یقرأ علیه، فیقال له، أرویك عنك؟ قال نعم»(۱)

ابن منده او ابو زرعه دمشقی رحمهما الله هم د عبیدالله بن عمر نه نقل کړی دی.«أتیت ابن شهاب بکتاب، فقیل له، هذا حدیثك نحدث به عنك؟ قال نعم،»(۱)

غالب گمان دادې چه علامه کرمانی او ددوی په اتباع کښې د علامه عینی رحمهما الله نه تسامح شوې ده.چه دوی عبیدالله بن عمر عمری طرف ته منسوب روایت. عبدالله بن عمر عمری طرف ته منسوب کړې او نقل کړې دې.

حالانکه مذکوره روایت چا هم عبدالله بن عمر عمری طرف ته منسوب کړې نه دې.بلکه ددوی نه خو ابن منده هغه روایت نقل کړې دې.کوم چه مونږ وړاندې ذکرکړې دې.چه لیث بن سعد رحمه الله ته د عبدالله بن عمر عمری روایات مکتوب شکل کښې رارسیدلی وو.والله اعلم

**د یحي بن سعید د اثر تخریج** د یحي بن سعید انصاری رحمه الله د اثر تخریج امام حاکم رحمه الله په ..معرفة علوم الحدیث.. کښې کړې دې.اسماعیل بن ابی اویس فرمائی.«سمعت خالی مالك بن أنس یقول: قال لی یحی بن سعید الأنصاری لما أراد الخروج إلی العراق، التقط لی مائة حدیث من حدیث ابن شهاب، حتی أرویها عنك عنه، قال مالك، فکتبتها ثم بعثت بها إلیه، فقیل لمالك، أسمعها منك؟ قال: هو أفقه من ذالك»(۳)

**د امام مالک رحمه الله د اثر تخریج** د امام مالک رحمه الله داثر تخریج رامهرمزی رحمه الله کړې دې. اسماعیل بن اویس فرمائی.«سألت مالکاً عن أصح السماع، فقال، قراءتك علی العالم، أو قال المحدث، ثم قراءة المحدث علیك، ثم أن یدفع إلیك کتابه، فیقول، أروهذا عنی....»(۴)

**قوله**: وَاحْتَجَّ بَعْضُ أَهْلِ الْحِجَازِ فِي الْمُنَاوَلَةِ بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ كَتَبَ لِأَمِيرِ السَّرِيَّةِ كِتَابًا وَقَالَ لَا تَقْرَأْهُ حَتَّى تَبْلُغَ مَكَانَ كَذَا وَكَذَا فَلَمَّا بَلَغَ ذَلِكَ الْمَكَانَ قَرَأَهُ عَلَى النَّاسِ وَأَخْبَرَهُمْ بِأَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

بعضې اهل حجاز په صحت د مناوله باندې د نبی کریم ﷺ ددې حدیث نه استدلال کړې دې.په کوم کښې چه نبی کریم ﷺ د سریه امیر ته یو خط لیکلې ورکړې وو.او فرمائیلی ئې

---

۱) جامع بیان العلم وفضله (۲۱۸/۲) باب فی العرض علی العالم....و (۱۱۵۵/۲) بتحقیق أبی الأشبال الزهیری. وفیه عبدالله بن عمر. بدل ..عبیدالله بن عمر.. قال محققه. کذا فی الأصل. وفی بعض النسخ ..عبیدالله.. وهو تحریف. قلت: ألظاهر أن الصواب هو ..عبیدالله.. لا ..عبدالله.. کما فی المحدث الفاصل (ص۴۳۵) رقم(۴۹۹) وکما هو کذالک فی بعض نسخ جامع بیان العلم و فضله. والله اعلم.)_

۲) تغلیق التعلیق(۷۳/۲)_

۳) معرفة علوم الحدیث(ص۲۵۹). المحدث الفاصل(ص۴۳۸) رقم(۵۰۷) وتغلیق التعلیق(۷۳/۲، ۷۴)_

۴) المحدث الفاصل(ص۴۳۸) رقم(۵۰۶)_

وو چه ترکومه پورې داسې خاې ته اونه رسیږې دا مه وایه. کله چه هغه دغه خاې ته اورسیدو. نو هغوی دا خلقو ته واورولو. او د نبی کریم ﷺ د حکم نه ئې هغوی خبر کړل.

**د بعضې اهل حجاز نه څوک مراد دی؟** د بعضې اهل حجاز نه مراد د امام بخاری رحمه الله شیخ امام حمیدی (ابوبکر عبدالله بن الزبیر بن عیسی القرشی الاسدی الحمیدی المکی) دې. دوی پخپل کتاب النوادر کښې د مناوله په حجیت او صحت باندې دا دلیل پیش کړې دې چه نبی کریم ﷺ یو خط اولیکلو. او یوې سریة ته ئې حواله کړې وو. او دا ئې فرمائیلي وو چه وړاندې لاړ شئ. نو دا خط واوروئ.(۱) امام ابوالقاسم رحمه الله ددې استدلال ذکر کولو نه پس فرمائي. ((وهو فقه صحیح))(۲)

**د مذکوره سریه د واقعې تخریج** ددې سریة اصل قصه محمد بن اسحاق رحمه الله پخپل سیرت کښې د ،،یزید بن رومان عن عروة بن الزبیر،، طریق سره نقل کړې ده.(۳) او ابوالیمان الحکم بن نافع هم پخپله نسخه کښې (کومه چه د شعیب بن ابی حمزه نه روایت کوی) د ،،عروه بن الزبیر،، نه مرسلاً نقل کړې ده.(۴)

هم دا حدیث امام طبرانی رحمه الله د حضرت جندب بن عبدالله بجلی رضی الله عنه نه حسن سند سره مرفوعاً ذکر کړې دې.(۵) هم دا ضیاءالدین مقدسی رحمه الله په ،،المختاره،، کښې نقل کړې دی.(۶) دغه شان دا واقعه ابن جریر طبری رحمه الله پخپل تفسیر کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په واسطې سره نقل کړې ده.(۷)

حافظ ابن کثیر رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه علاوه د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه هم نقل کړې ده.(۸)

**د واقعې خلاصه:** د واقعې خلاصه دا ده. چه په رجب ۲هـ کښې نبی کریم ﷺ حضرت ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه د یوې سریة امیر جوړ کړو. هغه د نبی کریم ﷺ په جدائئ باندې په ژړا شو. نبی کریم ﷺ ددوی په ځاې حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه امیر جوړ کړو. د دوی په مشرئ کښې ئې د اووه یا دولسو کسانو یو جماعت ورکړو. نبی کریم ﷺ هغوی ته خط اولیکلو. او وې فرمائیل. کله چه تاسو فلانی ځاې ته اورسیږئ. یا ئې اوفرمائیل. کله چه تاسو د دوو ورځو فاصله باندې اورسیږئ. نو دا خط کلاو کړئ. او ددې مطابق عمل اوکړئ.

---

(۱) عمدة القاری(۲۶\۲) وفتح الباری(۱۵۵\۱)_

(۲) الروض الأنف(۲۶\۲) سریة عبدالله بن جحش.)_

(۳) فتح الباری(۱۵۵\۱) وتعلیق التعلیق(۷۵\۲)_ سیرت ابن هشام(۵۹\۲)_

(۴) فتح الباری(۱۵۵\۱) وتغلیق التعلیق (۷۶\۲)_

(۵) مجمع الزوائد(۱۹۸\۶) باب سریة عبدالله بن جحش وقال الهیثمی: رواه الطبرانی و رجاله ثقات. وفتح الباری(۱۵۵\۱)_

(۶) تغلیق التعلیق( ۷۶\۲)_

(۷) تفسیر الطبری(۲۰٤\۲) وفتح الباری(۱۵۵\۱) وتعلیق التعلیق(۷۷\۲)_

(۸) تفسیرابن کثیر(۲۵۲\۱، ۲۵۳)_

حضرت عبدالله بن جحش رضي الله عنه دا خپل مختصر جماعت واخستلو.او روان شو.چه مطلوبه ځائې ته اورسيدو.نو خط ئې کلاو کړو.په هغې کښې ليکلی شوی وو.((إذا نظرت في كتابي هذا فامض حتى تنزل نخلة بين مكة والطائف، فترصد بها قريشاً وتعلم لنا من أخبارهم)) په دې خط کښې دا هدايت هم وو.چه خپل ملګری ځان سره په بوتلو باندې مه مجبوروه وه.بلکه اختيار ورکړه.چه د چا زړه غواړی.ستا ملګرتيا دې اوکړی.او چه دچا زړه غواړی.را واپس دې شی.حضرت عبدالله بن جحش رضي الله عنه د خط د هداياتو نه دوی خبر کړل.او ددې نه پس ئې ((إنا لله وإنا إليه راجعون)) اووئيل.او وې وئيل.((سمعاً وطاعةً))خپل ملګری ئې دخط د مضمون نه خبر کړل.او ټولو ته ئې د هدايت مطابق اختيار هم ورکړو.د ابن اسحاق د روايت مطابق ټول په ټوله د زړه په خوشحالئ په وړاندې تللو باندې راضی شو.او د طبرانی وغيره د روايت مطابق دوه سړی روستو پاتې شو.په ښکاره دا دوه سړی هم د مهم (او مقصد) نه قصداً روستو نه وو پاتې شوی.بلکه ددوی اوښ ورك شوې وو.د هغې د تلاش په وجه روستو پاتې شوی وو.

دا حضرات چه کله ..نخله.. مقام ته اورسيدل.نو دعمرو بن الحضرمی قريشی تجارتی قافله روانه وه.حضرت واقد بن عبدالله رضي الله عنه غشې اوويشتلو.چه په دې سره عمرو بن الحضرمی مړ شو.د تجارت مال د مسلمانانو په لاس راغې.

کله چه دا واقعه راپيښه شوه.د رجب رومبئ شپه وه.حالانکه حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم د جمادی الاولی آخری تاريخ ګڼړلو.چونکه رجب د اشهر حرم ځنې ده.چه په دې کښې به د عربو خلقو قتال نه کولو.په دې وجه دې قتل باندې مشرکانو دا وينا شروع کړله.چه مسلمانانو د اشهر حرم د حرمت هم لحاظ اونه ساتلو.په دې باندې د قرآن کريم آيت نازل شو. ﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ۭ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ۭ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۤ وَاِخْرَاجُ اَھْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۭ﴾ ... (١)

بعضو حضراتو دا اووئيل.چه په دې خلقو که ګناه نه وی.بيا به هم ثواب او اجر نه ملاويږی. په دې باندې دا آيت نازل شو. ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ ھَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰۗىِٕكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ (٢)

ددې قصې نه چه څنګه ..مناوله.. ثابته شوه.څکه چه نبی کريم ﷺ د سريه امير ته خپل تحرير (خط) ورکړې وو.ددې نه ..مکاتبت.. هم ثابت شو.دا څکه چه نبی کريم ﷺ خط ليکلې وو.او د لښکر امير ته ئې حواله کړې وو.او دا ئې فرمائيلی وو.چه کله دوه منزله سفر اوکړی.نو ددې مضمون واوروئ.نو معلومه شوه.چه په کتاب باندې اعتماد او اطمينان کيدې شی.او د کتاب په ذريعه روايت کيدې شی.څکه چه حضرت عبدالله بن جحش رضي الله عنه دا کتاب لوستلې وو.او خپلو ملګرو ته ئې دا مضمون اورولې وو.

---

(١) البقرة:٢١٧.

(٢) البقرة:٢١٨.

## حديث باب

۳-((حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ (١) أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهِ رَجُلًا وَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ فَدَفَعَهُ عَظِيمُ الْبَحْرَيْنِ إِلَى كِسْرَى فَلَمَّا قَرَأَهُ مَزَّقَهُ فَحَسِبْتُ أَنَّ ابْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ فَدَعَا عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ)) [انظر: ۲۷۸۱، ۴۱۶۲، ۶۸۳۶]

## رجال الحديث

① اسماعيل بن عبدالله: دا اسماعيل بن ابى اويس رحمه الله دي.د عبدالله كنيت ابو اويس دې.ددوى حالات د كتاب الايمان د((باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال))لاندې تير شوى دى.(٢)

② ابراهيم بن سعد: دا ابواسحاق ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف زهرى مدنى رحمه الله دې.ددوى حالات هم د ،،كتاب الإيمان،،((باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال)) لاندې تير شوى دى.(٣)

③ صالح: دا ابوالحارث صالح بن كيسان مدنى رحمه الله دې.ددوى حالات هم په مذكوره كتاب او باب كښې تير شوى دى.(٤)

④ ابن شهاب: دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهرى مدنى رحمه الله دې.ددوى مختصر حالات د ،،بدءالوحى،، د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.(٥)

⑤ عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود: دا د مدينې د مشهورو اووه فقهاؤ نه يو دې.ددې مختصر حالات هم د ،،بدءالوحى،، پنځم حديث لاندې تير شوى دى.(٦)

---

١) قوله: ..أن ابن عباس أخبره.. ألحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه (١١١\٤) فى كتاب الجهاد والسير. باب دعوة اليهودي والنصراني و على ما يقاتلون عليه. وما كتب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر. والدعوة قبل القتال. رقم(٢٩٣٩) و (٦٣٧\٢) فى كتاب المغازى. باب كتاب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر. رقم(٤٤٢٤) و (١٠٧٨\٢، ١٠٧٩، ٤٠٧٩) فى كتاب أخبار الآحاد. باب ماكان يبعث النبى ﷺ من الأمراء والرسل واحداً بعد واحد. رقم(٧٢٦٤). واحمد فى مسنده (٢٤٣\١، ٣٠٥)_

٢) كشف البارى(١١٣\٢)_

٣) كشف البارى(١٢٠\٢)_

٤) كشف البارى(١٢١\٢)_

٥) كشف البارى(٣٢٦\١)_

٦) كشف البارى(٤٦٦\١)_

۹ عبدالله بن عباس رضی الله عنهما: د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات د ..بدءالوحی.. څلورم حدیث لاندې او د کتاب الایمان «باب کفران العشیر وکفر دون کفر» لاندې تیر شوی دی.( )

**قوله** أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهِ رَجُلًا: رسول الله ﷺ یو سړی ته خپل خط ورکړو.او وې لیګلو.

نبی کریم ﷺ چه کله د صلح حدیبیه نه فارغ شو.نو نبی کریم ﷺ ته د کافرانو نه یوقسم اطمینان حاصل شو.دغه وخت نبی کریم ﷺ د مکاتبت کار په اعلی پیمانه باندې د کولو اراده اوکړله.او ددې دائره ئې خوروِل اوغوښتل.په دې وجه د حجاز په اطرافو کښې چه کومې لوئې لوئې بادشاهئ وې.هغوی ته ئې د خطونو لیګلو اراده اوکړله.

**د ،،رجل،، نه څوک مراد دې؟** په حدیث باب کښې د ،،رجل،، نه مراد حضرت عبدالله بن حذافه سهمی رضی الله عنه دې.( ۲ )

**حضرت عبدالله بن حذافه سهمی رضی الله عنه** دا د سابقینو اولینو څخې وو.په بدر کښې هم شریک شوې وو.اګرچه موسی بن عقبه او ابن اسحاق او نورو اصحاب د مغازی ددوی نوم نه دې ذکر کړې.( ۳ )

ددوی عجیبه واقعه اصحابو د سیر نقل کړې ده.چه حضرت عمر رضی الله عنه روم طرف ته یو لښکر اولیګلو.چه په هغې کښې حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه هم وو.اتفاق سره د رومیانو په لاس ګرفتار شو.د روم بادشاه د ټولو نه وړاندې دا پیشکش اوکړو.چه که ته نصرانی شوې.نو پخپل سلطنت کښې به تا شریك کړم.دوی انکار اوکړو.په دې باندې دوی په سولئ د زاروړندولو او په غشی د ویشتلو حکم ورکړو.خو په دوی باندې هیڅ قسمه جزع فزع (او د یرې) څه اثر ښکاره نشو.بیا ئې د یو دیګ په اور باندې د ایښدلو حکم ورکړو.چه په دې کښې اوبه واچولې شوې.او ښه اوخوټکولې شوې (او ویشیدلې).ددوی په وړاندې یو قیدی ور اوغورزولې شو.نو فوراً ټوله غوښه اوجوشیدله.او د هډوکو نه جدا شوه.او هډوکی ښکاره شو.او دوی ته اووئیلې شو.که ته نصرانی جوړ نشوې.نو په دې کښې به واچولې شې.نو کله چه دوی بوتلې شو.نو په ژړا شو.بادشاه راوغوښتلو.او د ژړا د سبب تپوس ئې اوکړو.دوی جواب ورکړو.چه زما خواهش دې.چه زما سل بدنونه وې.او د الله تعالی د پاره مې یویو بدن داسې قربانولې.چونکه زما دا خواهش نشی پوره کیدې.په دې وجه ژاړم.بادشاه ته ډیر زیات تعجب اوشو.او وې وئیل.که ته زما سر ښکل کړې.نو زه به تا پریږدم.دوی اووئیل.که صرف زما پریخودل وی.بیا خو ماته منظوره نه ده.البته که د ټولو

---

۱) کشف الباری(۱\۴۳۵) و(۲\۲۰۵)_

۲) لکه څنګه چه په صحیح بخاری (۲\۶۳۷)، کتاب المغازی ،،باب کتاب النبی ﷺ إلی کسری وقیصر،، رقم(۴۴۲۴)کښې د نوم تصریح موجود ده )_

۳) الإصابة(۲\۲۹۶)_

آزادي كيږي.نو ماته منظوره ده.كله چه هغه قبوله كړله.نو دوى دهغه سر بنكل كړو.دغه شان سره دخپلو ملګرو حضرت عمر رضي الله عنه ته اورسيدو.حضرت عمر رضي الله عنه ته چه كله د واقعې علم اوشو.نو حضرت عمر رضي الله عنه ددوى تندې بنكل كړو.(۱)

ددې حديث نه مناوله ثابتيږي.چه دوى يو خط ليكلې وو.او حضرت عبدالله بن حذافه رضي الله عنه ته ئې وركړې وو.او ددې دپاره ئې وركړې وو.چه دا اوورسوى.چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم خط دې.دغه شان ددې نه مكاتبت هم راوخى.ځكه چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دا خط وركړې وو.چه ددې مضمون مكتوب اليه اوورسوى.(۲)

**قوله** وَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ فَدَفَعَهُ عَظِيمُ الْبَحْرَيْنِ إِلَى كِسْرَى:
او دوى ته ئې حكم وركړو.چه دا خط عظيم البحرين ته وركړئ.عظيم البحرين كسرى ته دا خط اورسولو.

**د عظيم بحرين نه څوک مراد دي؟** د عظيم بحرين نه مراد منذر بن ساوى دې.(۳)
نبى كريم صلى الله عليه وسلم دا خط براه راست كسرى ته ځكه اونه ليګلو.چه هلته رسيدو كښې به مشكلات وو.او منذر بن ساوى د بحرين حاكم، د كسرى ماتحت وو.نو دده په ذريعه رسول آسان وو.
،،كسرى،، د فارس د بادشاهانو لقب دې.

**د كسرى نه څوک مراد دي؟** دلته د كسرى نه ،،پرويز بن هرمز بن نوشيروان،، مراد دې.(۴)

**قوله** فَلَمَّا قَرَأَهُ مَزَّقَهُ: كله چه هغه دا خط اولوستلو.نو دا ئې اوشلولو.

**د كسرى غصه كيدل، او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د ګرفتارولو كوشش** كسرى سخت غصه شو.او د يمن حاكم ،،باذان،، ته (چه دهغه ماتحت وو) ئې اوليكل.چه دوه سرى ددې نبوت مدعى ته اوليګه.چه ګرفتار ئې كړى. او ماته ئې حاضر كړه.باذان دوه سرى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې اوليګل. كله چه دوى دواړه قاصدان نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته اورسيدل.نو د شپې تيرولو نه پس نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوى دواړو ته اوفرمائيل.چه خپل بادشاه ته اووايه.چه زما رب ستا آقا نن شپه مړ كړې دې.الله تعالى دهغه خوئې ،،شيرويه،، په هغه باندې مسلط كړو.او هغه ئې مړ كړو.(۵)
ددې صورت دا جوړ شوې وو.چه پرويز دغه وخت بادشاه وو.دده د خوئې شيرويه خپل پلار سره په څه وجه اختلاف شو.هغه دخپل پلارد وژلو تدبيراوكړو.په دې طريقه ئې هغه مړ كړو.

**د باذان اسلام** كله چه دوى دواړه قاصدان يمن ته اورسيدل.او هغوى د يمن حاكم ته د نبى

---

۱) الإصابة(۲\۲۹۶، ۲۹۷)_
۲) فتح البارى(۱\۱۵۵)_
۳) المصدر السابق)_
۴) فتح البارى(۱\۱۵۵) و عمدة القارى(۲\۲۸)_
۵) فتح البارى(۸\۱۲۷) كتاب المغازى، باب كتاب النبى صلى الله عليه وسلم إلى كسرى وقيصر.)_

كريم ﷺ گفتگو نقل كړله.او د يمن حاكم ته معلومه شوه.چه هو بهو واقعه هم دغه شان ده.نو هغه سره د خپلو متبعينو مسلمان شو.(١)

**قوله** فَحَسِبْتُ أَنَّ ابْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ فَدَعَا عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ: زما خيال دا دې.چه ابن المسيب فرمائيلي دی.چه نبی كريم ﷺ ددوی دپاره بد دعا اوكړله.چه هغه مكمل طور باندې ټكړې ټكړې كړې شی.

د ،،حسبت....الخ،، قائل امام زهرى رحمه الله دې.گويا په دې حديث كښې د مكاتبت والا حصه دوی سره موصولاً ده.او د بدعا والا خبره مرسل ده.(٢)

**په خط شلولو باندې كسرى دپاره د نبی كريم ﷺ بد دعا او د هغې اثر** د نبی كريم ﷺ بددعا داسې اولگيدله.چه شيرويه پخپله د خپل پلار د سازش بنكار شو.صورت دا شو.چه كله پرويز ته ددې خبرې احساس اوشو.چه شيرويه هغه مړ كول غواړی.نو هغه په يوه شيشه د ،، زهر هلاهل،، نه ډكه كړله.او په هغې نې اوليكل.،،الدواء النافع للجماع،، او دا شيشه نې پخپله خزانه كښې كيخودله.شيرويه چه كله خپل پلار مړ كړو.او په سلطنت نې قبضه اوكړله.خزانې نې كلاو كړې.نو هغه ته دا شيشه ملاو شوه.هغه دوائى اوگڼړله. او استعمال نې كړله.ددې نه پس په مشكله شپږ مياشتې ژوندې وو.او هلاك شو.(٣)

بيا شيرويه د خپل خان دپاره د سلطنت باقى ساتلو په غرض، چه د بل چا د شركت نه بغير حكومت اوكړی.ده د خپل خاندان ټول سړی مړه كړل.اوس د شيرويه د مرگ نه پس په دې خاندان كښې څوك داسې سړې باقى پاتې شوې نه وو.چه په هغه باندې د سلطنت بار اچولې شوې وې.نو ددې خاندان يوه جينۍ ،،بوران،، په تخت باندې كينولې شوه.په دې باندې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل.((لن يفلح قوم ولوا أمرهم إمرأة))(٤) په دې طريقه د كسرى د اوگدې زمانې راسې د روان شهنشاهيت عمارت زمين بوس (او تباه) شو.او د نبی كريم ﷺ پيشن گوئى پوره شوه.چه ((إذا هلك كسرى فلا كسرى بعده))(٥) امام طبرى رحمه الله دا هم نقل كړی دی.چه د بوران يوه خور ،،آزرميدخت،، وه.هغې هم څه زمانې پورې حكومت كړې وو.(٦) والله اعلم.

---

(١) فتح البارى((١٢٧\٨) كتاب المغازى، باب كتاب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر.)_
(٢) فتح البارى(١٥٥\١)_
(٣) فتح البارى(١٢٨\٨) كتاب المغازى، باب كتاب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر.)_
(٤) صحيح بخارى(٦٣٧\٢) كتاب المغازى، باب كتاب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر، رقم(٤٤٢٥)، (١٠٥٢\٢) كتاب الفتن، باب (بلا ترجمة، بعد باب الفتنة التى تموج كموج البحر) رقم(٧٠٩٩)_
(٥) صحيح بخارى(٤٤٠\١) كتاب فرض الخمس، باب قول النبى ﷺ أحلت لكم الغنائم، رقم(٣١٢٠)و (٣١٢١)
(٦) فتح البارى(١٢٨\٨) كتاب المغازى، باب كتاب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر.)_

## حديث باب

۶۵-((حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ الْمَرْوَزِيُّ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ(۱) قَالَ كَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِتَابًا أَوْ أَرَادَ أَنْ يَكْتُبَ فَقِيلَ لَهُ إِنَّهُمْ لَا يَقْرَءُونَ كِتَابًا إِلَّا مَخْتُومًا فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِهِ فِي يَدِهِ فَقُلْتُ لِقَتَادَةَ مَنْ قَالَ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ قَالَ أَنَسٌ))[۲۷۷۰، ۵۵۳۴، ۵۵۳۷، ۶۷۴۳]

## رجال الحديث

① محمد بن مقاتل ابوالحسن: دا ابوالحسن محمد بن مقاتل مروزى بغدادى مكى دې.ددوى لقب ،،رخ،، دې.(۲)

دوى د اسباط بن محمد قرشى. انس بن عياض. خلف بن ايوب. سفيان بن عيينه. ابوعاصم النبيل، عبدالله بن المبارك او وكيع بن الجراح رحمهم الله وغيره حضرات نه علم د حديث حاصل كړې دې.

او ددوى نه امام بخارى، امام احمد بن حنبل. ابوحاتم،ابوزرعه او ابراهيم بن اسحاق حربى رحمهم الله وغيره روايت دحديث كړې دې.(۳)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.،،صدوق،،(۴)

خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى.،،كان ثقة،،(۵)

---

(۱)قوله:..عن أنس بن مالک.. الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه أيضاً(۴۱۱\۱) كتاب الجهاد والسير. باب دعوة اليهودى والنصرانى و على ما يقاتلون عليه، وما كتب النبى ﷺ إلى كسرى و قيصر. والدعوة قبل القتال رقم(۲۹۳۸) و(۸۷۲\۲) كتاب اللباس. باب فض الخاتم. رقم(۵۸۷۰) و باب نقش الخاتم. رقم(۵۸۷۲) و باب اتخاذ الخاتم ليختم به الشئ أو ليكتب به إلى أهل الكتاب وغيرهم. رقم(۵۸۷۵) و باب قول النبى ﷺ، لا ينقش على نقش خاتمه. رقم(۵۸۷۷) و(۱۰۶۱\۲) كتاب الأحكام. باب الشهادة على الخط المختوم..... رقم(۷۱۶۲) ومسلم فى صحيحه (۱۹۶\۲) كتاب اللباس والزينة. باب تحريم خاتم الذهب على الرجال. والنسائى فى سننه(۲۹٤\۲) كتاب الزينة، باب صفة خاتم النبى ﷺ ونقشه. رقم(۵۲۸۰- ۵۲۸۳) و ابوداؤد فى سننه، فى كتاب الخاتم، باب ماجاء فى إتخاذ الخاتم. رقم(٤۲۱٤- ٤۲۱۷) و الترمذى فى جامعه فى كتاب اللباس. باب ماجاء فى خاتم الفضة. رقم(۱۷۳۹) وباب ما جاء فى لبس الخاتم فى اليمين. رقم(۱۷٤۵) و باب ما جاء فى نقش الخاتم. رقم(۱۷٤۷) و(۱۷٤۸)، وابن ماجه فى سننه. فى كتاب اللباس، باب نقش الخاتم ، قم(۳۶۳۹- ۳۶٤۱)_

(۲) تهذيب الكمال(۴۹۱\۲۶)_

(۳) د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (۴۹۲\۲۶، ۴۹۳)_

(۴) تهذيب الكمال(۴۹۳\۲۶)_

(۵) المصدرالسابق_

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. او فرمائیلی ئې دی.((وکان متقنا))[1] صاحب د تاریخ مرو فرمائی.((کان کثیر الحدیث))[2]

حافظ خلیلی رحمه الله فرمائی.((ثقة متفق علیه مشهور بالأمانة والعلم))[3]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.((ثقة صاحب حدیث))[4]

ددوی نه په اصول سته کښې صرف امام بخاری رحمه الله روایت اخستې دی.باقی چا هم ددوی نه روایت نه دې اخستې.[5]

په ۲۲٦هـ کښې ددوی وفات شوې دې.[6]،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

۲ عبدالله: دا مشهور امام د حدیث عبدالله بن المبارک حنظلی رحمه الله دې.ددوی مختصر حالات د ،،بدءالوحی،، پنځم حدیث لاندې تیرشوی دی.[7]

۳ شعبه: امام ابوبسطام شعبه بن الحجاج عتکی بصری رحمه الله حالات د کتاب الایمان ((باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده)) لاندې تیرشوی دی.[8]

۴ قتادة: د امام قتاده بن دعامه سدوسی رحمه الله حالات د کتاب الایمان ((باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې تیر شوی دی.[9]

۵ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه: د حضرت انس رضی الله عنه حالات هم په کتاب الایمان ((باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې تیر شوی دی.[10]

**قوله**: کَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِتَابًا أَوْأَرَادَ أَنْ يَكْتُبَ: نبی کریم صلی الله علیه وسلم خط اولیکلو.یا دوی د لیکلو اراده اوفرمائیله.

په دې کښې ،،او،، د شک دپاره دې.نبی کریم صلی الله علیه وسلم طرف ته د کتابت اسناد مجازی دې.

---

[1] کتاب الثقات(۹\۸۱)_
[2] تهذیب التهذیب(۹\٤٦۹)_
[3] المصدرالسابق)_
[4] الکاشف للذهبی(۲\۲۲۳) رقم(۵۱٦۵)_
[5] عمدة القاری(۲\۲۹)_
[6] الکاشف للذهبی(۲\۲۲۳) رقم(۵۱٦۵)_
[7] کشف الباری(
[8] کشف الباری(۱\٦۷۸)_
[9] کشف الباری(۲\۳)_
[10] کشف الباری

**قوله** فَقِيلَ لَهُ إِنَّهُمْ لَا يَقْرَءُونَ كِتَابًا إِلَّا مَخْتُومًا فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِهِ فِي يَدِهِ: نبی کریم ﷺ ته اووئیلی شو چه بادشاهان د عالم داسې هیڅ یو خط نه لولي په کوم چه مهر نه وی نو نبی کریم ﷺ د سپینو زرو یوه ګتمه جوړه کړله چه په هغې باندې ،،محمد رسول الله،، نقش وو ګویا زه د هغوی ﷺ په لاس کښې د هغې چمك او سپینوالي ګورم.

نبی کریم ﷺ چه کله حدیبیه نه تشریف راوړو نو نبی کریم ﷺ دا اراده اوکړله چه شهان عالم ته د اسلام د طرفه د دعوت خطونه اولیکلې شي.نو دوی ته اووئیلې شو چه د بادشاهانو دستور دا دې.چه هغوی د مهر نه بغیر خط نه لولي.نو نبی کریم ﷺ د سپینو زرو یو مهر جوړ کړو.چه په هغې باندې ،،محمد رسول الله،، نقش کړې شوی وو دارقطنی رحمه الله په ،،الافراد،، کښې یو روایت نقل کړې دې.د هغې نه معلومیږی چه مهر جوړونکې یعلی بن امیه رضی الله عنه وو.(۱)

**د نبی کریم ﷺ ګتمه او د هغې نقش** په روایت کښې خو دا دی.چه ((وکان نقش الخاتم ثلاثة أسطر، محمد سطر، و رسول سطر، والله سطر))(۲) ددې نه خو دا ښکاره کیږی چه د ټولو نه پورتنی سطر (لکیره) باندې ،،محمد،، په دویم سطر باندې ،،رسول،، او په دریم سطر باندې لفظ الجلالة ،،الله،، وو.خو بعضو حضراتو ذکر کړې دی.چه دا سطرونه د لاندې طرف نه شروع کیږی.یعنی د ټولو نه لاندې سطر کښې ،،محمد،، په مینځ نی سطر کښې ،،رسول،، او د ټولو نه پورتنی سطر کښې لفظ الجلالة ،،الله،، وو.(۳) د نبی کریم ﷺ د کومو خطونو مبارکو عکس چه شائع کیږی.د هغې نه ددې خبرې تائید کیږی.والله اعلم.

**د روایت باب مقصد** امام بخاری رحمه الله دا روایت دلته ددې دپاره ذکر کړې دې چه دا معلومه شي.چه عمل بالمکاتبه دپاره شرط دا دې.چه کتاب مختوم وی.(مهر پرې لګیدلې وی) چه د تغیر او تبدیلۍ خطره نه وی.البته که چرته داسې صورت وی.چه هلته د تغیر او تبدل هیڅ خطره نه وی.مثلاً خط رسونکې امانت دار، دیانت دار، او معتبر وی نو بیا مهر لګول څه ضروری نه دی.(۴)

**فائده** بعضو حضراتو په دې خبره باندې جزم کړې دې چه نبی کریم ﷺ ګتمه په ٦هـ کښې جوړه کړې وه.حالانکه ابن سید الناس جزم سره ۷هـ لیکلې دې.په دواړو اقوالو کښې تطبیق په دې طریقه کیدې شي.چه دا واقعه د ٦هـ د آخر، او د ۷هـ د شروع ده.ځکه چه نبی کریم ﷺ خاتم هغه وخت جوړ کړې وو.کله ئې چه د عالم بادشاهانو سره د مکاتبت اراده کړې وه.او دا

---

(۱) فتح الباری(۳۲۸\۱۰) کتاب اللباس. باب قول النبی ﷺ لاینقش علی نقش خاتمه.)_

(۲) صحیح بخاری(۸۷۳\۲) کتاب اللباس ..باب هل یجعل نقش الخاتم ثلاثة اسطر. رقم(۵۸۷۸)_

(۳) فتح الباری(۳۲۹\۱۰) کتاب اللباس. باب هل یجعل نقش الخاتم ثلاثة أسطر.)_

(۴) فتح الباری(۱۵٦\۱)_

مکاتبت د صلح حدیبیه نه پس په موده د صلح کښې شوې وو.دا صلح په ذی قعده ۶ھ کښې شوې وه.او نبی کریم ﷺ په ذوالحجه کښې مدینې منورې ته تشریف راوړو.په محرم۷ھ کښې نبی کریم ﷺ خپل صحابه کرام مختلفو طرفونو ته اولیګل.ښکاره ده.چه نبی کریم ﷺ د خپلو صحابو لیکلو نه وړاندې خاتم جوړ کړې وو.(١) والله اعلم.

**قوله** فَقُلْتُ لِقَتَادَةَ مَنْ قَالَ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ قَالَ أَنَسٌ: ما د قتاده نه تپوس اوکړو.چه ،،نقشه محمد رسول الله،، د چا قول دې؟ دوی اووئیل.چه دا حضرت انس ﷺ وئیلی وو.

د ،،قلت،، قائل امام شعبه ﷫ دې.

**د مذکوره عبارت مقصد:** ددې مقصد ممکن ده.چه دا وی.چه امام قتاده چونکه مدلس دې.او هغه دلته ،،عنعنه،، سره روایت کوی.په دې وجه امام شعبه ﷫ د هغوی نه تصدیق اوکړو.چه د روایت آخیره حصه ،،نقشه محمد رسول الله،، هم د حضرت انس ﷺ نه اوریدلې شوې دې.

خو په دې باندې دا اشکال دې.چه هغه ،،عنعنه،، په پوره روایت کښې کوی.نو صرف د آخری حصې په باره کښې د تصریح کولو به څه معنی وی؟

نو ددې مقصد دا وئیلې کیدې شی.چه ،،نقشه محمد رسول الله،، چونکه یوه مستقل جمله ده.چه دا ماقبل سره هم متعلق کیدې شی.په دې صورت کښې به دا جمله د روایت جزء وی.او دا احتمال هم وو.چه دا مستقل جمله وی.او ماقبل سره د جزء کیدو په حیثیت سره مرتبط نه وی.په داسې صورت کښې به دا د حضرت انس ﷺ بیان کړې شوې قول نه وی.د امام شعبه ﷫ د سوال مقصد هم دا تصریح کول وو.چه آیا دا د حضرت انس ﷺ د روایت جزء او ددې تتمه ده؟ اوکه د بل چا قول دې.او ددې روایت جزء نه دې؟ والله اعلم.

**فائده:** حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی.چه امام بخاری ﷫ دلته دهغې اجازت ذکر اونکړو.کوم چه د مناوله یا مکاتبه نه مجرد وی.دغه شان وجاده، وصیت، اعلام، کوم چه د اجازت نه مجرد وی.ددې ئې هم ذکر اونکړو.ګویا چه دوی د تحمل ددې اقسامو قائل نه دی.(٢)

بیا ابن منده ﷫ دا دعوه کړې ده.چه کوم ځائې امام بخاری ﷫ ،،قال لی،، اوفرمائی.هغه په ،،اجازت،، باندې محمول دې.

حافظ ﷫ فرمائی.دا دعوه صحیح نه ده.ځکه چه د ډیرو ځایونو د تتبع او تحقیق نه دا معلومیږی.چه امام بخاری ﷫ ډیر کرته پخپل صحیح کښې ،،قال لی،، فرمائی.حالانکه دا په نورو کتابونو کښې ،،حدثنا،، سره تعبیر کوی.حالانکه امام بخاری ﷫ ،،اجازت،، سره حاصل شوو روایاتو باندې د ،،تحدیث،، د اطلاق قائل نه دې.معلومه شوه.چه د

---

(١) فتح الباری(١٠/٣٢٥) کتاب اللّباس، باب إتخاذ الخاتم لیختم به الشئ....)_
(٢) فتح الباری(١/١٥٦)_

..قال نى.. والا روايات ددوى په نيز د مسموع (اوريدلو شوو) رواياتو خنې دى.البته ددې صيغې استعمال هغه د فرق ښكاره كولو دپاره كوى حه دا ددوى د شرط مطابق نه دې.او د تحديث والا روايات ددوى په شرط باندې پوره وى.[1] والله اعلم

وړاندې د ،،باب قول المحدث.....،، لاندې د ،،طرق د تحمل حديث.. عنوان لاندې مونږ دا بحث تفصيل سره ذكر كړې دې.،،فارجع إليه إن شئت،،_

## ٨-بَابُ مَنْ قَعَدَ حَيْثُ يَنْتَهِي بِهِ الْمَجْلِسُ وَمَنْ رَأَى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيهَا

**د علم په مجلس كښې د كيناستلو طريقه او ادب:** امام بخارى رحمه الله په مجلس د علم كښې د كيناستلو طريقه او ادب بيانوى.كه يو سړى راشى.او په مجلس كښې خانې وى.ګنجائش موجود وى.نو دغه خانې كښې دې كينى.يا كوم خانې چه مجلس ختميږى.هلته دې كينى دواړه صورتونه جائز دى.د نبى كريم ﷺ په وړاندې دواړه صورتونه راپيښ شوى دى.بيا به په دې كښې كوم صورت ته ترجيح حاصل وى.په ښكاره امام بخارى رحمه الله هيڅ ترجيح نه ده وركړې.ګويا چه هغه د دواړو صورتونو د مساوات قائل دې.

**ما قبل سره مناسبت:** حافظ قطب الدين حلبى رحمه الله دلته يو اعتراض كړې دې.د هغې حاصل دا دې چه امام بخارى رحمه الله كوم تراجم منعقد كړى دى.هغه درې قسمه دى.په بعضو كښې ئې د عالم آداب بيان كړى دى.لكه «باب من رفع صوته بالعلم»، «باب طرح الإمام المسألة على أصحابه» او په بعضو كښې دوى آداب د متعلم بيان كړى دى.لكه مذكوره باب چه دې.او په بعضو كښې دوى طريقه د تعلم او علم حاصلولو ذكركړې ده.لكه «باب القراءة والعرض على المحدث» او «باب ما يذكر في المناولة» وغيره.

علامه قطب الدين حلبى رحمه الله فرمائى.چه دا باب يا خو د «باب من رفع صوته بالعلم» نه پس كيدل پكار دې.او يا د «باب طرح الإمام المسألة.....» نه پس، چه آداب عالم سره آداب متعلم هم مذكور شى.دلته كښې ئې دا بې موقعه (او بې محله) ذكركړې دې.[2]

علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه ددې باب نه وړاندې د ،،مناوله،، ذكر راغلى دې.كوم چه په مجلس دعلم كښې كيږى.نو په مجلس كښې د كيناستلو طريقه ئې اوخودله.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه تر اوسه پورې څومره ابواب هم ذكركړې شوى دى.د هغې ټولو تعلق عالم سره دې.نو اوس مصنف د متعلم ابواب شروع كوى.[4] او په واقع كښې هم

---

[1] فتح البارى(١٥٦/١)_
[2] عمدة القارى(٣١/٢)_
[3] عمدة القارى(٣١/٢)_
[4] فتح البارى(١٥٦/١)_

دغه شان کیږی.اوګوری، آواز عالم پورته کوی.د امتحان په طور باندې د مسئلو تپوس عالم کوی.هم هغه ،،حدثنا، اخبرنا ،، وائی.او هم دده په وړاندې نې شاګرد ( متعلم) وائی. او هم هغه د مناوله په طریقه خپل روایات ورکوی.هم هغه چا دپاره خپل روایات لیکی. اوس چه کله ددې تولو نه فارغ شو.نو ادب الطالب نې بیان کړل.چه دې مجلس د درس ته راشی نو کوم خائې چه مجلس ختمیږی.هلته دې کینی.که په مینځ کښې چرته کلاو خائې او ګنجائش وی.نو هلته په کیناستلو کښې هیڅ باك نشته.والله اعلم.

## حديث باب

٦٣-((حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّ أَبَا مُرَّةَ مَوْلَى عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ أَخْبَرَهُ عَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ ([1])أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ وَالنَّاسُ مَعَهُ إِذْ أَقْبَلَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ فَأَقْبَلَ اثْنَانِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَهَبَ وَاحِدٌ قَالَ فَوَقَفَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَرَأَى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيهَا وَأَمَّا الْآخَرُ فَجَلَسَ خَلْفَهُمْ وَأَمَّا الثَّالِثُ فَأَدْبَرَ ذَاهِبًا فَلَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ عَنْ النَّفَرِ الثَّلَاثَةِ أَمَّا أَحَدُهُمْ فَأَوَى إِلَى اللَّهِ فَآوَاهُ اللَّهُ وَأَمَّا الْآخَرُ فَاسْتَحْيَا فَاسْتَحْيَا اللَّهُ مِنْهُ وَأَمَّا الْآخَرُ فَأَعْرَضَ فَأَعْرَضَ اللَّهُ عَنْهُ)[٦٣]

## رجال الحديث

① اسماعيل: دا اسماعیل بن ابی اویس رحمه الله دې.ددوی حالات د کتاب الایمان ((باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال)) لاندې تیر شوی دی.([2])

② مالك: د امام مالك بن انس رحمه الله حالات دکتاب الایمان ((باب من الدين الفرار من الفتن)) لاندې تیر شوی دی.([3])

③ اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه: دا اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه انصاری نجاری مدنی رحمه الله دې.د ابوطلحه نوم زید بن سهل دې.دا د حضرت انس رضي الله عنه وراره دې.څکه چه عبدالله بن ابی طلحه د حضرت انس رضي الله عنه مور شریك رور دې.([4])

---

[1] )قوله:..عن أبي واقد الليثي.. الحديث أخرجه البخاري أيضاً في صحيحه. (٦٨/١) في كتاب الصلاة، باب الحلق والجلوس في المسجد. رقم(٤٧٤) ومسلم في صحيحه (٢١٧/٢) كتاب السّلام، باب من أتى مجلساً فوجد فرجة فجلس فيها و إلا وراءهم. والترمذي في جامعه. في كتاب الإستيذان، باب ( بدون ترجمة. بعد باب ماجاء كراهية أن يقول: عليك السلام) رقم(٢٧٢٤) و أحمد في مسنده(٢١٩/٥)_

[2] ) كشف الباري(١١٣/٢)_

[3] ) كشف الباري(٨٠/٢)_

[4] ) تهذيب الكمال(٤٤٤/٢)_

ددوى كنيت ابويحى يا ابو نجيح دې.(١)
دوى د خپل پلار عبدالله بن ابى طلحه، د خپل تره حضرت انس، د ذكوان ابوصالح السمان، عبدالرحمن بن ابى عمرة، ابومره مولى د عقيل بن ابى طالب او ابوالمنذر مولى د ابى ذر رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.
ددوى نه حماد بن سلمه، سفيان بن عيينه، امام اوزاعى، يحى بن ابى كثير، يحى بن سعيدانصارى، عبدالملك بن عبدالعزيزبن جريج اوعكرمه بن عمار رحمهم الله غيره روايت كوى(٢)

امام يحى بن معين رحمه الله فرمائى.((ثقة حجة))(٣)

امام ابوزرعه، امام ابوحاتم، او امام نسائى رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(٤)

امام ابن سعد رحمه الله فرمائى.((وكان ثقة كثير الحديث))(٥)

ابن حبان رحمه الله فرمائى.((وكان مقدما فى رواية الحديث والإتقان فيه))(٦)

امام عجلى رحمه الله فرمائى.((مدنى بصرى تابعى ثقة))(٧)

په ۱۳۲ھ يا ددې نه روستو وفات شوې دې.(٨) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

④ ابومرة مولى د عقيل بن ابى طالب: ددوى نوم يزيد دې.د ابومره كنيت سره مشهور دې.(٩) بعضو حضراتو ددوى نوم عبدالرحمن بيان كړې دې.(١٠) واقدى رحمه الله فرمائى.چه دې په اصل كښې د ام هانى رضى الله عنها مولى وو.خو چونكه هر وخت به د عقيل بن ابى طالب رضى الله عنه په صحبت كښې اوسيدو.په دې وجه ،،مولى د عقيل،، مشهور شو.(١١)
دوى د حضرت عقيل، عمرو بن العاص، مغيره بن شعبه، ابوالدرداء، ابوهريره، ابو واقد ليثى او ام هانى رضى الله عنهم نه روايت د حديث كړې دې.او د حضرت زبير بن العوام رضى الله عنه زيارت ئې هم كړې دې.
ددوى نه په روايت كونكوكښې ابراهيم بن عبدالله بن حنين، اسحاق بن عبدالله بن ابى

---

(١) تهذيب التهذيب(١١\٢٤٠)_
(٢) د شيوخ او تلامذه تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(١٢\٤٤٤، ٤٤٥)_
(٣) تهذيب الكمال(١٢\٤٤٥)_
(٤) المصدر السابق)_
(٥) المصدر السابق)_
(٦) الثقات لابن حبان(٤\٢٣)_
(٧) تعليقات تهذيب الكمال(١٢\٤٤٦) نقلاً عن الثقات للعجلى الورقة: ٤)_
(٨) تقريب التهذيب(ص١٠١).رقم(٣٦٧)_
(٩) تهذيب الكمال(٣٢\٢٩٠) وتقريب التهذيب(ص٦٠٦) رقم(٧٧٩٧)_
(١٠) تقريب التهذيب(ص٦٧٢) الكنى.)_
(١١) الطبقات لابن سعد(٥\١٧٧)_

طلحه، زید بن اسلم، سالم ابو النضر، سعید مقبری، ابو حازم، وهب بن کیسان، او یزید بن عبدالله بن الهاد ﷫ وغیره حضرات دی.[1]

امام ابن سعد ﷫ فرمائی: «وکان ثقة قلیل الحدیث».[2]

امام عجلي ﷫ فرمائی: «مدني تابعي ثقة».[3]

ابن حبان ﷫ دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.[4]

حافظ ذهبي او حافظ ابن حجر رحمهما الله دوی لره ،،ثقه،، ګرځولې دې.[5] ،، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،۔

⑤ ابو واقد اللیثي: حضرت ابو واقد لیثي ﷛ د مشهورو صحابه کرامو ﷡ څخه دې. ددوی د نوم په باره کښې اختلاف دې. حارث بن مالك، حارث بن عوف، او عوف بن الحارث دا درې اقواله ملاویږي. پخپل کنیت ،،ابو واقد،، سره مشهور دې.[6]

امام بخاري، ابن حبان، باوردي، ابو احمد الحاکم ﷫ دوی لره په اصحاب بدر کښې شمار کړې دې. حالانکه ابو عمر ﷫ انکار کړې دې. بعضې حضرات فرمائی چه دې د فتح مکې په موقعه مسلمان شو. او نور حضرات فرمائی چه دې قدیم الاسلام دې.[7]

دوی د نبی کریم ﷺ نه علاوه د حضرت ابو بکر او حضرت عمر ﷠ نه هم روایت کوی.[8] ددوی نه په روایت کونکو کښې سعید بن المسیب، سلیمان بن یسار، سنان بن ابی سنان لدؤلي، عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود، واقد بن ابی واقد، عبدالملك بن ابی واقد عروة بن الزبیر، عطاء بن یسار، موسی بن طلحه بن عبیدالله او ابومرة مولی عقیل ﷫ دی. بلکه وئیلې شی چه حضرت ابوسعید خدري ﷛ هم ددوی نه روایت کړې دې.[9]

ددوی نه ټول څلیریشت حدیثونه نقل دی. یو حدیث متفق علیه دې. او په یو حدیث کښې امام مسلم متفرد دې.[10] په ۶۸هـ کښې ددوی وفات شوې دې. او د صحیح قول مطابق ددوی عمر ۸۵ کاله وو.[11] والله اعلم.

---

[1] د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال(۳۲\۲۹۰)۔
[2] الطبقات(۵\۱۷۷)۔
[3] تهذیب التهذیب(۱۱\۳۷۵)۔
[4] الثقات(۵\۵۶۱)۔
[5] الکاشف(۲\۳۹۳) رقم(۶۳۷۲) وتقریب التهذیب(ص۶۰۶) رقم(۷۷۹۷)۔
[6] الإصابة(۴\۲۱۵) والإستیعاب بهامش الإصابة(۴\۲۱۵) وتهذیب الکمال(۳۴\۳۸۶)۔
[7] الإصابة(۴\۲۱۵)۔
[8] تهذیب الکمال(۳۴\۳۸۶)۔
[9] المصدر السابق)۔
[10] خلاصة الخزرجي(ص۴۶۲)۔
[11] تقریب التهذیب(ص۲۸۲) رقم(۸۴۳۳)۔

**قوله** أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ وَالنَّاسُ مَعَهُ إِذْ أَقْبَلَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ فَأَقْبَلَ اثْنَانِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَهَبَ وَاحِدٌ:
نبی کریم ﷺ یوځل په جمات کښې تشریف فرما وو او خلق ددوی سره وو په دې کښې درې سړی بهر تیریدل دوه خو په دوی کښې نبی کریم ﷺ ته راغلل او یو لاړلو.

**د حدیث باب مطلب** په «أقبل ثلاثة نفر فأقبل اثنان» کښې په ښکاره دا اشکال کیږی چه کله درې سړی په شروع کښې راغلل نو بیا د دوو سړو د راتلو څه مطلب دې؟ نو د اشکال جواب طرف ته مونږ په ترجمه کولو کښې اشاره کړې ده چه دا د «أقبل ثلاثة نفر يمرون فأقبل اثنان منهم إلى رسول الله ﷺ» په معنی کښې دې ګویا رومبی ځائې کښې د ،،أقبل،، معنی ده. چه دوی تیریدل، نو متوجه شو او په دویم ځائې کښې د ،،أقبل،، معنی ده چه مجلس مبارک طرف ته متوجه شو.(۱)
دا هم داسې ده لکه چه یو سړې ناست وی او مخامخ څه خلق راروان وی. نو د لرې نه به دا په خیال کښې راځی چه خلق دلته راروان دی په هغوی کښې که دوه څلور دلته راشی او باقی لاړ شی نو څوك ویونکې به وائی چه دا جماعت دلته متوجه شو درې خو مجلس ته راغلل او باقی لاړل.
بیا د ،،نفر،، اطلاق د دریو نه واخله لسو سړو پورې کیږی دلته د ،،أقبل ثلاثة نفر،، مطلب دا دې چه «أقبل ثلاثة رجال هم نفر»،(۲)
بیا ،،نفر،، چونکه اسم جمع ده په دې وجه ،،ثلاثة،، دپاره تمیز جوړیدل صحیح دی چه دا د جمعې تقاضا کوی.(۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ماته ددې دریو وارو حضراتو نومونه چرته ملاو نشو.(۴)

**قوله** قَالَ فَوَقَفَا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
راوی فرمائی چه دوی دواړه د رسول الله ﷺ مجلس مبارك سره اودریدل.

**قوله** فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَرَأَى فُرْجَةً فِي الْحَلْقَةِ فَجَلَسَ فِيهَا وَأَمَّا الْآخَرُ فَجَلَسَ خَلْفَهُمْ وَأَمَّا الثَّالِثُ فَأَدْبَرَ ذَاهِبًا: په دوی کښې یو کس معمولی شان خالی ځائې په حلقه

---
(۱) فتح الباری(۱/۱۵۶)_
(۲) المصدر السابق)_
(۳) المصدر السابق)_
(۴) فتح الباری(۱/۱۵۷)_

(مجمع) کښې اوکتلو نوهغه هلته کيناستلو. دويم سړي د خلقو شاته کيناستلو. او دريم، نو هغه شا اوګرځوله. او لاړلو. امام بخاری رحمه الله ددې ځائې نه خپله ترجمه اخستې ده.

**قوله**: فَلَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلاَ أُخْبِرُكُمْ عَنِ النَّفَرِ الثَّلاَثَةِ أَمَّا أَحَدُهُمْ فَأَوَى إِلَى اللَّهِ فَآوَاهُ اللَّهُ وَأَمَّا الآخَرُ فَاسْتَحْيَا فَاسْتَحْيَا اللَّهُ مِنْهُ وَأَمَّا الآخَرُ فَأَعْرَضَ فَأَعْرَضَ اللَّهُ عَنْهُ: بيا چه کله رسول الله ﷺ فارغ شو. نو ارشاد ئې اوفرمائيلو. زه تاسو ته د دريو واړو د حالاتو خبر درنکړم؟ يو د الله تعالى نه پناه اوغوښتله. هغه ته الله تعالى پناه ورکړله. دويم سړي ته حيا راغله. نوالله تعالى هم دهغه نه حيا اوکړله. دريم سړي اعراض اوکړو. نو الله تعالى هم دهغه نه اعراض اوکړو.

،،أوى،، په رومبى ځائې کښې د مجرد ځنې دې. او په دويم ځائې کښې د مزيد ځنې دې: ،،أوى يأوى،، معنى د پناه اخستلو ده. او د ،،أوى،، معنى د ځائې ورکولو او اوسولو ده.

د ((فأوى إلى الله فآواه الله)) مطلب دا دې. چه کوم سړې د الله او د الله تعالى د رسول ﷺ مجلس طرف ته ننوتلو شو. الله تعالى هغه ته د رحمت پخپله لمنه کښې ځائې ورکړو. او خپله رضا ئې ورکړله.(١)

**قوله**: وَأَمَّا الآخَرُ فَاسْتَحْيَا:

**د استحياء دوه معانې**: ① مشهوره معنى خو ((استحياء من المزاحمة)) کړې شوې ده. يعنى په مجلس کښې د داخليدو، او مزاحمت کولو نه هغه ته شرم راغې. په دې وجه شاته کيناستلو. او د تخطى رقاب ( په اوګو اوختلو) نه ئې ځان اوساتلو.(٢)

② دويمه معنى د ((استحياء من الذهاب من مجلس رسول الله ﷺ)) کړې شوې ده.(٣) لکه چه دامام حاکم رحمه الله په روايت کښې استحياء طرف ته اشاره ده. ((ومضى الثاني قليلا ثم جاء فجلس))(٤) يعنى دويم کس هم د دريم سړى پشان روان شوې وو. خو بيا د تللو نه اوشرميدو. او راواپس شو. او کيناستلو.

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه رومبۍ معنى يعنى که ((استحياء من المزاحمة)) واخستلې شى. نو د دويم سړى مرتبه به د رومبى سړى نه اوچته وى. کوم چه وړاندې لاړلو. او کيناستلو. او د دويم احتمال يعنى د ((استحياء من الذهاب))په صورت کښې به د رومبى سړى

---

(١) فتح البارى(١٥٧\١)_
(٢) فتح البارى(١٥٧\١)_
(٣) المصدر السابق)_
(٤) المصدر السابق)_

نه خو ادنى مرتبه وى.البته د دريم سړى نه به اعلى وى.كوم چه دسره په مجلس كښې ناست هم نه دې بلكه لاړلو.([1])

**د حضرت شاه ولى الله رحمه الله لطيف توجيه** حضرت شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه دا جمله د مدح او ذم دواړو احتمال لرى.كه ددې معنى «استحياء من تخطي الرقاب والمزاحمة» وى.نو دا په مدح باندې دلالت كوى.او كه ددې معنى «استحياء من أخذ العلم» وى.نو دا په مذمت باندې دلالت كوى.([2])

حضرت شاه ولى الله رحمه الله چه كومه رومبئ معنى بيان كړې ده.دا خو هغه معنى ده.كومه چه مونږ په رومبى نمبر كښې بيان كړې ده.خو دويمه معنى كومه چه شاه صاحب بيان كړې ده.دا هيڅ يو شارح نه ده ذكر كړې.ګويا دا ددې جملې يوه دريمه معنى شوه.والله اعلم.

**قوله: فَاسْتَحْيَا اللّٰهُ مِنْهُ:** الله تعالى دهغه نه حياء اوكړله.يعنى دهغه په حياء باندې الله تعالى هغه ته بدله وركړله.چه دهغه د مزاحمت نه كولو په وجه نې هغه باندې رحم او كرم اوكړو. دده معمولى شان تلل ئې معاف كړل.او په دې باندې ئې مؤاخذه (ګرفت) اونه فرمائيلو.([3])

**قوله: وَأَمَّا الآخَرُ فَأَعْرَضَ فَأَعْرَضَ اللّٰهُ عَنْهُ:** دريم سړى اعراض اوكړو.نو الله تعالى هم هغه سره د اعراض معامله اوفرمائيله.يعنى دهغه په اعراض كولو باندې الله تعالى د هغه نه ناراضه شو.

**دا جمله خبريه ده او كه دعائيه؟** دا جمله اخباريه ده او كه دعائيه ده.دواړه احتمالات شته.([4]) اقرب دا ده.چه اخباريه وى.د قاضى عياض رجحان هم دې طرف ته دې.([5]) خكه چه د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې.«فاستغنى فاستغنى الله عنه»([6]) يعنى هغه استغناء ښكاره كړله.نو الله ﷻ هم دهغه نه استغناء اوكړله.

امام نووى رحمه الله فرمائى.په ښكاره دا سړې د نبى كريم ﷺ د مجلس نه د عذر نه بغير تلې وو.([7]) ګنى معذورى داسې څيز دې.چه دا د خير جالب (او راوستونكې) دې.ددې په وجه مؤاخذه نه كيږى.

خو ددې توجيه ضرورت هغه وخت دې.كله چه دريم سړې مؤمن وى.حالانكه دا عين ممكن

---

[1] أوجز المسالك(۱۱٤\۱۵) جامع السلام.ـ
[2] رساله شرح تراجم ابواب البخارى مطبوعه مع صحيح بخارى(۱۵\۱)ـ
[3] فتح البارى(۱۵۷\۱)و شرح نووى(۲۱۷\۲)ـ
[4] أوجز المسالك(۱۱۵\۱۵) وفتح البارى(۱۵۷\۱)ـ
[5] إكمال إكمال المعلم للأبى(٤٤٣\۵)ـ
[6] فتح البارى(۱۵۷\۱)ـ
[7] شرح نووى((۲۱۷\۲) كتاب السلام، باب من أتى مجلساً فوجد فرجة فجلس فيها و إلا وراءهم)ـ

ده.چه هغه منافق وی.حافظ ابن عبدالبر رحمه الله هم دا اختيار کړې دې.هغه فرمائي.چه د نبي کريم ﷺ د مجلس نه صرف منافق اعراض کولې شی.(۱) والله اعلم.

## ۹-((بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعَى مِنْ سَامِعٍ))[ر: ۱۶۵۴]

**ما قبل باب سره مناسبت** د مذکوره باب او تيرشوی باب په مينځ کښې مناسبت دا دې.چه په دې باب کښې د ،،مبلَّغ،، (بفتح اللام) حال مذکور دې.او په تير شوی باب کښې په حلقه کښې د کيناستونکی حال ذکر دې.چه دا منجمله مبلغين دې.ځکه چه د نبی کريم ﷺ حلقات (او مجالس) چه هغه به ځنګه د علوم او ددې د ښودلو په امر باندې مشتمل وو.هلته به غائبينو پورې د تبليغ مکلف هم جوړيدې شو.(۲)

**په ترجمة الباب کښې د مذکوره تعليق تخريج:** په ترجمة الباب کښې د ذکرشوی معلق حديث ((رب مبلغ أوعى من سامع)) تخريج پخپله امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې ،،بالمعنى،،او روستو ئې په کتاب الحج ((باب الخطبة أيام منى)) کښې ،،بلفظه،، کړې دې (۳) حافظ قطب الدين حلبی رحمه الله او ددوی اتباع کونکو بعضو شارحينو د دې حديث د تخريج نسبت، ترمذی شريف کښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حديث طرف ته کړې دې.(۴) چه ددې نه دا وضاحت معلوميږی.چه امام بخاری رحمه الله ددې تخريج نه دې کړې.حالانکه لکه ځنګه چه اوس تيرشو.امام بخاری رحمه الله پخپل صحيح کښې پخپله ددې تخريج کړې دې.نو ددې حواله ورکول پکار وو.

**د ترجمة الباب مقصد** حافظ قطب الدين حلبی رحمه الله فرمائيلی دی.چه ددې باب مقصد په دې خبره باندې تنبيه ده.که حديث لوستونکې غير عارف او غير محقق وی.خو کوم څه چه هغه بيانوی.هغه محفوظ وی.نو د هغه حديث هم اخستلې کيدې شی.(۵)

حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی.چه په دې باب سره د هغه باب ردکول مقصود دی.کوم چه مشهور دې.چه شاګرد د استاذ نه په علم کښې کمتر وی.(۶)

حضرت شيخ الحديث مولانا زکريا صاحب رحمه الله فرمائی.چه د امام بخاری رحمه الله غرض ددې باب نه ددې خبرې ترغيب ورکول دی.چه د ځان نه د کمتر نه هم دعلم حاصلولو اهتمام کول

---

(۱) شرح الزرقانی علی مؤطا الإمام مالک (۳۶۰/٤) جام السلام. رقم(۱۸۵۷)_
(۲) عمدة القاری(۳٤/۲)_
(۳) صحيح بخاری(۲۳۵/۱) کتاب الحج. باب الخطبة أيام منى. رقم(۱۷٤۱)_
(۴) جامع ترمذی.کتاب العلم. باب ماجاء فی الحثّ علی تبليغ السماع. رقم(۲۶۵۷)_
(۵) عمدة القاری(۳٤/۲)_
(۶) لامع الدراری(۱۷/۲)_

پكار دى.(۱) خكه چه نبى كريم ﷺ فرمائى.((رب مبلغ أوعى من سامع)) د بعضو بغير واسطې اوريدونكو خلقو په مقابله كښې په واسطې سره اوريدونكى ،،أوعى،، يعنى ،،أحفظ،، او ،،أفهم،، وى.

امام وكيع او سفيان بن عيينه رحمهما الله فرمائى.((إنه لا ينبل المحدث حتى يكتب عمن هو فوقه و مثله ودونه))(۲)

**د امام بخاري رحمه الله د رباعياتو حيثيت** د حضرت امام بخارى رحمه الله نه چه كوم رباعيات نقل كولې شى.(۳) هغې كښې هم دا مضمون وارد دى.دا رباعيات اګرچه امام سيوطى رحمه الله بغير دخه تنقيد(او جرحې) نه ذكركړى دى.(۴) خو د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه دا ثابت نه دى.(۵) والله اعلم.

## حديث باب

۶۷- ((حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا بِشْرٌ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ(۱) ذَكَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَعَدَ عَلَى بَعِيرِهِ وَأَمْسَكَ

---

(۱) الأبواب والتراجم(ص ۴۱)_

(۲) الجامع لأخلاق الراوى و آداب السامع للخطيب(۳۷۳) رقم(۱۶۶۵، ۱۶۶۶) الكتابة عن الأقران. و(ص ۳۷۴) رقم(۱۶۷۲) كتابة الأكابر عن الأصاغر. ومقدمة ابن الصلاح(ص۲۴۸، ۲۴۹) النوع الثامن والعشرون معرفة آداب طالب الحديث، وفتح المغيث للعراقى(ص ۳۰۰) وفتح المغيث للسخاوى(۲۹۶\۳) و تدريب الراوى(۱۴۷\۲، ۱۴۸)_

(۳) دا رباعيات دادي: واعلم أن الرجل لا يصير محدثا كاملاً فى حديثه إلا بعدأن يكتب أربعاً مع أربع. كأربع مثل أربع، فى أربع، عند أربع، بأربع ، على أربع، عن أربع، لأربع. و كلّ هذه الرباعيات لاتتم إلا بأربع. مع أربع. فإذا تمت له كلها، هان عليه أربع، وابتلى بأربع . فإذا صبر على ذالك أكرمه الله فى الدنيا بأربع .و أثابه فى الآخرة بأربع.. اوګورئ: تدريب الراوى((۱۵۷\۲) آخر النوع الثامن والعشرين معرفة آداب طالب الحديث، و مقدمة أوجز المسالک(ص۱۲۹)_

(۴) اوس وړاندې حواله تيره شوې ده.)_

(۵) مقدمة أوجز المسالک(ص ۱۳۰)_

(۱)قوله ..عن أبيه..ألحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه (۲۱\۱) فى كتاب العلم. باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب. رقم(۱۰۵) وفى (۲۳۵\۱، ۲۳۵) كتاب الحج، باب الخطبة أيام منى. رقم(۱۷۴۱) وفى(۴۵۳\۱، ۴۵۴) كتاب بدء الخلق، باب ماجاء فى سبع أرضين. رقم(۳۱۹۷) وفى (۶۳۲\۲) كتاب المغازى، باب حجة الوداع، رقم(۴۴۰۶)وفى (۶۷۲\۲) كتاب التفسير. سورة براء، باب: إن عدة الشهور عندالله اثنا عشر شهراً فى كتاب الله..... رقم(۴۶۶۲) وفى(۸۳۲\۲) كتاب الأضاحى، باب من قال: ألأضحى يوم النحر. رقم(۵۵۵۰) وفى(۱۰۴۸\۲) كتاب الفتن باب قول النبى ﷺ لا ترجعوا بعدى كفاراً يضرب بعضكم رقاب بعض.رقم(۷۰۷۸). وفى(۱۱۰۹\۲) كتاب التوحيد، باب [بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

إِنْسَانٌ بِخِطَامِهِ أَوْ بِزِمَامِهِ قَالَ أَيُّ يَوْمٍ هٰذَا فَسَكَتْنَا حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ سِوَى اسْمِهِ قَالَ أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَأَيُّ شَهْرٍ هٰذَا فَسَكَتْنَا حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ فَقَالَ أَلَيْسَ بِذِي الْحِجَّةِ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ وَأَعْرَاضَكُمْ بَيْنَكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِي شَهْرِكُمْ هٰذَا فِي بَلَدِكُمْ هٰذَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَإِنَّ الشَّاهِدَ عَسَى أَنْ يُبَلِّغَ مَنْ هُوَ أَوْعَى لَهُ مِنْهُ)) [۱۰۵، ۱٦۵٤، ۳۰۲۵، ٤۱٤٤، ٤٣٨٥، ۵۲۳۰، ٦٦٦۷، ۷۰۰۹]

## رجال الحديث

① مسدد: دا مشهور امام حديث مسدد بن مسرهد اسدى رحمه الله دى. ددوى مختصر حالات د كتاب الايمان «باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه» لاندې تير شوى دى. (۱)

② بشر: دا بشر بن المفضل بن لاحق رقاشى بصرى رحمه الله دې. ددوى كنيت ابو اسماعيل دې. (۲)

دوى د اسماعيل بن اميه، حميد الطويل، خالد الحذاء، سعيد بن ابى عروبه، سلمه بن علقمه، سهيل بن ابى صالح، شعبه بن الحجاج، عاصم بن كليب، عبدالله بن عون، يحي بن سعيد انصارى، هشام دستوائى، محمد بن المنكدر، قرة بن خالد او يونس بن عبيد رحمهم الله وغيره نه د حديثو سماع كړې ده.

ددوى نه روايت كونكو كښې امام احمد بن حنبل، اسحاق بن راهويه، حميد بن مسعده، عبيدالله بن عمر القواريرى، عثمان بن ابى شيبه، عفان بن مسلم، على بن المدينى، عمرو بن على، مسدد بن مسرهد، نصر بن على جهضمى، ابو الوليد هشام بن عبدالملك طيالسى. او يعقوب بن ابراهيم دورقى رحمهم الله وغيره دى. (۳)

امام احمد رحمه الله فرمائى. «إليه المنتهى في التثبت في البصرة» (٤)

د امام يحي بن معين رحمه الله نه تپوس اوكړې شو. «من أثبت شيوخ البصريين؟» نو دوى د يو جماعت نوم واخستلو. په هغوى كښې ئې د بشر بن المفضل نوم هم واخستلو. (۵)

---

.....دتيرمخ بقيه حاشيه] قول الله تعالى: وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة. رقم(۷٤٤۷). ومسلم فى صحيحه (۲\۱۲، ٦۰، ٦۱) فى كتاب القسامة. باب تغليظ تحريم الدماء والأعراض والأموال. و أبوداؤد فى سننه فى كتاب المناسک. باب الأشهر الحرم. رقم(۱۹٤۷) و(۱۹٤۸). وابن ماجه فى سننه. فى المقدمة. باب من بلّغ علماً. رقم(۲۳۳)_

(۱) كشف البارى((۲\۲))_

(۲) تهذيب الكمال(۱٤\۱٤۷، ۱٤۸)_

(۳) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوگورئ: تهذيب الكمال(۱٤\۱٤۸-۱۵۰)_

(٤) [illegible] (۱٤\۱۵۰)

امام ابوزرعه، امام ابوحاتم او امام نسائی رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،(1)

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی «وكان ثقة كثير الحديث»(2)

امام ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.(3)

امام عجلی رحمه الله فرمائی «،،ثقة فقيه البدن»(4) ثبت فى الحديث،، حسن الحديث، صاحب سنة»(5)

امام بزار رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،(6)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی «وكان حجة»(7)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ثقة ثبت عابد»(8)

په ۱۸۷ھ کښې ددوی وفات اوشو.(9) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

③ ابن عون: دا عبدالله بن عون بن ارطبان مزنی بصری رحمه الله دې. ددوی کنیت ابوعون دې.( )

دوی دحضرت انس رضی الله عنه زیارت خو کړې دې البته ددوی نه ئې سماع ثابت نه ده.(11)

دوی د ابو وائل شقیق بن سلمه، شعبی، حسن بصری، محمد بن سیرین . قاسم بن محمد . ابراهیم نخعی، مجاهد ، سعید بن جبیر ، مکحول انس بن سیرین، رجاء بن حیوه او ابورجاء مولی د ابوقلابه رحمهم الله وغیره نه روایت د حدیث کوی.

---

1) المصدر السابق)_

2) طبقات ابن سعد(۲۹۰/۷)

3) الثقات لابن حبان( ۹۷/۶)_

4) قال الشيخ محمد عوامة نقلاً عن الشيخ العلامة عبدالله الغُمادي:،،كلمة، فقيه البدن، يقولها المحدثون. ويقول الأصوليون: ،،فقيه النفس،،و معناها: أن الشخص تمكن فى الفقه حتى اختلط بلحمه ودمه، وصار سجية فيه. ومراد المحدثين بها ترجيح الراوى الموصوف بها ولوكان أقل من الثقة، بحيث لو تعارضت رواية الصدوق الفقيه البدن مع رواية الثقة غيرالمتقن، قدّمت رواية الصدوق المذكور. أنظر دراسات بين يدى ،،الكاشف،،(۴۳/۱) الفاظ الجرح والتعديل فى ،،الكاشف،،)_

5) تهذيب التهذيب(۴۵۹/۱)_

6) المصدر السابق)_

7) الكاشف(۲۶۹/۱، ۲۷۰) رقم(۵۹۴)_

8) تقريب التهذيب( ص ۱۴۴) رقم(۷۰۳)_

9) تهذيب الكمال ( ۱۵/۱۴)_

10) تهذيب الكمال(۳۹۴/۱۵)_

11) تهذيب الكمال(۳۹۵/۱۵) وقال الذهبى فى السير(۳۶۴/۶) وما وجدّت له سماعاً من أنس بن مالك. ولا من صحابى. مع أنه ولد فى حياة ابن عباس وطبقته. وكان مع أنس بالبصرة. وقد ورد عنه أنه رأى أنساً وعليه عمامة خز،،)_

ددوى نه سفيان ثورى، شعبه بن الحجاج، عبدالله بن المبارك، نضربن شميل، اسماعيل بن عليه، يزيد بن هارون، اسحاق الارزق، ازهر السمان، ابوعاصم النبيل او امام اصمعى رحمهم الله روايت د حديث كوى.([1])

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى. «جمع لابن عون من الإسناد مالايجمع لأحد من أصحابه....»([2])

هشام بن حسان رحمه الله فرمائى. «حدثنى من لم ترعيناى مثله» او بيا دوى ابن عون طرف ته اشاره اوكړله.([3])

امام عبدالله بن المبارك رحمه الله فرمائى. «مارأيت أحداً ذكر لى قبل أن ألقاه، ثم لقيته إلا وهو على دون ما ذكرلى، إلا ابن عون، وحيوة، أو سفيان، فأما ابن عون فلوددت أنى لزمته حتى أموت أو يموت»([4])

عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى. «ماكان بالعراق أحدأعلم بالسنة منه»([5])

قره بن خالد رحمه الله فرمائى. «كنا نتعجب من ورع ابن سيرين فأنساناه ابن عون»([6])

عيسى بن يونس رحمه الله فرمائى. «كان أثبت من هشام يعنى ابن حسان»([7])

ابو حاتم رحمه الله فرمائى. «ثقة وهو أكبر من التيمى»([8])

ابن سعد رحمه الله فرمائى. «وكان ثقة كثير الحديث ورعاً»([9])

امام نسائى رحمه الله فرمائى. «ثقة مامون»([10]) او په يومقام كښې فرمائى. «ثقة ثبت»([11])

ابن حبان رحمه الله فرمائى. «كان عبدالله بن عون من سادات أهل زمانه عبادة، وفضلاً وورعاً، ونسكاً، وصلابة فى السنة، وشدة على أهل البدع»([12])

---

[1]) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال (۱۵\۳۹۵، ۳۹۷) وسير أعلام النبلاء (۶\۳۶۴، ۳۶۵)_

[2]) تهذيب الكمال(۱۵\۳۹۷)_

[3]) سير أعلام النبلاء(۶\۳۹۵)_

[4]) تهذيب الكمال(۱۵\۴۰۰)_

[5]) المصدر السابق)_

[6]) المصدر السابق)_

[7]) تهذيب التهذيب(۵\۳۴۸)_

[8]) المصدر السابق)_

[9]) طبقات ابن سعد( ۷\۲۶)_

[10]) تهذيب التهذيب(۵\۳۴۸)_

[11]) المصدر السابق)_

[12]) الثقات لابن حبان(۷\۳)_

امام بزار رحمه الله فرمائي: «وكان على غاية من التوقي»[1]
عثمان بن ابی شیبه رحمه الله فرمائي: «ثقة صحيح الكتاب»[2]
امام عجلي رحمه الله فرمائي: «ثقة رجل صالح»[3]
ددوی نه اصحابو د اصول سته روایات اخستي دي.[4]
په ۱۵۱ھ کښې دوی وفات شو.[5] «رحمه الله تعالى رحمة واسعة»_

④ ابن سيرين: دا امام محمد بن سيرين بصري رحمه الله دې. ددوی حالات د كتاب الايمان «باب اتباع الجنائز» لاندې تير شوی دی.[6]

⑤ عبدالرحمن بن ابی بکرة: دا د حضرت ابوبکره نفیع بن الحارث ثقفي رضي الله عنه خونې دې. ددوی کنیت ابوبحر یا ابوحاتم دې. دوی ته د «أول مولود ولد في الإسلام بالبصرة» اعزاز حاصل دې.[7]
دوی دحضرت عبدالله بن عمرو، حضرت علی، دخپل پلار حضرت ابوبکره، اشج عصری، او اسود بن سریع رضي الله عنهم نه روایت کوی.
ددوی نه ابوبشرجعفر بن ابی وحشیه، خالد الحذاء، عبدالله بن عون، عبدالملك بن عمير، قتاده، محمد بن سیرین، او یونس بن عبید رحمهم الله وغیره حضرات روایت د حدیث کوی.[8]
امام ابن سعد رحمه الله فرمائي: «وكان ثقة له أحاديث و رواية»[9]
امام عجلي رحمه الله فرمائي: «بصري تابعي ثقة»[10]
حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: «ولد زمن عمر، وكان ثقة كبير القدر مقرئاً عالماً»[11]
ابن حبان رحمه الله دوی لره په كتاب الثقات کښې ذکر کړې دې.[12]

---

[1] تهذيب التهذيب (۳٤۸\۵)_
[2] تهذيب التهذيب (۳٤۹\۵)_
[3] المصدر السابق)_
[4] پورته ذکرشوی کتب رجال.)_
[5] الكاشف (۵۸۲\۱) رقم (۲۸۹٦)_
[6] کشف الباری (٥٤٤\۲)_
[7] تهذيب الكمال (۵\۱۷) و سير أعلام النبلاء (۳۱۹\٤، ۳۲۱)_
[8] د شيوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګوره: تهذيب الكمال (۵\۱۷، ٦)_
[9] الطبقات لابن سعد ((۱۹۰\۷)_
[10] تهذيب التهذيب (۱٤۸\٦)_
[11] سير أعلام النبلاء (۳۲۱\٤)_
[12] الثقات لابن حبان (۷۷\۵)_

امام نووی رحمه الله فرمائی.((واتفقوا على توثيقه)).[۱]

په ۹۶ هـ کښې ددوی وفات اوشو.[۲]، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

⑥ **حضرت ابوبکره رضی الله عنه:** د حضرت ابوبکره رضی الله عنه حالات د کتاب الایمان ((باب وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا فأصلحوا بينهما)) لاندې تیر شوی دی.[۳]

**قوله ذَكَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَعَدَ عَلَى بَعِيرِهِ:** حضرت ابوبکره رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ذکر اوکړو چه دوی (صلی الله علیه وسلم) پخپل اوښ باندې ناست وو.

**په ،،ذکر،، کښې ضمیر کوم طرف ته راجع دې؟** په دې جمله کښې ،،ذکر،، کښې ضمیر مستتر حضرت ابوبکره رضی الله عنه طرف ته راجع دې.په بعضو نسخو کښې ددې نه وړاندې ،،قال،، هم شته.په دې کښې موجود ضمیر مستتر عبدالرحمن بن ابی بکره طرف ته راجع دې

**قوله وَأَمْسَكَ إِنْسَانٌ بِخِطَامِهِ أَوْ بِزِمَامِهِ:** او یو سړی د اوښ مهار یا پیزوان (د پوزې رسی) نیولې وه.

**د انسان نه څوک مراد دې؟** بعض حضرات فرمائی.چه ددې نه حضرت بلال رضی الله عنه مراد دې.ځکه چه د نسائی په روایت کښې حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی.((حججتُ في حجة النبي صلی الله علیه وسلم فرأيت بلالاً يقود بخطام راحلته.....)).[۴]

او بعضې حضرات فرمائی.چه دا عمرو بن خارجه وو.ځکه چه د سنن په روایت کښې: حضرت عمرو بن خارجه رضی الله عنه نه نقل دی.((كنتُ آخذاً بزمام ناقة النبي صلی الله علیه وسلم.....)).[۵]

---

[۱]) تهذيب الأسماء واللغات(۱۱\۲۹۵)_

[۲]) سير أعلام النبلاء(٤\۳۲۰)_

[۳]) كشف البارى(۲\۲۲۵)_

[۴]) سنن النسائى الصغرى(۲\٤۸، ٤۹) كتاب مناسک الحج، باب الركوب إلى الجمار و إستظلال المحرم، والسنن الكبرى(۲\٤۳٦) كتاب الحج، باب الركوب إلى الجمار واستظلال المحرم، رقم(٤۰٦٦)_

[۵]) قال الحافظ في الفتح(۱\۱۵۸) ،،وقد وقع في السنن من حديث عمرو بن خارجة قال: كنت آخذاً بزمام ناقة النبي صلی الله علیه وسلم إنتهى، فذكر بعض الخطبة، ولكنى لم أجد هذا اللفظ فيما رجعت إليه من المصادر فقد أخرج هذا الحديث النسائى فى سننه الصغرى(۲\۱۳۱) كتاب الوصايا، باب إبطال الوصية للوارث، وفى سننه الكبرى(٤\۱۰۷) كتاب الوصايا، باب إبطال الوصية للوارث، رقم(٦٤٦۸، ٦٤۷۰) والترمذى فى جامعه فى كتاب الوصايا، باب ما جاء لاوصية لوارث، رقم(۲۱۲۱) و إبن ماجه فى سننه، فى كتاب الوصايا، باب لاوصية لوارث، رقم(۲۷۱۲) والدارمى فى سننه، (۲\۵۱۱) فى كتاب الوصايا، باب الوصية للوارث، رقم(۳۲٦۰) وليس فى واحد من هذه المصادر اللفظ الذى نقله الحافظ عن ،،السنن،، نعم روى أحمد فى مسنده (٤\۱۷٦، وص۲۳۸) كنت آخذا بزمام ناقة رسول الله صلی الله علیه وسلم..... فكان ما قاله الحافظ، وقد وقع فى السنن...... سبق قلم، وقد كان يريد أن يكتب، وقد وقع فى مسند أحمد، والله اعلم)_

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه صحيح دا ده چه دا پخپله د حديث راوي يعني حضرت ابوبكره رضي الله عنه دي خكه چه د اسماعيلي په روايت كښې هم په دې حديث كښې تصريح موجود ده «خطب رسول الله ﷺ على راحلته يوم النحر، وأمسكت، إما قال: بخطامها، وإما قال: بزمامها»(۱)

ددې روايت نه يوه فائده دا هم حاصله شوه چه په روايت د باب كښې چه د خطام او زمام په مينځ كښې كوم ترديد او شك وارد دې د حضرت ابوبكره رضي الله عنه د طرفه نه دې بلكه ددوى نه لاندې د يو راوى د طرفه دې.(۲)

**خطام او زمام دواړه يو دى؟ اوكه دواړو كښې فرق دې؟** حافظ ابن حجر رحمه الله دواړه مترادف گرځولى دى او فرمائيلى ئې دى چه د اوښ په پوزه كښې حلقه اچولې شى په دې حلقه كښې د دواړو طرفه چه كومه رسئ ترلې شى هغې رسئ ته ,,خطام،، يا ,,زمام،، وائى.(۳)

صاحب د مختارالصحاح هم د ,,خطام،، تفسير ,,زمام،، سره كړې دې (۴) او بيا د ,,زمام،، تفسير هم هغه دې كوم چه اوس پورته مونږ ذكركړو. نوره اضافه ئې دا هم كړې ده چه دې ,,زمام،، (رسئ) سره ,,واگې،، هم ترلې شى او كله كله په واگو باندې د ,,زمام،، اطلاق كولې شى.(۵)

او د لغت د نورو اصحابو د تشريح نه معلوميږى چه په ,,خطام،، او ,,زمام،، كښې فرق دې ,,زمام،، هغه نرئ رسئ ته وائى كوم چه په پوزه كښې اچولې شى او ,,خطام،، واگو ته وائى.(۶) والله اعلم.

**قوله: قَالَ أَيُّ يَوْمٍ هَذَا فَسَكَتْنَا حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ سِوَى اسْمِهِ قَالَ أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلَى:** نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو دا كومه ورځ ده؟ مونږ خاموش شو تردې چه مونږ اوگڼړله چه نبى كريم ﷺ به ددې بل څه نوم اوښائى نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه آيا دا يوم النحر نه ده؟ مونږ اووئيل. ولې نه ده.

**په روايت باب كښې تعارض او دفع د تعارض:** په روايت باب كښې ,,سكتنا،، دې او د كتاب الحج په روايت كښې «قلنا: الله ورسوله أعلم» دې.(۷) په ښكاره دې دواړو روايتونو كښې تعارض شان معلوميږى ددې جواب دا دې چه كيدې شى چه بعضو حضراتو سكوت كړې وى او بعضو حضراتو ,,الله ورسوله أعلم،، وئيلې وى.

---

(۱) فتح البارى (۱۵۸/۱)_

(۲) المصدر السابق)_

(۳) المصدر السابق)_

(۴) مختار الصحاح (ص ۱۸۱) ماده ,,خطم،،)_

(۵) مختار الصحاح (ص ۲۷۵) ماده ,,زمم،،)_

(۶) النهاية. (۱۵۰/۲) ماده ,,خطم،،)_

(۷) صحيح بخارى (۲۳۴/۱) كتاب الحج. باب الخطبة أيام منى. رقم (۱۷۴۱)_

دا هم كيدې شي.چه په ړومبي خل ونيلو باندې ئې سكوت كړې وي.او په دويم خل تپوس كولو باندې ئې ،،الله ورسوله أعلم،، ونيلې وي.

خو دا دواړه جوابونه د احتمال محض په درجه كښې دي.په اصل كښې صحابه كرامو رضي الله عنهم ،،الله ورسوله أعلم،،ونيلي وو.خودا راوى بعضې ځائې كښې اختصارسره ،،فسكتنا،،سره تعبير كړو.،،أى فسكتنا عن الجواب،، ښكاره ده.چه ،،الله ورسوله أعلم،، جواب نه دې.بلكه دا سكوت عن الجواب دې.او جواب الله او د الله تعالى رسول صلى الله عليه وسلم طرف ته مفوض (او سپارلې) كيږى.

بيا د حضرت ابوبكره رضي الله عنه په روايت كښې خو دا دى.چه صحابه كرامو رضي الله عنهم ،،الله ورسوله أعلم،، اوونيل.او په كتاب الحج كښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې راځى.چه صحابو رضي الله عنهم په جواب كښې ،،يوم حرام،، اوونيل.(١) په دې.طريقه دې دواړو روايتونو كښې تعارض شو.

دا تعارض په ډيرو طريقو سره لرې كړې شوې دې:

① اول دا چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم كله سوال اوفرمائيلو.نو بعضو خلقو ،،الله ورسوله أعلم،،اوونيل.او بعضو ،،يوم حرام،، اوونيل.خو دا بعيد (او نا مناسب) معلوميږى.

② دويم جواب دا كيدې شي.چه ممكن ده.نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوه خل تپوس كړې وي.په ړومبي خل دې حضراتو ،،الله ورسوله أعلم،،ونيلې وي.او په دويم خل ئې ،،يوم حرام،، ونيلې وي.خو سياق او طرز د حديث دا جواب هم لرې (او نا مناسب) ګڼړى.

③ دريم جواب دا دې.چه كيدې شي.نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوه ورځې خطبه وركړې وي.په ړومبۍ ورځ خو صحابه كرامو رضي الله عنهم ،،الله ورسوله أعلم،،ونيلې وي.او په دويمه ورځ د جواب معلوميدو په وجه ئې ،،يوم حرام،، ونيلې وي.خو دا هم بعيد معلوميږى.

④ څلورم جواب دا دې.او هم دا اقرب (او مناسب) معلوميږى.چه د حضرت ابوبكره رضي الله عنه روايت مفصل اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت مختصر اومجمل دې.د حضرت ابوبكره رضي الله عنه په روايت كښې دا دى.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم كله اوفرمائيل.،،أى يوم هذا؟،، نو صحابه كرامو رضي الله عنهم ،،الله ورسوله أعلم،، اوونيل.نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.،،أليس يوم النحر؟،، صحابو جواب وركړو.،،بلى،،_ نو اوس د ټولو مختصر خلاصه دا راووتله.چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په جواب كښې صحابه كرامو رضي الله عنهم ،،يوم حرام،، اوونيل.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې اصل مضمون باندې نظر اچولو سره اختصار سره تعبير كړې شو.او اوونيلې شو.چه دنبى كريم صلى الله عليه وسلم په جواب كښې صحابو رضي الله عنهم ،،يوم حرام،، اوونيل.والله اعلم.

---

(١) صحيح بخارى(١١/٢٣٤) كتاب الحج. باب الخطبة أيام منى. رقم(١٧٣٩)_

**قوله** قَالَ فَأَيُّ شَهْرٍ هَذَا فَسَكَتْنَا حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ فَقَالَ أَلَيْسَ بِذِي الحِجَّةِ قُلْنَا بَلَى: نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه دا كومه مياشت ده؟ مونږ خاموش شو.تردې چه مونږ اوګڼړل چه ددې مياشت به بل څه نوم اوښائى.بيا ئې تپوس اوكړو.چه آيا دا ذوالحجه نه ده؟ مونږ اووئيل.ولې نه ده.

نبى كريم ﷺ سوالات څكه كول.چه صحابه كرام ښه متوجه شى.او د نبى كريم ﷺ خبرې اوريدو دپاره تيارشى.

**قوله** قَالَ فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ وَأَعْرَاضَكُمْ بَيْنَكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا: نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.ستاسو وينې، مال او عزت په يو بل باندې داسې حرام دى.لكه څنګه ستاسو ددې ورځې حرمت، ستاسو په دې مياشت كښې، او ستاسو په دې ښار كښې ( حرام دى).

**يو اشكال او دهغې جواب:** په تشبيه كښې ،،مشبه به، د ،،مشبه،، نه اقوى وى.دلته مشبه ( چه حرمت د وينې او عزت اومال دې) د مشبه به (چه حرمت د ورځې او مياشت او ښار دى) نه اقوى دې؟

ددې جواب دا دې.چه په يو بل جهت سره دلته مشبه به د مشبه نه اقوى دې.هغه دې د حرمت شهرت، ددې خلقو په ذهن كښې د ورځې او مياشت او ښار حرمت زيات وو.او دا حرمت ددوى په مينځ كښې معروف او مشهور وو.او د جان ومال او عزت د جاهليت په خلقو كښې هيڅ قدر نه وو.يوكس قتل كول، د يوكس مال لوټ كول، د يوكس عزت او حيا اخستل. ددوى د ګس لاس كار وو.په دې وجه نبى كريم ﷺ هغوى ته اوفرمائيل.چه لكه څنګه تاسو ورځ، مياشت او ښار محترم ګڼړئ.او په دې كښې د ظلم نه ځان ساتئ.دغه شان دا څيزونه هم حرام او قابل د احترام دى.په دې كښې هم د ظلم نه ځان اوساتئ.(١) والله اعلم.

**قوله** لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الغَائِبَ: حاضر دې غائب ته اورسوى.

ددې نه معلومه شوه.چه كوم كس د مسئلې نه خبر وى.هغوى له پكار دى.چه هغوى ئې ناخبرو خلقو ته اوښائى.

**قوله** فَإِنَّ الشَّاهِدَ عَسَى أَنْ يُبَلِّغَ مَنْ هُوَ أَوْعَى لَهُ مِنْهُ: څكه ممكن ده چه حاضر سړې ئې يو داسې سړى ته اورسوى.چه هغه ددې خبرې د رسونكى نه زيات يادونكې او پوهيدونكې وى.

هم دا ترجمة الباب دې.يعنى ممكن ده.چه نبى كريم ﷺ لره په سترګو كتونكې كس، داسې سړى ته دين اورسوى.چه هغه دده نه افهم ( زيات پوهيدونكې) او احفظ ( زيات ياد ساتونكې) وى.او هم دغه شان شوى دى.د تابعينو په زمانه كښې بعضې داسې عالمان پيدا

(١) فتح البارى(١٥٩١١)_

شوى دى چه هغوى د ډيرو صحابه كرامو ﷺ نه په حفظ او فهم كښې زيات اوچت وو درېم نه پس هم دا صورت حال پاتې شوې دې چه د تبع تابعينو په دور كښې بعضې داسې عالمان پيدا شو چه هغوى د خان نه په وړاندې طبقه باندې اوچت وو. والله اعلم بالصواب.

## ۱۰- ((بَابُ الْعِلْمِ قَبْلَ الْقَوْلِ وَالْعَمَلِ))

((لِقَوْلِ اللهِ تَعَالَى ﴿فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ﴾ (محمد:۱۹) فَبَدَأَ بِالْعِلْمِ ((وَأَنَّ الْعُلَمَاءَ هُمْ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ وَرَّثُوا الْعِلْمَ مَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَطْلُبُ بِهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللهُ لَهُ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ)) ((وَقَالَ جَلَّ ذِكْرُهُ ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ (فاطر:۲۸) وَقَالَ ﴿وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ﴾ (العنكبوت:۴۳) ﴿وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾ (الملك:۱۰) ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (الزمر:۹) وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ((مَنْ يُرِدِ اللهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ وَإِنَّمَا الْعِلْمُ بِالتَّعَلُّمِ وَقَالَ أَبُو ذَرٍّ لَوْ وَضَعْتُمُ الصَّمْصَامَةَ عَلَى هَذِهِ وَأَشَارَ إِلَى قَفَاهُ ثُمَّ ظَنَنْتُ أَنِّي أُنْفِذُ كَلِمَةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ تُجِيزُوا عَلَيَّ لَأَنْفَذْتُهَا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﴿كُونُوا رَبَّانِيِّينَ﴾ حُلَمَاءَ فُقَهَاءَ وَيُقَالُ الرَّبَّانِيُّ الَّذِي يُرَبِّي النَّاسَ بِصِغَارِ الْعِلْمِ قَبْلَ كِبَارِهِ))

**تيرشوى باب سره مناسبت:** په تيرشوى باب كښې د مبلغ او سامع ذكر وو.چونكه مبلغ (بكسر اللام) او مبلغ (بفتح اللام) د علم په ذريعه تعليم او تعلم باندې قدرت حاصلولې شى په دې وجه نې دلته د ((باب العلم قبل القول والعلم)) ترجمه منعقد كړې ده.[1]

**د ترجمة الباب مقصد او دتقديم قسمونه:** تقدم يا خو ذاتاً وى، يا زماناً او يا رتبةً وى.په تقدم ذاتى كښې مقدم، د موخر نه ذاتاً مخكښې وى.اګرچه د دواړو زمانه يوه وى.لكه د لاس او كنجئ حركت، چه زماناً اتحاد دې.خو ذاتاً د لاس حركت د كنجئ د حركت نه مقدم دې خكه چه كنجى د لاس په حركت سره متحرك كيږى.

په تقدم زمانى كښې مقدم، د موخر نه د زمانې په اعتبار سره وړاندې وى.لكه د پلار زمانه د خوئى د زمانې نه مقدم ده.

په تقدم رتبى يا په تقدم بالرتبه والشرف كښې مقدم د موخر نه په مقام او مرتبه كښې فائق وى.اګرچه د زمانې په اعتبار سره موخر ولې نه وى.لكه خنګه چه نبى كريم ﷺ ته په صحابو باندې فوقيت (او برترى) حاصل وه.اګرچه ډير صحابه كرام ددوى نه د سن او كال په اعتبار سره مشران وو.

د حضرت عباس رضي الله عنه نه چا تپوس اوكړو.((أنت أكبر أم رسول الله ﷺ؟)) نو حضرت عباس رضي الله عنه جواب وركړو.((هو أكبر منى وأنا أسن منه))[2] يعنې زمانه لوئې دې.او زه د سن او كال په اعتبار

[1] عمدة القارى(۲\۳۹)_
[2] تهذيب الكمال(۱۴\۲۲۷) وروى أبوزرين: قيل للعباس: أيما أكبر أنت...[بقيه حاشيه په بل مخ....

سره د هغوی نه وړاندې يم.

دعامو شارحينو رائې دا ده.چه د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې.چه علم دحصول په اعتبار سره د قول او عمل نه مقدم دې.مخکښې علم حاصلولې شی.ددې نه پس د عمل نمبر راځی.ددې نه پس د وعظ او تذکير او د درس تدريس نمبر راځی.

ذاتی اعتبار سره هم علم ته په عمل او قول باندې شرافت حاصل دې.ځکه چه د قول او عمل صحت په نيت باندې موقوف دې.او د نيت صحت په علم باندې موقوف دې.په دې طريقه ښکاره ده.چه علم ته په عمل باندې زماناً هم تقدم حاصل دې.او ددې نه دا هم معلومه شوه.چه علم ته په عمل باندې شرفاً او رتبتاً هم تقدم حاصل دې.

امام بخاری رحمه الله چه په دې باب کښې کوم آيات او آثار وغيره ذکرکړی دی.دوی په هغې باندې مجموعی طور باندې دلالت کوی.او هم دا اقرب معلوميږی.

علامه ابن المنير رحمه الله فرمائی.چه د امام بخاری رحمه الله ددې باب نه مقصد دا دې.چه علم د قول او عمل د صحت دپاره د شرط په درجه کښې دې. ترکومه پورې چه علم نه وی.تر هغه وخته پورې د قول او عمل اعتبار نه وی.ځکه چه علم د نيت مصحح دې.او نيت د عمل مصحح دې.چونکه دا خبره مشهوره ده.چه د عمل نه بغير علم نافع نه دې.په دې وجه دې باندې د تنبيه ضرورت پيدا شو.او په ترجمة الباب سره ئې اوښودل.چه علم ذاتاً د قول او عمل نه مقدم دې. (1)هم دا خبره علامه کرمانی او ابن بطال رحمهما الله فرمائيلې ده.(2)

علامه سندهی رحمه الله فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله په دې باب سره د قول او عمل په مقابله کښې د علم د شرف او مرتبې په اعتبار سره مقدم کيدل بيان کړې دې.تقدم زمانی بيانول مقصود نه دی.ځکه چه د باب لاندې کوم څه مذکور دی.د هغې نه تقدم بالشرف والرتبه معلوميږی.(3)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی.چه دلته تقدم زمانی مراد دې.او کوم څه چه د باب لاندې مذکور دی.هغه هم ددې مدعا د اثبات دپاره کافی او واضح دی.

ګويا د امام بخاری رحمه الله مقصد دا وهم لرې کول دی.چه چونکه په علم بلا عمل باندې وعيدونه وارد شوی دی.نو مقصر(کوتاهی کونکی) ته دسره علم حاصلول نه دی پکار.مصنف رحمه الله باب قائمولو سره دا اوښودل.چه ،،علم من حيث هوهو،،د عمل نه ذاتاً او زماناً مقدم دې.ترکومه پورې چه د عمل نه کولو تعلق دې.نو دا بالکل جدا څيز دې. چه دا موجب د تاوان او د وعيدونو مورد دې.(4) والله اعلم.

---

...دتيرمخ بقيه حاشيه] أم النبي ﷺ؟ فقال: هذا أكبر مني و أنا ولدت قبله...... رواه الطبرانی ورجاله رجال الصحيح. أنظر مجمع الزوائد (۲۷۰/۹) كتاب المناقب،باب ماجاء فی العباس عم رسول الله ﷺ ومن جمع معه من ولده.)_

1) فتح البارى(۱۶۰/۱)_

2) شرح الكرمانى( ۲۹/۲، ۳۰)_

3) حاشية السندى على البخارى(۲۳/۱)_

4) تعليقات لامع الدرارى(۱۹/۲، ۲۰)_

**قوله**: لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى ﴿فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ﴾ فَبَدَأَ بِالْعِلْمِ: خکه چه الله تعالی فرمائی:، نو تاسو پوهه شئ چه د الله تعالی نه سوا بل څوک معبود نشته.، الله تعالی علم وړاندې بیان کړو.

**د امام بخاری رحمه الله پخپل مقصد باندې استدلال**: امام بخاری رحمه الله په قول او عمل باندې د علم په تقدم باندې استدلال دپاره دا آیت ذکرکړې دې.او دا استدلال د پوره آیت نه ثابتیږی. ﴿فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ﴾(۱) په دې آیت کښې مخکښې د علم ذکر فرمائیلې شوې دې.ددې نه پس دعمل یعنی د استغفار ذکر دې.ګویا چه استغفار په زړه سره وی.اوکه ژبې سره وی.دا به هغه وخت وی.کله چه علم صحیح وی.که علم صحیح نه دې.نو عمل به هم صحیح نه وی.

په دې آیت کښې براه راست خطاب اګرچه نبی کریم ﷺ ته دې.خو دا خطاب د نبی کریم ﷺ امت دپاره هم دې.(۲)

امام سفیان بن عیینه رحمه الله ددې آیت نه دعلم په فضیلت باندې استدلال کړې دې.(۳)

**قوله**: وَاَنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْاَنْبِيَاءِ: بلا شبه عالمان د انبیاو وارثان دی.

**د حدیث مذکور تخریج**: دا د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه د یو حدیث ټکړه ده.چه دا امام احمد. ابوداؤد، ترمذی، دارمی پخپلو کتابونو کښې، او امام بخاری رحمه الله پخپل ..تاریخ کبیر.. کښې موصولاً نقل کړې دې.(۴) ددې په سند کښې لږ شان اضطراب دې.(۵) خو حمزه کنانی رحمه الله ددې تحسین فرمائیلې دې.(۶)

**د حدیث د مذکوره حصې راوړلو مقصد**: چونکه امام بخاری رحمه الله دلته ددې د حدیث کیدو تصریح نه ده کړې.په دې وجه دا ددوی په تعالیقو کښې نه شمارلې کیږی.البته ددوی په ترجمه کښې ددې ذکرکول، ددې خبرې دلیل دې.چه ددې اصل موجود دې.د قرآن کریم آیت ﴿ثُمَّ اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا﴾(۷) هم په دې باندې شاهد دې.(۸)

---

(۱) سورة محمد:۱۹)_

(۲) فتح الباری(۱۱۰۱۶۰)_

(۳) حلیة الاولیاء(۳۰۵۱۷) ترجمة سفیان بن عیینه)_

(۴) مسند احمد(۱۹۶۱۵) وسنن ابی داؤد. کتاب العلم. باب الحث علی طلب العلم. رقم(۳۶۴۱) و(۳۶۴۲) وجامع ترمذی، کتاب العلم. باب ماجاء فی فضل الفقه علی العبادة. رقم(۲۶۸۲) سنن ابن ماجه. المقدمة. باب فضل العلماء والحث علی طلب العلم. رقم(۲۲۳) وسنن الدارمی(۱۱۰۱۱) المقدمة. باب فی فضل العلم والعالم. رقم(۳۴۲) والتاریخ الکبیر(۳۳۷۱۸) رقم(۳۲۲۹)_

(۵) د اضطراباتو د تفصیل دپاره اوګورئ: عمدة القاری(۳۹۱۲، ۴۰)_

(۶) فتح الباری(۱۱۰۱۶۰)

(۷) فاطر:۳۲)_

(۸) فتح الباری(۱۱۰۱۶۰)_

**د نبي لغوي او اصطلاحي تعريف** په دې حديث كښې عالمان د انبياو وارث ګرځولى شوي دي.
،،انبياء،، د ،،نبي،، جمع ده.نبي په لغت كښې خبر وركونكي ته وائي.او په اصطلاح كښې ،،نبي،، د الله تعالى خبر وركونكي مخصوص كس ته وائي.دا ښكاره ده.چه خبر وركونكې هغه وخت خبر وركولې شي.چه ورانديې نه هغه ته علم وي .د علم نه بغير خبر وركول ممكن نه دى. معلومه شوه.چه نبوت من حيث النبوت د صفات علميه څنو دې.په دې وجه امام بخارى رحمه الله د «العلم قبل القول والعمل»لاندې «وَأَنَّ الْعُلَمَاءَ هُمْ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ» ذكركړې دې.او فرمائيلى ئې دى.چه د حضرات انبياء عليهم السلام نه عالمان د علم ميراث حاصلوى.د مال دولت ميراث نه حاصلوى.هم دا ئې په «وإن الأنبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما وإنما ورثوا العلم»(١) ونيلو سره واضح كړې دې.
چاسره چه څومره علم زيات وى.ګويا هغه ته د نبي ﷺ د وراثت نه هم دغومره حصه حاصل شوې ده.دلته په دې ارشاد كښې چه كوم صرف د علم ذكر دې.ددې نه علم صحيح او قوى مراد دې.چه ددې نه پخپله عمل ناشي او صادريږى.كه يوكس ټول كتابونه رټه كړي.او د عمل نه بې پرواه وى.نو هغه د شريعت په اصطلاح كښې علم نه دې.بلكه هغه وبال دې.په دې وجه ونيلې شي.چه علم هغه دې.كوم سره چه خشيت ( يره) او تقوى پيدا شي.كله چه خشيت وى.نو عمل به هم دهغې مطابق وى.(٢)

**ايا «علماء امتي كانبياء بنى اسرائيل »حديث دې؟** عام واعظين «علماء أمتي كأنبياء بني إسرائيل»د حديث په طور پيش كوى.خو د سند په اعتبار سره ددې هيڅ ثبوت نشته.د حديث امامانوعلامه دميرى،علامه زركشي،حافظ ابن حجرعسقلانى،حافظ سخاوى، او ملاعلى قارى رحمهم الله ددې حديث نه انكاركړې دې.او فرمائيلى ئې دى.چه ددې هيڅ اصل نشته(٣)
البته «إن العلماء هم ورثة الأنبياء» حديث، د هغې مضمون او معنى اداكولې شى.څكه چه هركله ددې امت عالمان د انبياو وارث اوګرځولى شو.نو ددوى به هغه كار وى.كوم چه به د بنى اسرائيلو انبياؤ كوو.څكه چه په بنى اسرائيلو كښې چه به كله يو نبي لاړلو.نو د هغه نه پس به الله تعالى دويم نبي تبليغ دپاره ليګلو.زمونږ د نبي ﷺ دا شان دې.چه ددوى نه پس د بل نوى نبي ضرورت پاتې نشو.البته د تبليغ ضرورت شته.الله تعالى دا كار د عالمانو نه واخستلو.نو كوم كار چه به د بنى اسرائيلو انبياؤ كوو.هغه ددې امت عالمان كوى.نو په «العلماء ورثة الأنبياء» سره په «علماء أمتي كأنبياء بني إسرائيل» باندې استدلال كيدلې شى.او ونيلې كيدې شى.چه اګرچه ددې حديث لفظاً ثبوت نشته.خو دا معنى ثابت دې.

---

(١) د ،،العلماء ورثة الأنبياء،، والا حديث جزء دې.او ددې تخريج لږ وړاندې تير شوې دې.ـ
(٢) فضل البارى((٣٧\٢، ٣٨)ـ
(٣) كشف الخفاء و مزيل الإلباس عما اشتهر من الأحاديث على ألسنة الناس(٦٤\٢). والمصنوع فى معرفة الحديث الموضوع(ص١٢٣)ـ

**قوله** <u>وَرَّثُوا الْعِلْمَ مَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ</u>: دوی د علم میراث پریخودي دي.چاچه دا حاصل کړو.هغه لویه حصه حاصله کړله.

**د لفظ «ورثوا» تحقيق** دا لفظ د باب تفعیل نه هم کیدې شي.او د مجرد نه هم کیدې شي.د باب تَفعیل نه کیدل راجح دی.ځکه چه د روایت سیاق نه هم دا معلومیږی.«إن العلماء هم ورثة الأنبياء، إن الأنبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما، وإنما ورثوا العلم، فمن أخذه به أخذ بحظه أو بحظ وافر»( ) (اللفظ للدارمي)،

که دا بالتشدید یعنی د باب تفعیل څنې وی.نو ددې ضمیر به انبیاء طرف ته راجع وی.او که بالتخفیف یعنی د باب سمع نه وی.نو دا ضمیر به علماء طرف ته راجع وی.( )

«مَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ» **دا جمله خبر دې اوکه امر دې** کیدې شي.دا جمله معنی هم خبریه وی.مطلب دا دې.چه چا علم حاصل کړو.هغه ډیر لوئې دولت حاصل کړو.او کیدې شي چه لفظاً خبر وی.او معنی امر وی.مطلب دا دې.چه که یوکس علم حاصل کړی.نو هغه له په دې شان زیات مقدار کښې حاصلول پکار دی.والله اعلم.

**قوله** <u>وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَطْلُبُ بِهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ</u>: چاچه هغه لاره اختیار کړله.په کوم سره چه هغه علم حاصلوی.نو الله تعالی به هغه دپاره دجنت لاره آسانه کړی.

**ددې حدیث تخریج** دا مضمون لکه څنګه چه د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه په روایت کښې وارد شوې دې.( ) دغه شان د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه هم منقول دی.کوم چه امام مسلم او امام ابوداؤد رحمهما الله نقل کړی دي: «عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللَّهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَمَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللَّهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ وَذَكَرَهُمُ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ وَمَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ» (اللفظ لمسلم)( )

---

( ) قدسبق تخريج هذا الحديث سابقاً فارجع إليه.)_

( ) فتح البارى(۱۶۰/۱)_

( ) دحضرت ابوالدرداء رضی الله عنه د حدیث تخریج وړاندې د..وإن العلماء هم ورثة الأنبياء..لاندې تیرشوی دی(

( ) صحيح مسلم(۳۴۵/۲) كتاب الذكر والدعاء والتوبة والإستغفار. باب فضل الإجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر. و سنن أبى داؤد. كتاب العلم. باب الحث على طلب العلم. رقم(۳۶۴۳). وجامع الترمذى كتاب العلم. باب فضل طلب العلم. رقم(۲۶۴۶) وكتاب القراءات. باب (بلا ترجمه. بعد باب ما جاء أنزل القرآن على سبعة أحرف)رقم(۲۹۴۵)..

دا حدیث د ..من سلك طريقاً...... ټکړې نه بغیر امام ابوداؤد پخپل سنن کښې ( كتاب العلم ..باب فى المعونة للمسلم.. رقم(۴۹۴۶). کښې امام ترمذی رحمه الله [ بقیه حاشیه په بل مخ....

دا روايت امام بخارى ﷫ پخپل كتاب كښې درج نكړو. ځكه چه ددې په سند كښې معمولى شان اختلاف دې اختلاف دا دې چه دا روايت «الأعمش عن أبي صالح عن أبي هريرة» طريق سره نقل دې اوس په دې كښې كلام دې چه آيا امام اعمش د ابوصالح نه براه راست اوريدلې دې اوكه نه؟ ځكه چه د ابوداؤد او ترمذى په يو يو روايت كښې «حدثت عن أبي صالح» دې (١) چه ددې نه معلوميږى چه د اعمش او ابوصالح په مينځ كښې څوك واسطه شته. خو دا روايت امام مسلم﷫ په ډيرو طرقو سره نقل كړې دې په هغې كښې د ابواسامه په طريق كښې د «حدثنا أبو صالح عن أبي هريرة» تصريح موجود ده. (٢) نو كيدې شى چه اول اعمش په واسطه سره اوريدلې وى. او روستو ئې بلاواسطه اوريدلې وى. والله اعلم

ددې روايت مطلب دا دې چه كوم سړې دعلم د طلب دپاره سعى اوكړى او ددې په كوشش كښې لګيا وى. الله ﷻ به ددې اشتغال بالعلم په وجه دده دپاره دجنت لاره آسانه كړى. ځكه چه كله علم حاصل كړى. نو ملكات فاضله به ده ته حاصل شى اعمال صالحه به ده ته معلوم شى. د الله تعالى محبت اوخشيت به دده په زړه كښې راشى. او دا ټول هغه امور دى. چه دا جنت ته بوتلونكى دى. په دې وجه به الله ﷻ دده دپاره دجنت لاره آسانه كړى

دلته هر ځاى كښې د علم فضيلت راروان دې. او دعمل قيد مذكور نه دې

**قوله** وَقَالَ جَلَّ ذِكْرُهُ ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾: (٣) او الله تعالى فرمائيلى دى. د الله تعالى په بنده ګانو كښې د الله تعالى نه عالمان يريږى

خشيت (يريدل) يو عمل دې. دا عمل د ،،علماء،، دپاره ثابت كړې شوې دې معلومه شوه. چه مخكښې علم راځى. بيا د عمل نمبر وى.

**مذكوره ايت نه د علم د فضيلت اثبات:** ددې نه فضيلت د علم هم راوځى. ځكه چه خشيت يو مقصودى څيز دې. دا د عالمانو دپاره ثابت كړې شوې دې. معلومه شوه چه علم ته فضيلت حاصل دې. چه د علم نه بغير دسره مقصود نه حاصليږى والله اعلم

**ايا علم سره خشيت لازم دې؟** دلته دا سوال پيدا كيږى. چه بعضې خلق عالمان وى خو په دوى كښې خشيت نه وى؟ ددې جواب دا دې. چه دا په حقيقت كښې دسره عالم نه دې. ﴿مَثَلُ الَّذِينَ حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا﴾ (٤)

---

دتيرمخ بقيه حاشيه] پخپل جامع كښې (كتاب الحدود باب ما جاء في الستر على المسلم. رقم١٤٢٥، و كتاب البر والصلة. باب ماجاء في الستر على المسلم. رقم١٩٣٠) كښې هم نقل كړې دې ـ

(١) سنن أبي داؤد. كتاب الأدب. باب في المعونة للمسلم. رقم(٤٩٤٦) و جامع ترمذي. كتاب البرّ والصلة، باب ماجاء في الستر على المسلم. رقم(١٩٣٠)ـ

(٢) صحيح مسلم(٢\٣٤٥) كتاب الذكر والدعاء. باب فضل الإجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر.)ـ

(٣) فاطر:٢٨.)ـ

(٤) الجمعة:٥.)ـ

دا هم ونیلی شوی دی.چه په دې آیت کښې دا نه دی ونیلی شوی.چه په عالم کښې خشیت لازمی دې.بلکه دا ونیلی شوی دی.چه خشیت مطلقه کامله که موندلې کیږی.نو په عالم کښې به موندلې کیږی.

تنبیه دلته دا وضاحت ضروری دې.چه د عالم کیدو دپاره دا ضروری نه ده.چه کتابونه اووائی.اوعالم جوړشی.بلکه ضروری داده.چه د یوعالم په صحبت کښې اوسیدلې وی.او علم ئې حاصل کړې وی.که دهغه نه د کتابونو ونیلوسره حاصل کړې شی.او که د کتابونو نه بغیردهغه د خبرو او وعظ اونصیحت نه استفاده اوکړی.اوعلم حاصل کړې شی.والله اعلم.

**قوله**: وَقَالَ ﴿وَمَا يَعْقِلُهَآ إِلَّا الْعٰلِمُوْنَ﴾:(۱) او وې فرمائیل.چه دې بیان کړې شوی مثالونو باندې عالمان پوهیږی.ددې نه هم د علم فضیلت حاصل شو.

**قوله**: ﴿وَقَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِيْٓ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ﴾:(۲) او جهنمیان به وائی.که مونږ د اهل علمو پشان اوریدلې.او پوهیدلې.نو د جهنمیانو نه به نه کیدو. یعنی علم حاصلیږی اوریدو سره، او غور اوفکر او تدبر کولو سره.دوی نه د سماع طریقه اختیار کړله.او نه ئې د عقل او غور اوفکر طریقه اختیار کړله.

**قوله**: وَقَالَ ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾:(۳) او وې فرمائیل: ..چه آیا عالمان او بې علمه برابریدې شی؟!

په دې آیت مبارکه کښې په عالم او غیر عالم کښې څه فرق دې؟ حالانکه عمل ټول کوی. ددې باوجود په عالم او غیر عالم کښې فرق کړې شوې دې.چه دا ددې خبرې دلیل دې.چه علم ته تقدم حاصل دې.

**د علماو پشان کښې د ابن دریدرحمه الله اشعار**: ابن دریدرحمه الله د عالمانو پشان کښې یو څو ډیر ښه اشعار ونیلی دی:~

| | |
|---|---|
| أهلاً وسهلاً بالذين أحبهم | و أودهم في الله ذي الآلاء |
| أهلاً بقوم صالحين ذوي تقى | غر الوجوه و زين كل ملاء |
| يسعون في طلب الحديث بعفة | و توقر و سكينة و حياء |
| لهم المهابة و الجلالة و النهى | و فضائل جلت عن الإحصاء |
| و مداد ما تجري به أقلامهم | أزكى و أفضل من دم الشهداء |
| يا طالبي علم النبي محمد | ما أنتم و سواكم بسواء(۴) |

---

(۱) العنکبوت:۴۳.)_

(۲)الملک:۱۰.)_

(۳) الزمر:۹.)_

(۴) جامع بیان العلم وفضله لابن عبدالبر(۳۷۱۱) باب تفضیل العلماء علی الشهداء.)_

**قوله** وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدْ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ:
او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: الله تعالی چه د کوم کس سره دخیر اراده فرمائی.هغه ته فقه او دین کښې پوهه ورکوی.

**د مذکوره حدیث تخریج** دا د حضرت معاویه رضی الله عنه د نقل شوی مرفوع روایت حصه ده.چه ددې تخریج امام بخاری رحمه الله روستو موصولاً کړې دې.(۱)
د اکثرو حضراتو په روایت کښې دلته لفظ د ..یفقهه.. دې. حالانکه د مستملی په روایت کښې ..یفهمه.. دې.(۲)
ددې دویم روایت تخریج ابن ابی عاصم په ..کتاب العلم.. کښې کړې دې.(۳)
د حدیث مطلب واضح دې.چه الله تعالی د چا سره دخیر اراده اوفرمائی.هغه ته علم دین او د دین پوهه ورکوی.او علم چونکه وړاندې راځی. او د عمل نمبر روستو راځی په دې وجه د علم فضیلت او ددې تقدم ثابت شو. والله أعلم.

**قوله** وَإِنَّمَا الْعِلْمُ بِالتَّعَلُّمِ: او علم خو په زده کولو سره راځی.

**د مذکوره حدیث تخریج:** دا د یو مرفوع حدیث ټکړه ده.چه دا امام طبرانی او ابن ابی عاصم رحمهما الله د حضرت معاویه رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل کړې دې.((یا أیها الناس! تعلموا،إنما العلم بالتعلم، والفقه بالتفقه و من یرد الله به خیراً یفقهه فی الدین))(۴)
او دا ټکړه د حضرت ابوالدرداء او حضرت عبدالله بن مسعود رحمهما الله نه هم نقل ده.(۵) د ماهرو مفتیانو نه د تربیت مکمل کولو نه بغیر فتوی ورکول صحیح نه دی
ددې حدیث په بناء باندې حضرات فقهاو لیکلی دی.چه کوم سړې د فتوی د ماهرینو نه ( مفتیانو حضراتو) نه د ترتیبت مکمل کولو نه بغیر صرف کتابونو کتلو سره فتوی ورکړی.د هغه د خبرې اعتبار نشته.(۶)ځکه چه فتوی ورکول په زده کولو سره راځی.

---

(۱) اوګورئ دوو بابونو نه پس ..باب من یرد الله به خیراً یفقهه فی الدین.. ددې حدیث پوره تخریج به انشاءالله په مذکوره باب کښې کولې شی.)۔
(۲) فتح الباری(۱۶۱۱۱)_
(۳) فتح الباری(۱۶۱۱۱) و تغلیق التعلیق( ۷۹۱۲)_
(۴) فتح الباری(۱۶۱۱۱ وتغلیق التعلیق(۷۸۱۲)_
(۵) روی البزار نحوه من حدیث ابن مسعود موقوفاً ورواه ابونعیم الأصبهانی مرفوعاً وفی الباب عن أبی الدرداء وغیره. فتح الباری(۱۶۱۱۱) وانظر تغلیق التعلیق(۷۸۱۲)_
(۶) قال ابن عابدین رحمه الله..وقد رأیت فی فتاوی العلامة ابن حجر: سئل فی شخص یقرأ و یطالع فی الکتب الفقهیة بنفسه ولم یکن له شیخ. یفتی و یعتمد علی مطالعته فی الکتب. فهل یجوز له ذالک أم لا.. فأجاب بقوله: لا یجوز له الإفتاء بوجه من الوجوه. لأنه عامی جاهل لایدری ما یقول. بل الذی یأخذ العلم عن المشائخ المعتبرین لا یجوز له أن یفتی من کتاب ولا من کتابین. قال النووی رحمه الله: ولا من عشرة؛ فإن العشرة والعشرین قد یعتمدون کلهم علی مقالة ضعیفة فی المذهب. فلا یجوز تقلیدهم [بقیه حاشیه په بل مخ.....

صرف مطالعې سره د جوړ شوې يو محدث دلچسپه واقعه ابن الجوزی رحمه الله يو خاني ليکلی دی چه يو محدث وو .هغوی حديث ونيلې وو .((نهى عن الحلق قبل الصلاة يوم الجمعة))(۱) هغه خلقو ته اوونيل چه څلويښت کاله تيرشو چه زه د جمعې په ورځ د مونځ نه وړاندې سر نه خرايم؟ چا تپوس اوکړو چه سر ولې نه خرائې؟ وې ونيل چه په حديث کښې د ((حلق فى يوالجمعة)) ممانعت وارد شوې دې.(۲)

په اصل کښې وو ،، الحِلَق،،(بکسر الحاء المهملة و فتح اللام) چه دا د ،،حلقة،، جمعه ده دوی چونکه د يو عارف استاذ نه نه وو ونيلې په دې وجه ئې مخکښې لفظی تحريف اوکړو او ،،حلق،، ئې ،،حَلق،، اوونيل او ددې نه پس په معنوی غلطئ کښې مبتلا شو.دا صرف په دې وجه اوشو چه دوی په کتاب کتلو علم حاصل کړې وو.د استاذانو او مشائخو نه ئې علم نه وو حاصل کړې.(۳)

**قوله: وَقَالَ أَبُو ذَرٍّ لَوْ وَضَعْتُمُ الصَّمْصَامَةَ عَلَى هَذِهِ وَأَشَارَ إِلَى قَفَاهُ ثُمَّ ظَنَنْتُ أَنِّي أُنْفِذُ كَلِمَةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ تُجِيزُوا عَلَيَّ لَأَنْفَذْتُهَا:** حضرت ابوذر رضي الله عنه سټ طرف ته اشاره اوکړله.اووې فرمائيل که تاسو په دې باندې توره کيږدئ.او زه پوهه شم چه ستاسو زما په سټ باندې د تورې چلولو نه وړاندې زه د نبی کريم ﷺ نه اوريدلې شوې يوه خبره اوروليې شم.نو زه به دا ضرور اوروم.

---

.....دتيرمخ بقيه حاشيه] فيها، بخلاف الماهر الذى أخذ العلم عن أهله، وصارت له فيه ملكة نفسانية، فإنه يميز الصحيح من غيره، ويعلم المسائل وما يتعلق بها على الوجه المعتد به، فهذا هو الذى يفتى الناس ويصلح أن يكون واسطة بينهم و بين الله تعالى، و أما غيره فيلزمه إذا تسور هذا المنصب الشريف، التعزير البليغ، و الزجر الشديد الزاجر ذالک لأمثاله عن هذا الأمر القبيح الذى يؤدى إلى مفاسد لا تحصى والله تعالى أعلم. انتهى.. شرح عقود رسم المفتى، (ص۱۵، ۱۶) ضمن مجموعة رسائل ابن عابدين.)_

۱) أخرج النسائى فى سننه(۱۱۷/۱) فى كتاب المساجد، باب النهى عن البيع والشراء فى المسجد وعن التحلق قبل صلاة الجمعة، من حديث عبدالله بن عمرو بن العاص رضى الله عنهما ولفظه ..أن النبى ﷺ نهى عن التحلق يوم الجمعة قبل الصلاة، وعن الشراء والبيع فى المسجد، و أخرجه ابوداؤد أيضاً فى أبواب الجمعة باب التحلق يوم الجمعة قبل الصلاة، رقم(۱۰۷۹) و ابن ماجه فى سننه(ص۷۹) ابواب الجمعة، باب ماجاء فى الحلق يوم الجمعة قبل الصلاة.)_

۲) نقله ابن الجوزى فى ..تلبيس ابليس..(ص۱۱۵) عن الخطابى، وقد ذكره الخطابى فى معالم السنن، (۱۳/۲) ابواب الجمعة باب التحلق يوم الجمعة قبل الصلاة، رقم(۱۰۳۸)_

۳) قال الخطيب فى الكفاية (ص۱۶۲، ۱۶۳) و يجب أن يكون حفظه مأخوذاً عن العلماء لا عن الصحف، وقال سليمان بن موسى: ..لا تأخذوا العلم من الصحفيين.. وقال ثور بن يزيد: ..لا يفتى الناس صحفى ولا يُقرئهم مصحفى..)_

**د مذكوره اثر تخريج** د حضرت ابوذر رضي الله عنه دا اثر امام دارمي پخپل سنن كښې [1]، ابو نعيم په حلية الاولياء كښې [2]، اسحاق بن راهويه پخپل مسند كښې، او احمد بن منيع او محمد بن هارون پخپلو خپلو كتابونو كښې نقل كړي دي.[3]

**د حضرت ابوذر رضي الله عنه د حق ګوئى او بيباكه واقعې تفصيل** ددې قصې تفصل دا دې.چه حضرت ابوذر رضي الله عنه شام كښې اوسيدو.دغه وخت حضرت معاويه رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه د طرفه ګورنر وو.د حضرت ابوذر رضي الله عنه مشهوره فتوى وه.چه د ضرورت نه زيات مال او دولت جمع كول جائز نه دى.په دې كښې به حضرت ابوذر رضي الله عنه ډيره سختى كوله.او ټول مالداران به ئې د آيت ﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾[4] مصداق ګرځول.

حضرت معاويه رضي الله عنه خليفة المسلمين حضرت عثمان رضي الله عنه ته ددې خبرو اطلاع وركړله.هغوى حضرت ابوذر رضي الله عنه مديني ته راوغوښتلو.او د داسې قسمه فتوو وركولو نه ئې منع كړو.او پوهه ئې كړو.چه ددې نه هسې بيسه اختلاف پيدا كيږى.ددې نه پس د مصلحت په بناء باندې حضرت عثمان رضي الله عنه دوى ته په ربذه كښې د مقيم كيدو حكم وركړو.حضرت ابوذر رضي الله عنه هلته منتقل شو.او هلته ددوى وفات اوشو.

په دې دوران حضرت ابوذر رضي الله عنه حج دپاره تشريف يوړلو.نو په منى كښې خلقو ددوى نه د مسئلو تپوسونه شروع كړل.دوى فتوى وركوله.چه يو سړي اووئيل.چه تاسو د فتوى وركولو نه، نه يئ منع كړې شوې؟ په دې باندې حضرت ابوذر رضي الله عنه اوفرمائيل.چه آيا ته په ما باندې نګران مسلط كړې شوې ئې؟ بيا ددې نه پس دوى دا ارشاد اوفرمائيلو.كوم چه دلته كښې منقول دې.[5]

ددې سړى منع كول غلط وو.ځكه چه اميرالمؤمنين دوى لره مطلقاً د مسئلو ښودلو نه نه وو منع كړى.بلكه دوى ئې د تشدد او خصوصى مسئلو نه منع كړې وو.

د حضرت ابوذر رضي الله عنه د كلام مطلب دا دې.چه عالم ته كه يوه مسئله هم معلومه وى.او خلقو ته ددې ضرورت وى.نو دداسې سختئ او مصيبت په وخت كښې عزيمت دا دې.چه د مسئلې بيانولو نه منع نشى.په دې اثر كښې د علم فضيلت او اهميت طرف ته اشاره ده.

**قوله**: وَقَوْلُ النَّبِيِّ ﷺ: لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ: د نبى كريم ﷺ ارشاد دې.چه حاضر دې غائب ته اورسوى.دا عبارت زمونږ د متداول (موجوده) نسخو نه علاوه په نورو نسخو كښې نشته.ددې عبارت تفسير او تشريح د تيرشوى باب لاندې تيره شوې ده.

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُونُوا رَبَّانِيِّينَ حُلَمَاءَ فُقَهَاءَ: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما

---

[1] سنن الدارمى(۱۱/۱۴۶) المقدمة، باب البلاغ عن رسول الله ﷺ و تعليم السنن، رقم(۵۴۵)_

[2] حلية الاولياء، وطبقات الأصفياء(۱/۱۶۰) ترجمة أبى ذرالغفارى رضي الله عنه_

[3] تغليق التعليق(۲/۸۰)_

[4] التوبة: ۳۴)_

[5] فتح البارى(۱/۱۶۱)_

فرمائي چه رباني جوړ شي: يعني حكيم، عالم او فقيه جوړ شي:
**د مذكوره اثر تخريج** د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا اثر خطيب بغدادي رحمه الله پخپل كتاب ,, الفقيه والمتفقه،، (١)كښې، ابن ابى عاصم رحمه الله پخپل ,,كتاب العلم،، كښې،(٢) ابن جرير طبرى پخپل تفسير كښې(٣)،او بيهقى په ,,شعب الايمان،، كښې (٤) موصولاً نقل كړې دې.
او ابراهيم حربى رحمه الله هم دا تفسير دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل كړې دې.(٥)
**د نسخو اختلاف** بيادلته په بعضو نسخو كښې خو د ،،ربانيين،،تفسير،،حكماء علماء فقهاء،، سره منقول دې.(٦) او په بعضو نسخو كښې ،،حلماء فقهاء،،وارد دې. (٧) او په بعضو نسخو كښې ،،حكماء فقهاء،، راغلې دې.(٨)
**د ،،حكمت،، معنى** ،،حكماء،، د حكيم جمع ده.دا دحكمت نه ماخوذ دې.د حكمت معنى بعضوحضراتو ،،قرآن كريم،، او ،،فهم قرآن،، بيان كړې ده.بعضو حضراتو ددې معنى ،،نبوت،، كړې ده.بعضو ،،فهم،، او بعضو ،،خشيت،، بيان كړې ده.او بعضې حضرات وائى چه حكمت ((إصابت فى القول والفعل))ته وائى.(٩)
حافظ ابن جرير طبرى رحمه الله فرمائى: ((....معناه: كأن جميع الأقوال التى قالها القائلون الذين ذكرنا قولهم فى ذلك داخلاً فيما قلنا من ذالك، لأن الإصابة فى الأمور إنما تكون عن فهم بها وعلم و معرفة، وإذكان ذالك كذالك، كان المصيب عن فهم منه بمواضع الصواب فى أموره: فهماً خاشياً لله، فقيهاً عالما، وكانت النبوة من أقسامه، لأن الأنبياء مسددون مفهمون و موفقون لإصابة الصواب فى الأمور والنبوة بعض معانى الحكمة. فتاويل الكلام، يؤتى الله إصابة الصواب فى القول والفعل من يشاء ومن يؤته الله ذالك فقد آتاه خيرا كثيرا))(١٠)
خلاصه دا چه ,,حكمت،،په يوه معنى كښې منحصركول صحيح نه دى. بلكه د قرآن او سنت تولې خبرې،دعقل او پوهې او بصيرت سره متصف تول امور حكمت كښې داخل دى.
**عالم څه ته وائى؟** علماء د عليم جمعه ده.صاحب د علم ته وائى.په ظاهره دلته مقصود هغه

---

١) عمدة القارى(٤٣\٢) وتغليق التعليق(٨٠\٢)_
٢) قاله الحافظ فى الفتح(١٦١\١) و تغليق التعليق( ٨١\٢) والعينى فى العمدة(٤٣\٢)_
٣) جامع البيان فى تفسير القرآن للطبرى(٢٣٣\٣) و تغليق التعليق( ٨١\٢)_
٤) شعب الايمان(٣٠٠\٢) رقم(١٨٥٦)_
٥) تغليق التعليق( ٨١\٢) وعمدة القارى(٤٣\٢)_
٦) لكه څنګه چه د هندوستان او پاكستان په متداولو نسخو كښې هم دغه شان دې._
٧) كما صرح به العينى فى العمدة(٤٣\٢)_
٨) و على هذه النسخة شرح الحافظ ابن حجر والعينى رحمهما الله. انظر الفتح(١٦٠\١) والعمدة(٤٣\٢)_
٩) جامع البيان للطبرى(٦٠\٣)_
١٠) تفسير طبرى(٦١\٣)_

عالم دي. کوم چه خشیت الهی سره متصف وی. څکه چه حقیقتاً عالم هم هغه دي. ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ (۱)

**فقیه څوک دي؟** فقهاء: د فقیه جمع ده. د فقیه تعریف حضرت حسن بصری رحمه الله کړي دي. «إنما الفقيه الزاهد في الدنيا، البصير بدينه، المداوم على عبادة ربه» (۲)

**د حلماء مطلب** حلماء: د حلیم جمع ده. حلیم هغه کس ته وائی. کوم چه علمی وقار او حوصلې سره متصف وی.

د حضرت عطاء بن یسار رحمه الله نه منقول دی. «ما أوى شيء إلى شيء أزين من حلم إلى علم» (۳)

د نبی کریم ﷺ یو ارشاد کښې دی. «تعلموا العلم، وتعلموا له السكينة والوقار، وتواضعوا لمن تعلمون منه، ولا تكونوا جبابرة العلماء» (۴)

امام لیث بن سعد رحمه الله به فرمائیل: «تعلموا الحلم قبل العلم» (۵)

**قوله** وَيُقَالُ الرَّبَّانِيُّ الَّذِي يُرَبِّي النَّاسَ بِصِغَارِ الْعِلْمِ قَبْلَ كِبَارِهِ: ونیلې شی چه ,,ربانی،، هغه سړی دي. چه هغه د خلقو د ,,کبار علم،، نه وړاندې د ,,صغار علم،، په ذریعه تربیت اوکړی.

**د ربانی معنی** امام اصمعی او اسماعیلی رحمهما الله فرمائی. چه دا د ,,رب،، نه ماخوذ دي. ګویا ربانی هغه سړی ته وائی. چه هغه د علم او عمل په سلسله کښې د رب حکم پوره کړی. (۶)

امام ثعلب رحمه الله فرمائی. چه دا د ,,تربیت،، نه ماخوذ دي. علماو ته ,,ربانی،، څکه وائی. چه هغوی د علم په ذریعه تربیت کوی. (۷) په دې کښې الف نون د مبالغې دپاره دی. (۸)

بعضو حضراتو د ,,ربانی،، تعریف «العالم الراسخ في العلم والدين» کړي دي. (۹) بعضې حضرات وائی. «الذي يطلب بعلمه وجه الله تعالى» (۱۰)

---

(۱) فاطر:۲۸)_
(۲) حلية الأولياء (۱۴۷\۲) وسير أعلام النبلاء (۵۷۶\۱۴)_
(۳) جامع بيان العلم وفضله (۱۵۲\۱) باب جامع في آداب العالم والمتعلم.)_
(۴) جامع بيان العلم وفضله (۱۵۱\۱) باب جامع في آداب العالم والمتعلم.)_
(۵) جامع بيان العلم وفضله (۱۵۳\۱)_
(۶) فتح الباری (۱۶۱\۱) والنهاية (۱۸۱\۲)_
(۷) المصدر السابق)_
(۸) المصدر السابق)_
(۹) النهاية (۱۸۱\۲)_
(۱۰) المصدر السابق)_

او ځنې حضرات وائی.«العالم العامل المعلم»(١)

امام مجاهد رحمه الله فرمائی.«الربان: الجامع إلى العلم، والفقه: البصر بالسياسة والتدبير، والقيام بأمور الرعية وما يصلحهم في دنياهم و دينهم»(٢)

**د كبار علم او صغار علم مصداق** دلته امام بخاری رحمه الله د بعضو اهل علمو نه چه د ربانی کوم تفسير «الذي يربي الناس بصغار العلم قبل كباره» ذکرکړې دې.په دې کښې د ،،کبارعلم،، او،،صغارعلم،، مصداق کښې څلور اقواله دی:① د ،،صغارعلم نه مراد جزئيات دی او د ،،کبار،، نه کليات،② د ،،صغار،، نه فروع مراد دی.او د ،،کبار،، نه اصول. ③ د ،،صغار،، نه مقدمات او مبادی مراد دی.او د ،،کبار،، نه مقاصد.④ د ،،صغار،، نه واضحې مسئلې مراد دی.او د ،،کبار،، نه دقيق (باريکې) مسئلې مراد دی.(٣) والله اعلم.

**امام بخاری رحمه الله د مذکوره باب لاندې يو مرفوع حديث ولې ذکر نکړو؟** د مذکوره باب لاندې امام بخاری رحمه الله هيڅ يو مرفوع حديث د خپل شرط مطابق ذکر نکړو.بعضې حضرات فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله بياض (خالی ځائې) پريخودې وو.چه يو مناسب روايت ملاو شی.نو هغه به اوليکی. خو موقعه ملاونشوه.بعضې حضرات فرمائی.چه دوی هيڅ بياض وغيره نه وو پريخودې.بلکه کوم آيات او آثار چه مذکور دی.هم ددې نه ئې په خپلې مدعی باندې استدلال کولو باندې اکتفاء کړې ده.(٤)

**اشتغال بالعلم د اشتغال بالنوافل نه افضل دې:** دلته دا هم ممکن ده.چه امام بخاری رحمه الله ددې ترجمة الباب نه يوې مسئلې طرف ته اشاره کړې وی.هغه مسئله دا ده.چه اشتغال بالعلم د اشتغال بالنوافل نه افضل دې.

**په دې مسئله کښې اختلاف:** په دې مسئله کښې معمولی شان اختلاف دې.د امام ابوحنيفه، امام مالك، سفيان ثوری، امام شافعی رحمهم الله رائې دا ده.چه علمی اشتغال په نوافلو کښې د مشغوليدو نه افضل دې.لکه چه د فقهٔ حنفی په کتابونو کښې دی.«طلب العلم والفقه إذا صحت النية أفضل من جميع أعمال البر، وكذا الإشتغال بزيادة العلم إذا صحت النية، لأنه أعم نفعاً، لكن شرط أن لا يدخل النقصان في فرائضه»(٥)

دغه شان ابن وهب رحمه الله فرمائی.«كنتُ عند مالك بن أنس فجاءت صلاة الظهر أو العصر، وأنا أقرأ عليه، و أنظر في العلم بين يديه، فجمعت كتبي، وقمت لأركع، فقال لي مالك، ما هذا؟ قلت: أقوم للصلاة، قال: إن هذا

---

(١) المصدر السابق)_
(٢) تفسير الطبرى(٢٣٣/١٣)_
(٣) فتح البارى(١٦٢/١)_
(٤) فتح البارى(١٦٢/١) و عمدة القارى(٤٣/٢)_
(٥) قاله البزازية. نقله ابن عابدين فى حاشية ردالمختار(٢٨٩/٥) كتاب الحظر والإباحة)_

لعجب، فما الذى قمت إليه بأفضل من الذى كنتُ فيه إذا صحت النية»(۱)

امام شافعی رحمه الله فرمائی: «طلب العلم أفضل من الصلاة النافلة»(۲)

امام سفیان ثوری رحمه الله فرمائی: «مامن عمل أفضل من طلب العلم إذا صحت النية»(۳) او هم دوی فرمائی: «لا أعلم من العبادة شيئاً أفضل من أن يعلم الناس العلم»(۴)

د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه تپوس اوکړې شو: «أى شئ أحب إليك؟ أجلس بالليل أنسخ أو أصلى تطوعا؟ قال: فنسخك «هكذا إلى الأصل، ولعل المعنى» «فنسخك مسألة» تعلم بها أمر دينك، فهو أحب»(۵)

خو د امام احمد رحمه الله یو مشهور روایت دا دې چه د فرائضو نه پس اوچته درجه د جهاد ده.لکه چه ابن قدامه رحمه الله نقل کړی دی: «قال أبوعبدالله: لا أعلم شيئاً من العمل بعد الفرائض أفضل من الجهاد»(۶)

بهرحال ائمه ثلاثه او جمهور علماء د علم د فضیلت قائل دی.د امام احمد بن حنبل رحمه الله یو روایت هم دا دې.او ددوی دویم روایت دا دې چه جهاد افضل دې.والله اعلم.

## ۱۱- ((بَاب مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُهُمْ بِالْمَوْعِظَةِ وَالْعِلْمِ كَيْ لَا يَنْفِرُوا))

**ما قبل باب سره مناسبت:** په ما قبل باب «باب العلم قبل القول والعمل» کښې د علم د حصول ترغیب او ددې د فضیلت بیان وو.په دې باب کښې د ، ،تخول علم، ، یعنی د علم په حصول کښې د رعایت ساتلو ذکر دې.چه ستړې والې او نفرت پیدا نشی.(۷)

**په حدیث باب کښې صرف د ،،وعظ،، ذکردې.په ترجمة الباب کښې د،،علم،، اضافه ولې اوکړې شوه؟:** امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې «يتخولهم بالموعظة والعلم» فرمائيلی دی.حالانکه په ترجمة الباب کښې د ، ،علم، ،ذکر نشته.ددې وجه دا ده.چه په حدیث کښې

---

(۱) جامع بیان العلم وفضله(۱۲۲/۱) رقم(۱۱۶)_

(۲) جامع بیان العلم وفضله(۱۲۳/۱) رقم(۱۱۸) وحلية الأولياء(۱۱۹/۹) وروى عنه بلفظ آخر: «ليس بعد أداء الفرائض شئ أفضل من طلب العلم. قيل له. ولا الجهاد فى سبيل الله؟ قال: «ولا الجهاد فى سبيل الله» تعليقات جامع بيان العلم و فضله(۱۲۳/۱)_

(۳) جامع بیان العلم وفضله(۱۲٤/۱) رقم(۱۱۹)_

(۴) جامع بیان العلم وفضله(۱۲٤/۱) رقم(۱۲۰)_

(۵) المجموع شرح المهذب(۲۱/۱) المقدمة. فصل: فى ترجيح الإشتغال بالعلم عى الصلاة والصيام وغيرهما من العبادات القاصرة على فاعلها.)_

(۶) المغنى لإبن قدامة (۱۲٤/۹) كتاب الجهاد رقم(۷٤۱۶)_

(۷) عمدة القاری(۴۳/۲)_

اګرچه صرف د ،،موعظة،، ذكر دي.د ،،علم،، ذكر نشته .خو چونكه وعظ هم يو قسم علم دي.نو مصنف رحمه الله د ،،تخول بالموعظة،، نه تخول بالعلم مستنبط كړې دې.او د ،،والعلم،، اضافه ئې كړې ده.([1])

د ،،كي لا ينفروا،، اضافه دغه شان امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب په آخر كښې د ،،كي لاينفروا،، اضافه كړې ده.دا اګرچه د باب د دويم حديث نه صراحت سره ثابت دي.خو ددې يوه فائده دا حاصله شوه.چه د باب په ړومبى حديث كښې د ،،سآمة،، تفسير معلوم شو.چه ددې نه مراد نفرت دې.په اصل كښې ،،سآمة،، ستړې كيدو ته وائې.او په ستړې كيدو باندې نفرت مرتب كيږى.په دې وجه ددې تفسير نفرت سره اوكړې شو.([2])

**د امام بخارى رحمه الله مقصد:** د امام بخارى رحمه الله مقصد ددې ترجمې نه دا دې.چه په وعظ و نصيحت او په تعليم او تبليغ كښې د سامعينو (اوريدونكو) د طبيعت او ستړې كيدو لحاظ ساتل پكار دى.كله چه نشاط (او طبيعت) وى.هغه وخت تعليم او تذكير (وعظ) كول پكار دى.اوكه نشاط نه وى.نو په داسې وخت كښې تعليم او تذكير كول پكار نه دى.هسې نه چه د علم نه نفرت پيدا شى.او د وعظ اوريدو نه طبيعت باندې بوج شى.

## حديث باب

۶۸-((حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ([3]) قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ فِي الْأَيَّامِ كَرَاهَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا))[۷۰ ، ۶۰۴۸]

## رجال الحديث

① **محمد بن يوسف:** دا محمد بن يوسف بن واقد ضبى فريابى (بكسر الفاء وسكون راء وبمثناة تحت، وبموحدة)([4]) رحمه الله دې.ابوعبدالله ددوى كنيت دې.([5])

دوى د يونس بن ابى اسحاق، فطر بن خليفه، اسرائيل بن يونس بن ابى اسحاق، ابراهيم بن ابى عبله، امام اوزاعى، مالك بن مغول، سفيان بن عيينه او خاص طور باندې د سفيان

---

[1] فتح البارى(۱۶۲۱۱)_

[2] فتح البارى(۱۶۲۱۱)_

[3] قوله:،،وعن ابن مسعود،، الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه(۱۶۱۱) كتاب العلم. باب من جعل لأهل العلم أياماً معلومة. رقم(۷۰) وفى (۹۴۹۱۲) كتاب الدعوات. باب الموعظة ساعة بعد ساعة. رقم(۶۴۱۱) ومسلم فى صحيحه(۳۷۷۱۲) كتاب صفة المنافقين. باب الإقتصاد فى الموعظة. والترمذى فى جامعه. فى كتاب الأدب. باب ماجاء فى الفصاحة والبيان. رقم(۲۸۵۵)_

[4] المغنى(ص۶۱)_

[5] تهذيب الكمال(۵۲۱۲۷، ۵۳)_

ثورى رحمه الله نه د حديثو علم حاصل كړې دې.
ددوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، امام احمد بن حنبل، محمد بن يحي ذهلى، اسحاق كوسج، احمد بن عبدالله عجلى، سلمه بن شبيب، محمد بن مسلم بن واره رحمهم الله وغيره حضرات دى.(١)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى: «كان الفريابى رجلا صالحا»(٢)
امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى چه فريابى د مؤمل بن اسماعيل، عبيدالله بن موسى، قبيصه او عبدالرزاق پشان ،،ثقه،، دې.(٣)

امام بخارى رحمه الله فرمائى: «حدثنا محمد بن يوسف وكان من أفضل أهل زمانه....»(٤)

ابو حاتم رحمه الله فرمائى: ،،صدوق ثقة،،(٥)

امام نسائى رحمه الله فرمائى: ،،ثقة،،(٦)

امام عجلى رحمه الله فرمائى: ،،ثقة،،(٧)
ددې توثيقاتو په مقابله كښې بعضو حضراتو ددوى په بعضو احاديثو باندې كلام كړې دې. لكه چه ابن عدى رحمه الله فرمائى: «له عن الثورى إفرادات»(٨)

دغه شان امام عجلى رحمه الله ددوى د توثيق كولو نه پس فرمائى: «وقال بعض البغداديين: أخطأ محمد بن يوسف فى خمسين ومائة حديث من حديث سفيان»(٩)

دغه شان امام ابن معين رحمه الله ددوى يو حديث ذكر كړې دې او فرمائيلى ئې دى: «هذا باطل»(١٠)

خو حافظ ذهبى رحمه الله د ابن عدى قول نقل كړې دې او فرمائيلى ئې دى: «قلت: لأنه لازمه مدة، فلا ينكر له أن ينفرد عن ذاك البحر»(١١)

---

(١) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(٢٧\٥٣-٥٥) وسير أعلام النبلاء (١٠\١١٤، ١١٥)_
(٢) تهذيب الكمال(٢٧\٥۶)_
(٣) تاريخ الدارمى عن يحى بن معين(ص۶٣) رقم(١٠١)_
(٤) تهذيب الكمال((٢٧\٥٧)_
(٥) تهذيب الكمال٢٧\٥٨)_
(٦) سير أعلام النبلاء(١٠\١١۶)_
(٧) سير أعلام النبلاء(١٠\١١۶) و تهذيب الكمال(٢٧\٥٩)_
(٨) الكامل لابن عدى(۶\٢٣٢)_
(٩) تهذيب الكمال(٢٧\٥٩)_
(١٠) هدى السارى(ص٤٤٢)_
(١١) ميزان الاعتدال(٤\٧١)رقم(٨٣٤٠)_

او حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن عدى او عجلي وغيره كلام نقل كولو نه پس فرمائي. «اعتمده البخاري لأنه انتقى أحاديث وميزها»[1]

خلاصه دا ده چه د حديثو جمهورو عالمانو ددوى توثيق كړې دې. تردې چه دكومو حضراتو نه په دوى باندې كلام منقول دې هغوى هم ددوى توثيق كوى.[2] او كوم حضرات چه كلام كوى هغوى ددوى په يو څو حديثونو باندې كلام كوى. په ټولو باندې نه كوى. بيا خصوصاً د صحيح بخارى په احاديثو باندې په دې وجه كلام نشى كيدې. چه هغه د امام بخارى رحمه الله براه راست ( بلا واسطه) شيخ دې. او په بعضو مقاماتو كښې يوې واسطې سره حديث نقل كوى. نو دوى ته چونكه د خپل شيخ په صحيح او سقيم ( متكلم فيه) رواياتو باندې علم شته. په دې وجه دوى د انتقاء او انتخاب او تميز نه پس حديث نقل كوى. والله اعلم.

**يوه اهمه فائده:** علامه كرماني رحمه الله په دې مقام باندې فرمائيلى دى. چه د حديث باب په دې سند كښې د ،،محمد بن يوسف،، نه ،، محمد بن يوسف بيكندى،، مراد دې. چه دده كنيت ابو احمد دې.[3]

علامه عينى، حافظ ابن حجر او علامه قسطلاني رحمهم الله دده ترديد كړې دې. اوليكلى ئې دى. چه دلته محمد بن يوسف فريابى مراد دې. او دا قاعده ئې نقل كړې ده. چه كوم ځائې كښې امام بخارى رحمه الله مطلقاً محمد بن يوسف فرمائي. او نسبت نه ذكر كوى. هلته ،،فريابى،، مراد وى. اګرچه دوى د ،،بيكندى،، نه هم روايت كړې دې.[4]

② **سفيان:** دا مشهور امام سفيان بن سعيد ثورى رحمه الله دې. ددوى حالات د كتاب الايمان «باب علامة المنافق» لاندې تير شوى دى.[5]

**فائده:** ياد ساتئ چه امام احمد رحمه الله دا حديث پخپل مسند كښې د ابن عيينه نه نقل كړې دې.[6] خو دلته سفيان ثورى مراد دې. ځكه چه فريابى اګرچه د دواړو شاګرد دې. خو چونكه سفيان ثورى رحمه الله سره دوى كافي وخت تير كړې وو. په دې وجه چه كله د ثورى نه روايت كوى. نو مطلقاً ئې ذكر كوى. نو فريابى چه كوم ځائې كښې ،،سفيان،، د نسبت نه بغير

---

[1] هدى السارى(۴۴۲)_

[2] د ابن معين او عجلي رحمهما الله توثيقات خو پورته نقل كړې شوى دى. ابن عدى رحمه الله فرمائي.،، وقد قدّم الفريابى فى سفيان الثورى على جماعة مثل عبدالرزاق و نظرائه. وقالوا: الفريابى أعلم بالثورى منهم..... والفريابى فيما تبين: هو صدوق لا بأس به . الكامل(۶/۲۳۲)_

[3] شرح الكرماني( ۲/۳۲)_

[4] عمدة القارى(۲/۴۴) وفتح البارى(۱/۱۶۲) و إرشاد السارى(۱/۱۶۸)_

[5] كشف البارى(۲/۲۷۸)_

[6] مسند أحمد(۱/۳۷۷( وفيه: حدثنا عبدالله و حدثنى أبى. ثنا سفيان...... و معلوم أن أحمد لم يرو عن الثورى. وإنما روى عن ابن عيينه. فإن ميلاده فى سنة ۱۶۴هـ وقد توفى الثورى فى ۱۶۱هـ .انظر حلية الأولياء (۹/۱۶۱، ۱۶۳)_

ذکر کړی. هلته به سفیان ثوری رحمه الله مراد وی.(۱)

③ الاعمش: دا مشهور امام حدیث، ابو محمد سلیمان بن مهران الاعمش الکوفی رحمه الله دی. ددوی حالات د کتاب الایمان «باب ظلم دون ظلم» لاندې تیرشوی دی.(۲)

④ ابووائل: دا مشهور مخضرم تابعی حضرت ابووائل شقیق بن سلمه اسدی کوفی رحمه الله دی. ددوی حالات هم د کتاب الایمان «باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لا یشعر» لاندې تیر شوی دی.(۳)

⑤ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه: د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حالات هم د کتاب الایمان «باب ظلم دون ظلم» لاندې تیر شوی دی.(۴)

**قوله: قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِالْمَوْعِظَةِ فِي الأَيَّامِ كَرَاهَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا:** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ به مختلفو ورځو کښې مونږ ته د نصیحت فرمائیلو دپاره زمونږ د احوالو رعایت ساتلو. ددې خطرې نه چه مونږ ستړی نشو. زمونږ طبیعت کښې نفرت پیدا نشی.

د ،،یتخولنا،، معنی: ،،یتخولنا،، د تخول نه مشتق دې. ددې معنی اصلاح کول او حفاظت کول دی.(۵) «المتخول: المتعهد».

علامه خطابی رحمه الله فرمائی: «الخائل: القائم بالأمر والمتعهد له، ویقال: فلان خائل مال، وخال مال، إذا کان حسن القیام علیه»(۶)

امام اصمعی رحمه الله فرمائی چه دا لفظ ،،یتخوننا،، دې.(۷) د ،،تخون،، معنی هم ،،تعهد،، او نګرانی کول دی.(۸) ددې ماخذ ،،خیانت،، دې او د ،،تخون،، معنی ،،إجتنب الخیانة،، ده. لکه چه وئیلې شی ،،تحنث،، او ،،تأثم،،: « أی إجتنب الحنث والإثم» ګویا په دې کښې د ،،تجنب،، خاصیت موجود دې.(۹)

---

(۱) فتح الباری(۱\۱۶۲) وعمدة القاری(۲\٤٤)_
(۲) کشف الباری(۲\۲۵۱)_
(۳) کشف الباری(۲\۵۵۹)_
(۴) کشف الباری(۲\۲۵۷)_
(۵) قال فی النهایة(۲\۸۸):..یتخولنا.. یتعهدنا، من قولهم: فلان خائل مال، وهوالذی یصلحه ویقوم به..)_
(۶) غریب الحدیث للخطابی(۲\٤۳۷) واعلام الحدیث(۱\۱۹٤)_
(۷) النهایة(۲\۸۸)و عمدة القاری(۲\٤۵)_
(۸) المصدر السابق)_
(۹) فتح الباری(۱\۱۶۲)_

فرمائي چه ابوعمرو بن العلا رحمه الله كله د امام اعمش نه ،،يتخوّلنا،، روايت كول واوريدل نو وي ونيل چه دا باللام نه دې بلكه بالنون دې امام اعمش رحمه الله ددوى خبرې طرف ته هيڅ توجه ورنكړله.[1]

دغه شان ابوعبيد هروى رحمه الله په ..كتاب الغريبين.. كښې د ابو عمرو شيباني نه نقل كړې دى هغوى به فرمائيل چه صحيح لفظ ،،يتحوّلنا،، (بالحاء المهملة واللام) دې چه ددې معنى ده «يتطلب أحوالنا التي تنشط فيها للموعظة».[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه رواياً ،،يتخوّلنا،، (بالخاء المعجمة و باللام) صحيح دې خاص طور په دې وجه هم چه امام اعمش ددې په روايت كولو كښې متفرد نه دې په راروان باب كښې ددوى متابعت منصور كوى اګرچه نورې دواړه كلمې هم د معنى په لحاظ صحيح دى خو كله چه د ،،يتخوّلنا،، معنى هم صحيح ده او لفظاً هم دا اصح دې نو په دې باندې هيڅ اعتراض كول پكار نه دى.[3]

**قوله:** كَرَاهَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا: دا مفعول له دې يعنى په مونږ باندې سترې كيدل راتلل به نبى كريم ﷺ نه خوښولو په دې وجه به ئې زمونږ د طبيعتونو رعايت ساتلو.

،،علينا،، يا خو ،،الطارئة،، محذوف سره متعلق دې چه دا به د ،،السآمة،، صفت وى يعنى «كراهة السآمة الطارئة علينا» يا داسې اووئيلې شى چه په ،،سآمة،، كښې چونكه د ،،مشقت،، معنى موجود ده په دې وجه دا ،،على،، سره متعدى كړې شوې دې او اصل صله محذوف ده چه هغه ،،من الموعظة،، دې اوس به تقدير د عبارت دا وى «كراهة السآمة من الموعظة النّازلة علينا».[4]

**د حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت.** د حديث باب ترجمة الباب سره منطبق كيدل ښكاره دى ځكه چه په ترجمه كښې د ،،تخول بالموعظة،، ذكر دې او په حديث باب كښې دا صراحت سره مذكور دې او په ترجمه كښې ،،كى لاينفروا،، دې په دې جزء باندې د حديث جمله «كراهة السّآمة علينا» دلالت كوى ځكه چه سترې كيدو باندې نفرت مرتب كيږى ګويا امام بخارى رحمه الله د ،،سآمة،، تفسير په ترجمة الباب كښې ذكركړې دې چه ددې نه نفرت مراد دې ،،كما بيّنا سابقاً،،

---

[1] فتح البارى(١٦٢١١، ١٦٣)_

[2] فتح البارى(١٦٣١١) وعمدة القارى(٤٥١٢)_

[3] فتح البارى(١٦٣١١)_

[4] فتح البارى(١٦٣١١)_

دا هم كيدې شي چه امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب رومبۍ حصه يعنى «التخول بالموعظة والعلم» ددې حديث نه ثابت كړې وى او دويمه حصه «كى لا تنفروا» نې د راوړو حديث نه ثابت كړې وى چه په هغې كښې ذكر دى «يسروا ولا تعسروا وبشروا ولا تنفروا» والله اعلم.

## حديث باب

۲۰- ((حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسٍ(١) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا وَبَشِّرُوا وَلَا تُنَفِّرُوا))[٥٧٧٤]

## رجال الحديث

① محمد بن بشار: دا د حديثو مشهور امام محمد بن بشار بن عثمان عبدى بصرى رحمه الله دې ابوبكر ددوى كنيت دې بندار ددوى لقب دې.(٢) د بندار معنى حافظ ده چونكه دې پخپله زمانه كښې د خپل وطن د حديثونو حافظ او جامع وو په دې وجه ددوى لقب بندار شو.(٣)

دوى د يزيد بن زريع، معتمر بن سليمان، عبدالعزيز بن عبدالصمد العمى. محمد بن جعفر غندر، بهز بن اسد، جعفر بن عون، حجاج بن منهال. روح بن عباده. ابوعاصم النبيل. عبدالرحمن بن مهدى. عفان بن مسلم، محمد بن عبدالرحمان الطفاوى. محمد بن عرعره. مكى بن ابراهيم، وكيع بن الجراح، يحي بن سعيد القطان. او ابوداؤد طيالسى رحمهم الله وغيره نه حديثونه روايت كړى دى.

ددوى نه روايت كونكو كښې اصحاب د اصول سته. ابراهيم حربى. بقى بن مخلد. ابو حاتم محمد بن ادريس الرازى، محمد بن اسحاق بن خزيمه. ابوزرعه. ابوالعباس السراج او زكريا ساجى رحمهم الله وغيره دى.(٤)

امام عجلى رحمه الله فرمائى: «بندار بصرى، ثقة، كثير الحديث»(٥)

---

(١) قوله: عن أنس: الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه(٢\٩٠٥) فى كتاب الأدب. باب قول النبي ﷺ: يسروا ولا تعسروا. رقم(٦١٢٥) ومسلم فى صحيحه(٢\٨٣) فى كتاب الجهاد والسير. باب تأمير الإمام الأمراء على البعوث ووصية إياهم بآداب الغزو وغيرها.)_

(٢) تهذيب الكمال(٢٤\٥١١)_

(٣) تهذيب الكمال(٢٤\٥١١) وسير أعلام النبلاء(١٣\١٤٤)_

(٤) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(٢٤\٥١١-٥١٤) وسير أعلام النبلاء(١٢\١٤٤، ١٤٥)_

(٥) تهذيب الكمال(٢٤\٥١٧) و سير أعلام النبلاء(١٢\١٤٦)_

امام ابن خزيمه رحمه الله پخپل كتاب التوحيد كښې فرمائي.«أخبرنا إمام أهل زمانه في العلم والأخبار محمد بن بشار.....»[1]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي.«صدوق»[2]

امام نسائي رحمه الله فرمائي.«صالح لا بأس به»[3]

امام ابن حبان رحمه الله فرمائي.«وكان ممن يحفظ حديثه ويقرؤه من حفظه»[4]

مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائي.«وكان ثقة مشهوراً»[5]

امام دارقطني رحمه الله فرمائي.«من الحفاظ الأثبات»[6]

البته عمروبن على الفلاس نه منقول دى.چه هغوى به د محمد بن بشار رحمه الله تكذيب كولو.[7]

خو محدثينو ددوى تكذيب نه دې قبول كړې.لكه چه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائي.«فما أصغى أحد إلى تكذيبه لتيقنهم أن بندارا صادق أمين»[8]

دغه شان عبدالله بن الدورقي فرمائي.«كنا عند ابن معين، وجرى ذكر بندار، فرأيت يحيى لا يعبأ به ويستضعفه»[9]او ابن الدورقي فرمائي.«ورأيت القواريري لا يرضاه»[10]

خو عالمانو دا جرح هم نه ده قبول كړې.لكه چه ابوالفتح ازدى رحمه الله فرمائي.«بندار كتب الناس عنه، وقبلوه، وليس قول يحيى والقواريري مما يجرحه، وما رأيت ذكره إلا بخير وصدق»[11]

حافظ ذهبى رحمه الله د يحي بن معين او د قواريرى په طرزعمل باندې تبصره كړې ده.او فرمائيلى ئې دى.«قد احتج به أصحاب الصحاح كلهم، وهو حجة بلا ريب»[12]

---

[1]) سير أعلام النبلاء(۱۲\۱٤٥)_

[2]) تهذيب الكمال(۲٤\٥۱۷). وسير أعلام النبلاء(۱۲\۱٤٦)_

[3]) تهذيب الكمال(۲٤\٥۱۷)وسير أعلام النبلاء(۱۲\۱٤۷)_

[4]) الثقات لابن حبان(۹\۱۱۱)_

[5]) تهذيب التهذيب(۹\۷۲)_

[6]) المصدر السابق)_

[7]) ميزان الإعتدال(۳\٤۹۰) وسير أعلام النبلاء(۱۲\۱٤۷) وتهذيب الكمال(۲٤\٥۱٥)_

[8]) ميزان الإعتدال(۳\٤۹۰) وقال الحافظ فى هدى السارى(ص٤۳۷) .و ضعفه عمرو بن عى الفلاس. ولم يذكر سبب ذالك. فما عرّجوا على تجريحه.)_

[9]) تهذيب الكمال(۲٤\٥۱٥. ٥۱٦) وسير أعلام النبلاء(۱۲\۱٤۷)_

[10]) المصدر السابق)_

[11]) المصدر السابق)_

[12]) ميزان الإعتدال(۳\٤۹۰)_

دغه شان د علی بن المدینی رحمه الله خوني عبدالله فرمائی. چه ما د خپل پلار نه د «حدثنا عبدالرحمن ابن مهدی، عن أبی بکر بن عیاش، عن عاصم عن زر، عن عبدالله، عن النبی ﷺ: تسحروا فإن فی السحور برکة»[1] په باره کښې تپوس اوکړو.نو علی بن المدینی رحمه الله اوفرمائیل «هذا کذب حدثنی أبوداؤد موقوفاً»او بیا دوی ددې سخت انکار اوکړو.([2])

خو ښکاره ده.چه دا جرح هم هیڅ قابل اعتناء (او قابل اعتبار) نه ده خکه چه

① اول خو ددې حدیث متن مرفوعاً صحیح سند سره ثابت دې.([3]) .

② دویمه دا چه پخپله امام علی بن المدینی دا موقوفاً روایت کوی.([4]) .

③ او دریمه داخبره هم ممکن ده.چه علی بن المدینی دلته د ..کذب.. کوم لفظ استعمال کړې دې.دا د ..خطاء.. په معنی کښې وی.خکه چه اهل حجاز دا د ..خطاء.. په معنی کښې استعمالوی.چه ددې تصریح ابن الانباری رحمه الله کړې ده.([5])

نو د علی بن المدینی رحمه الله ..هذا کذب.. وئیل، ددوی په تکذیب باندې قطعی نه دې بلکه خطاء باندې محمول دې.او ښکاره خبره ده.چه د یوې نیمې خطایۍ نه څوک هم نشی بچ کیدې.او نه د داسې قسمه خطایانو په وجه یو راوی مجروح کیدې شی.خاص طور باندې هغه راوی په کوم چه د اصول سته مصنفینو اعتماد کړې وی.او د پوره امت عالمانو دا حجت ګرځولې وی.والله اعلم.

---

[1]) أخرج بهذا السند النسائی فی سننه(۳۰۳\۱) کتاب الصیام. باب الحث علی السحور. وقال: وقفه عبیدالله بن سعید. ثم ذکر حدیث عبیدالله بن سعید.)_

[2]) تهذیب الکمال(۵۱۵\۲٤) وسیر أعلام النبلاء(۱٤۷\۱۲)_

[3]) هذا الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه(۲۵۷\۱) کتاب الصوم. باب برکة السحور من غیر إیجاب. رقم(۱۹۲۳) و مسلم فی صحیه(۳۵۰\۱) کتاب الصیام. باب فضل السحور وتاکید استحبابه. رقم(۱۰۹۵) والنسائی فی سننه(۳۰۳\۱) کتاب الصیام باب الحث فی السحور. والترمذی فی جامعه فی کتاب الصوم. باب ماجاء فی فضل السحور....رقم(۷۰۸) کلهم من حدیث أنس رضی الله عنه وقال الترمذی:.وفی الباب عن أبی هریرة. وعبدالله بن مسعود. و جابر بن عبدالله. و إبن عباس. و عمرو بن العاص. والعرباض بن ساریة. وعتبة بن عبدالله. و أبی الدرداء رضی الله عنهم .)_

[4]) وقد رواه عبیدالله بن سعید. شیخ النسائی أیضاً موقوفاً کما سبق تخریجه.)_

[5]) قال المرتضی الزبیدی رحمه الله فی تاج العروس(٤۵۱\۱): قال ابن الانباری. إن الکذب ینقسم إلی خمسة أقسام: إحداهن تغییر الحاکی ما یسمع. وقوله مالا یعلم نقلا و روایةً..... الثانی: أن یقول قولاً یشبه الکذب ولا یقصد به إلا الحق...... الثالث: بمعنی الخطء. وهو کثیرفی کلاهم.....والرابع: البطول. کذب الرجل: بمعنی بطل علیه أمله وما رجاه..... والخامس: بمعنی الإغراء.. وعلی الثالث (ای بمعنی الخطإ) خرّجوا حدیث صلاة الوتر: ..کذب أبومحمد.. أی خطأ. و فی التوشیح: أهل الحجاز یقولون: کذبت بمعنی ..أخطأت. وقد تبعهم فیه بقیة الناس.....)_

د محمد بن بشار رحمه الله وفات په ۲۵۲ھ کښې شوې دې.[1] ،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

③ **يحي بن سعيد:** دا مشهور امام سعيد بن يحي بن سعيد بن فروخ القطان تميمی رحمه الله دې ددوی حالات د کتاب الايمان «باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه» لاندې تيرشوی دی.[2]

④ **شعبه:** دا امام شعبة بن الحجاج رحمه الله دې ددوی حالات هم مختصر د کتاب الايمان «باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوی دی.[3]

⑤ **ابوالتياح:** داابوالتياح (بفتح المثناة الفوقانية و تشديد التحتانية، وآخره حاء مهملة)[4] يزيد بن حميد ضبعی بصری رحمه الله دې.[5]

دوی د حضرت انس بن مالك، عبدالله بن الحارث بن نوفل رضي الله عنهما نه علاوه د ابوعثمان نهدی، مطرف بن عبدالله بن الشخير، ابومجلز، ابوزرعه بجلی، او حسن بصری رحمهم الله وغيره نه حديثونه روايت کوی.ددوی نه په روايت کونکو کښې سعيد بن ابی عروبه، شعبه، همام، حماد بن سلمه، حماد بن يزيد، اسماعيل بن عليه او ابوهلال راسبی رحمهم الله وغيره حضرات دی.[6]

امام احمد رحمه الله فرمائی ،،ثبت ثقة ثقة،،[7]

امام يحي بن معين، ابوزرعه، نسائی رحمهم الله فرمائی ،،ثقة،،[8]

امام علی بن المدينی رحمه الله فرمائی ،،معروف،،[9]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی ،،صالح،،[10]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په ،،کتاب الثقات،، کښې ذکرکړې دې.[11]

ابن سعد رحمه الله فرمائی «وكان ثقة وله أحاديث»[12]

---

[1] تهذيب الكمال (۵۱۸\۲٤)_
[2] كشف البارى (۲\۲)_
[3] كشف البارى (۱\۶۷۸)_
[4] فتح البارى (۱\۱۶۳)_
[5] تهذيب الكمال (۳۲\۱۰۹)_
[6] د شيوخ او تلامذه دپاره اوگورئ: تهذيب الكمال (۳۲\۱۰۹. ۱۱۰) وسير أعلام النبلاء (۵\۲۵۱)_
[7] تهذيب الكمال (۳۲\۱۱۰) وسير أعلام النبلاء (۵\۲۵۲)_
[8] تهذيب الكمال (۳۲\۱۱۰. ۱۱۱)_
[9] المصدر السابق_
[10] المصدر السابق_
[11] الثقات لابن حبان (۵\۵۳٤)_
[12] الطبقات لابن سعد (۷\۲۳۸)_

امام حاکم رحمہ اللہ په ،،تاریخ نیسابور،، کښې لیکی ،،ثقة مامون،،[۱] ددوی وفات ۱۲۸ھ کښې شوې دې[۲] ،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

⑤ **انس رضی اللہ عنہ**: د حضرت انس بن مالک رضی اللہ عنہ حالات په کتاب الایمان کښې د ((باب من الایمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه)) لاندې تیرشوی دی.[۳]

**قوله قال یسروا ولا تعسروا وبشروا ولا تنفروا**: نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آسانی کوئ سختی مه کوئ خوشخبری ورکوئ نفرت مه پیدا کوئ.

**د عبارت تشریح** امام نووی رحمہ اللہ فرمائی چه د ،،یسروا،، نه پس د ،،لا تعسروا،، د تصریح فائده دا ده.که چرې یوکس سره صرف یو ځل د ،،یسر،، معامله شوې وی.او ځوځو ځله د ،،عسر،، شوې وی.نو په هغه به هم ،،یسروا،، صادقیږی. اوس ،،لا تعسروا،، فرمائیلو سره نې د ،،تعسیر فی جمیع الأحوال،، نفی اوکړله. هم دا خبره د ،،بشروا،، نه پس د ،،لا تنفروا،، اضافه کښې هم ده.[۴]

**د،،تبشیر،، په مقابل کښې د ،،تنفیر،، راوړلو نکته** حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی.چه د ،،یسر،، او ،،عسر،، په مینځ کښې خو تقابل شته.خو د ،،تبشیر،، او ،،تنفیر،، په مینځ کښې تقابل نشته. د ،،تبشیر،، مقابله ،،انذار،، سره ده.نو دلته د ،،تنفیر،، په ځائې د ،،انذار،، ذکر کول پکار وو.[۵]

ددې جواب پخپله حافظ رحمہ اللہ ورکړې دې.چه چونکه په ابتداء د تعلیم کښې ،،انذار،، (چه دا په حقیقت کښې اخبار بالشر دې) موجب د تنفیر وی. په دې وجه دلته د ،،بشارت،، په مقابله کښې ،،نفرت،، ذکر شوې دې[۶] او ،،تسکین،، د ،،تنفیر،، عن مقابل دې.

حضرت شیخ الهند رحمہ اللہ فرمائی.چه دلته د ،،بشروا،، په مقابله کښې د ،،انذار،، ذکر ځکه نه دې شوې.چه ،،انذار،، پخپله په تبشیر کښې داخل دې.او د مقصد په لحاظ سره انذار د بشارت مقابل او ددې ضد نه دې.بلکه د بشارت یو فرد دې.ددې وضاحت دا

---

[۱] تهذیب التهذیب (۱۱\۳۲۱)_

[۲] الکاشف (۲\۳۸۱) رقم (۶۲۹۲)_

[۳] کشف الباری (۲\۴)_

[۴] شرح النووی علی صحیح مسلم (۲\۸۲) کتاب الجهاد والسیر. باب تأمیر الإمام الأمراء علی البعوث و وصیته إیاهم بآداب الغزو وغیرها . وفتح الباری (۱\۱۶۳)_

[۵] فتح الباری (۱\۱۶۳)_

[۶] المصدر السابق)_ ددې نه علاوه د کتاب الادب په روایت کښې امام بخاری رحمہ اللہ د ..و سکنوا ولا تنفروا.. الفاظ نقل کړی دی.(صحیح البخاری (۲\۹۰۴) کتاب الأدب. باب قول النبی ﷺ: یسروا ولا تعسروا. رقم (۶۱۲۵)_

دې چه دلته په حديث شريف كښې د ،،يسّروا،،نه پس ،،لاتعسّروا،، او د ،،بشّروا،، نه پس ،،لا تنفّروا،، فرمائيلې شوى دى.ددې نه واضح طور باندې دا خبره معلوميږى.چه مقصد د يُسر او آسانتيا معامله ده.او د سختۍ نه بچكول دى.چه دا د نفرت لاره ده.نو د ،،بشروا،، معنى دا شوه چه سختۍ پيدا كولو سره خلقو كښې نفرت مه پيدا كوئ.بلكه په ښائسته تدبير سره ئې په كار باندې اولګوئ.ځكه چه مشكلاتو پيدا كولو سره مقصد فوت كيږى.او هركله چه مقصد په كارباندې لګول شو. نو شاباشې وركول، د احساناتو دباؤ اچول. او يرول او دهمكى وركول. او انذار نه كار اخستل او په لار راوستل ټول برابر دى.ځكه چه د طبيعتونو د مختلف كيدو په وجه ددوى د متاثره كولو طريقې مختلف كيږى.

بعضې خلق په مختصره شان خبره متاثره كيږى.بعضې په مختصر باندې صبر نه كوى. هغوى كښې د اطاعت جذبه پيدا كولو دپاره د الله تعالى د آحساناتو او د شپې ورځې نعمتونو تذكره كول پكار وى.بعضې طبيعتونه داسې وى.چه د انعاماتو او احساناتو تذكرې كولو سره نه متاثره كيږى.دوى لره په مقصد باندې راوستلو دپاره د تخويف او انذار او د وعيدونو اورولو، د يرولو او دهمكيانو ضرورت وى.معلومه شوه.چه ډير ځل انذار او تخويف هم بعضې ځايونو كښې د تبشير كار وركوى.نو ،،انذار،، د ،،تبشير،، مقابل او ضد نشو.بلكه په دې كښې شامل شو.(١)

حضرت علامه كشميرى رحمه الله ددې حديث مفهوم دا بيان كړې دې.چه انذار او بشارت يوځائې يوځائې اوساتلې شى.صرف وعيدونه اورول پكار نه دى.بلكه كوم ځائې چه د رحمت ذكر وى.هلته د نعمتونو تذكره هم وى.كوم ځائې چه تخويف وى.هلته د ترجيه (او اميد) معامله هم وى.چه خوف او رجاء (اميد) دواړه يوځائې وى.البته مناسب دا ده.چه د بشارت اړخ مقدم كړې شى.(٢)

**يو اهم وضاحت** يوه خبره په ذهن كښې كينول پكار دى.چه په حديث كښې د تيسير كوم حكم وركړې شوې دې.د هغې مقصد دا هيچرې نه دې.چه مداهنت اختيار كړې شى.چه يو شرعى منكر (او ناروا كار) اوكتلې شى.او هغه سره مصالحت كول، دا بالكل ناجائز دى.د نبى كريم ﷺ مقصد دا دې.چه د خلقو دين طرف ته راوستلو دپاره سختى اونكړې شى په نرمۍ او ملاطفت (مهربانۍ) سره دين طرف ته دعوت وركړې شى.

مداهنت بل څيز دې.په دې كښې صراط مستقيم باندې د راوستلو كوشش نه كيږى.هلته سړې دا كوى.چه كوم خلق كار كوى.هغوى كولو ته پريخودلې شى.مونږ ته د نكير (منع كولو) او تنبيه كولو يا د ترغيب او تذكير ضرورت نشته.نو ددې اجازت نشته.

---

(١) فضل البارى(١٢\٤٥، ٤٦)_

(٢) انوارالبارى(٣\٧٧)_

## ۱۲- ((بَابٌ مَنْ جَعَلَ لِأَهْلِ الْعِلْمِ أَيَّامًا مَعْلُومَةً))

**ما قبل باب سره مناسبت** په دواړو بابونو کښې مناسبت واضح دې.ځکه چه وړاندې باب کښې د ((تخول بالموعظة والعلم)) ذکر دې.چه سترې والې او نفرت نه وی په دې باب کښې ددې سترې والې او نفرت دفع کولو طريقه ښودلې کيږی.چه د علم دپاره مخصوص ورځې مقرر کړې شی.(١)

**د ترجمة الباب مقصد** چونکه د علم د حصول په سلسله کښې د زمانې يا مکان په اعتبار سره تعين شرعاً ثابت نه دې.په دې وجه داسې قسمه تعين سره د بدعت توهم پيدا کيږی.ددې د دفع کولو دپاره امام بخاری رحمه الله دا باب قائم کړې دې.او دا بيانول غواړی.که اهل علم د تعليم دپاره هفته کښې څه ورځ مخصوص او متعين کړی.نو دا تعين بدعت نه دې.په سنت کښې ددې اصل موجود دې. نبی کريم ﷺ به روزانه تعليم نه فرمائيلو د صحابه کرامو د طبيعت رعايت به ئې ساتلو.نو که معلم د متعلمينو (او شاګردانو) دپاره څه وختونه مقرر کړی. نو هيڅ باك نشته.(٢)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی.دا هم ممکن ده.چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې يوې نکتې طرف ته اشاره کړې وی.او هغه دا چه تعليم او تذکير دپاره څه ورځې مقررول، تقصير فی التبليغ (او کوتاهی) نه ده.(٣)

## حديث باب

۷۰-((حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ (٤) قَالَ كَانَ عَبْدُ اللَّهِ يُذَكِّرُ النَّاسَ فِي كُلِّ خَمِيسٍ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ لَوَدِدْتُ أَنَّكَ ذَكَّرْتَنَا كُلَّ يَوْمٍ قَالَ أَمَا إِنَّهُ يَمْنَعُنِي مِنْ ذَلِكَ أَنِّي أَكْرَهُ أَنْ أُمِلَّكُمْ وَإِنِّي أَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ كَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِهَا مَخَافَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا))[ر:٦٨]

## رجال الحديث

① عثمان بن ابی شيبه رحمه الله: دا عثمان بن محمد بن قاضی ابو شيبه ابراهيم بن عثمان عبسی کوفی رحمه الله دې.د مشهور محدث ابوبکر بن ابی شيبه رور دې.ابو شيبه ددوی د نيکه د ابراهيم کنيت دې.او ددوی د پلار نوم محمد دې (٥).عام طور باندې دوی په عثمان بن

---

(١) عمدة القاری(٢:٤٧)_
(٢) لامع الدراری(٢٣١٢)_
(٣) الأبواب و التراجم لصحيح البخاری(ص٤٢)_
(٤) (قد مر تخريجه قبل حديث)_
(٥) تهذيب الکمال(٤٧٨\١٩) وسير أعلام النبلاء(١٥٢\١١)_

ابى شيبه او ددوى رور په ابوبكر بن ابى شيبه نوم سره يادېږى.د علم د طلب په سلسله كښې ئې د مكې مكرمې او د رئ سفر اوكړو ډير حديثونه ئې اوليكل..مسند.. او ..تفسير.. ددوى علمى يادګار دې.(۱)

دوى د شريك بن عبدالله. جرير بن عبدالحميد. حميد بن عبدالرحمن. سفيان بن عيينه. طلحه بن يحي زرقى انصارى. عبدالله بن المبارك. عبدالرحمن بن مهدى. عبدة بن سليمان. عفان بن مسلم. قبيصه بن عقبه. ابو معاويه محمد بن خازم الضرير. هشيم بن بشير. وكيع بن الجراح او يزيد بن هارون رحمهم الله وغيره نه د حديثو روايت كړې دې.

ددوى نه امام بخارى. امام مسلم. امام ابوداوَد. امام ابن ماجه. ابو حاتم. ابراهيم حربى. بقى بن مخلد. ابو يعلى موصلى. ابو القاسم بغوى. محمد بن سعد او محمد بن يحي ذهلى رحمهم الله وغيره حضرات روايت كوى.(۲)

ابوبكر الاثرم د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه د عثمان بن ابى شيبه په باره كښې تپوس اوكړو نو وې فرمائيل.«ماعلمت إلا خيرا» او امام احمد رحمه الله ددوى تعريف اوكړو.(۳)

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى.،،ثقة مامون،،(۴)

ابو حاتم رحمه الله فرمائى.،،هوصدوق،،(۵)

امام عجلى رحمه الله فرمائى.،،عثمان كوفى ثقة،،(۶)

د محمد بن عبدالله بن نمير رحمه الله نه ددوى په باره كښې تپوس اوشو.نو وې فرمائيل.«سبحان الله! ومثله يُسئل عنه؟إنما يسئل هوعنا»(۷)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ..كتاب الثقات.. كښې ذكر كړې دې.(۸)

ددې توثيقاتو سره سره ددوى نه څه احاديث منكر هم رانقل دى.چه د هغې په وجه امام احمد رحمه الله څه نكير هم كړې دې.(۹) . خطيب بغدادى رحمه الله د هغې احاديثو تتبع (او تلاش) كړې دې.او يوځائې ئې جمع كړى دى.او دهغې عذر ئې هم بيان كړې دې.(۱۰)

---

۱) تهذيب الكمال(۱۹\۴۷۹)_

۲) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۹\۴۷۹ - ۴۸۱) وسير(۱۱\۱۵۲)_

۳) تهذيب الكمال(۱۹\۴۸۱) وسير أعلام النبلاء(۱۱\۱۵۲)_

۴) سير أعلام النبلاء(۱۱\۱۵۲)_

۵) تهذيب الكمال(۱۹\۴۸۲)_

۶) تهذيب الكمال(۱۹\۴۸۲)_

۷) تهذيب التهذيب(۷\۱۵۰)_

۸) الثقات لابن حبان(۸\۴۵۴)_

۹) هدى السارى(ص ۴۲۴) وميزان الإعتدال(۳\۳۶، ۳۷)_

۱۰) هدى السارى(ص ۴۲۴)_

سره ددې چه د علمی مقام او لوئې مرتبې مالك وو.ددوی په مزاج كښې د مزاح ماده وه ترديې چه د قرآن كريم په آيت كښې به ئې تصحيف كولو.او بيا به ئې د هغې توجيه كوله.[1] ،،سامحه الله تعالیٰ،،

په ۲۳۹ھ كښې ددوی وفات اوشو.[2] ،،رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة،،_

④ **جرير رحمه الله**:دا جريربن عبدالحميدبن قرط ضبی رازی دې.ابوعبدالله ددوی كنيت دې.[3] دوی د منصور بن المعتمر، عبدالملك بن عمير. بيان بن بشير. مغيره بن مقسم. عاصم الاحول. سليمان التيمی، امام اعمش. ليث بن ابی سليم. عطاء بن السائب. هشام بن عروه. او يحي بن سعيد انصاری رحمهم الله وغيره نه حديثونه روايت كړی دی.

ددوی نه روايت كونكو كښې ابو خيثمه زهير بن حرب.اسحاق بن راهويه .سليمان بن حرب. عبدالله بن المبارك. ابوبكر بن ابی شيبه. عثمان بن ابی شيبه. علی بن المدينی. قتيبه بن سعيد. محمد بن حميد رازی. محمد بن سلام بيكندی. يحي بن اكثم. يحي بن معين او ابوداؤد طيالسی رحمهم الله وغيره حضرات دی.[4]

امام يحي بن معين رحمه الله ددوی توثيق كړې دې.[5]

امام عجلی رحمه الله فرمائی.،،كوفی ثقة،،[6]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.،،جرير ثقة،،[7]

امام نسائی رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،[8]

عبدالرحمن بن يوسف بن خراش فرمائی.،،صدوق،،[9]

ابوالقاسم لالكائی رحمه الله فرمائی.((مجمع علی ثقته))[10]

ابن سعد رحمه الله فرمائی.((وكان ثقة كثير العلم ترحل إليه))[11]

---

[1])تهذيب الكمال(۱۹\٤٨٦) وميزان الإعتدال( ۳\۳۷) وسير أعلام النبلاء(۱۱\۱۵۲. ۱۵۳)_
[2])ميزان الإعتدال( ۳\۳۸)_
[3])تهذيب الكمال( ١٤\٥٤٠)_
[4]) دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال( ١٤\٥٤١- ٥٤٣) وسير أعلام النبلاء(۹\۱۰)
[5])تاريخ الدارمی(ص٥١) (رقم\٥٠١)و (ص ٦٠) (رقم\٨٨)_
[6])تهذيب الكمال( ١٤\٥٥٠)_
[7])المصدر السابق)_
[8])المصدر السابق)_
[9])المصدر السابق)_
[10])المصدر السابق)_
[11])الطبقات لابن سعد(٧\٣٨١)_

ابن عمار موصلي رحمه الله فرمائي «حجة كانت كتبه صحاحاً» (١)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په «كتاب الثقات» كښې ذكر كړې دې (٢)

ابو احمد الحاكم رحمه الله فرمائي «هو عندهم ثقة» (٣)

علامه خليلي په «الارشاد» كښې فرمائي «ثقة متفق عليه» (٤)

البته قتيبه دوى لره تشيع طرف ته منسوب كړې دې (٥) او بعضې حضرات فرمائي چه په آخرى عمر كښې ددوى په حافظه كښې تغير راغلې وو (٦)

ترکومه پورې چه حافظه كښې د تغير تعلق دې نو د امام يحي بن معين رحمه الله نه چه كله ددې په باره كښې تپوس اوكړې شو چه «كيف تروى عن جرير؟» نو وې فرمائيل «ألا تراه قد بين لهم أمرها» (٧) يعنى ددوى كوم حديثونه چه د عاصم الاحول او اشعث په واسطه نقل دى په هغې كښې اختلاط واقع شوې دې چه د هغې تعين شوې دې نو د جرير په احاديثو كښې هيڅ كلام نشته. والله اعلم.

په ١٨٨ھ كښې ددوى وفات اوشو (٨) «رحمه الله تعالى رحمة واسعة»

(٣) **منصور رحمه الله:** دا مشهور محدث ابو عتاب منصور بن المعتمر السلمى الكوفى رحمه الله دې (٩)

ددوى د ابو وائل، ربعى بن حراش، ابراهيم نخعى، امام مجاهد، سعيد بن جبير، امام شعبى، حسن بصرى، او عطاء بن ابى رباح رحمهم الله وغيره حضرات نه احاديث روايت كړى دى. ددوى نه ايوب سختيانى، امام اعمش، سليمان تيمى، شعبه، سفيان ثورى، قاضى شريك، ابوعوانه، معتمر بن سليمان، او سفيان بن عيينه رحمهم الله پشان ډيرو حضراتو احاديث روايت كړى دى (١٠)

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائي «أثبت أهل الكوفة منصور ثم مسعر» (١١)

---

(١) ميزان الإعتدال (١\٣٩٤) رقم (١٤٦٦)_

(٢) تهذيب التهذيب (٢\٧٧)_

(٣) تهذيب التهذيب (٢\٧٧)_

(٤) المصدر السابق)_

(٥) هدى السارى (ص٣٩٥) وتهذيب التهذيب (٢\٧٧)_

(٦) المصدر السابق)_

(٧) تهذيب التهذيب (٢\٧٦. ٧٧)_

(٨) تهذيب الكمال (٤\٥٥١)_

(٩) تهذيب الكمال (٢٨\٥٤٦. ٥٤٧)_

(١٠) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوگورئ: تهذيب الكمال (٢٨\٥٤٧ - ٥٤٩) وسير أعلام النبلاء (٥\٤٠٢. ٤٠٣)_

(١١) تهذيب الكمال (٢٨\٥٥٣)_

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى: ،،ثقة،،(١) او هم دوى فرمائى «الأعمش حافظ يدلس ويخلط، ومنصور أتقن منه لايخلط ولايدلس»(٢)

امام عجلى رحمه الله فرمائى: «كوفي ثقة، ثبت في الحديث، كان أثبت أهل الكوفة، وكان حديثه القدم، لايختلف فيه أحد، متعبد، رجل صالح»(٣)

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى: «منصور أثبت من الحكم بن عتيبة ومنصور من أثبت الناس»(٤)

امام يحي بن سعد القطان رحمه الله فرمائى: «كان منصور من أثبت الناس»(٥)

ش امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى: «حفاظ الكوفة أربعة، عمرو بن مرة، ومنصور، وسلمة بن كهيل، وأبوحصين»(٦)

امام سفيان ثورى رحمه الله فرمائى: «ماخلفت بعدى بالكوفة آمن على الحديث من منصور»(٧)

امام سعد رحمه الله فرمائى: «وكان ثقة مأمونا كثيرالحديث رفيعاً عالياً»(٨)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ،،كتاب الثقات،، كښې ذكركړې دې.(٩)

ددې تولو توثيقاتو په مقابله كښې امام عجلى او حماد بن زيد رحمهما الله ددوى په باره كښې ذكر كړى دى چه په دوى كښې تشيع وو. لكه چه امام عجلى رحمه الله فرمائى: «وكان فيه تشيع قليل ولم يكن بغال»(١٠)

او حماد بن زيد رحمه الله فرمائى: «رأيت منصور بن المعتمر صاحبكم، وكان من هذه الخشبية،(١١) وما أراه كان يكذب، قلت: القائل الذهبى: الخشبية: هم الشيعة»(١٢)

---

(١) المصدرالسابق)_
(٢) تهذيب الكمال(٢٨\٥٥٤)_
(٣) المصدرالسابق)_
(٤) تهذيب الكمال(٢٨\٥٥٢)_
(٥)سيرأعلام النبلاء(٥\٤٠٧)_
(٦)سيرأعلام النبلاء(٥\٤١٢)_
(٧) المصدرالسابق)_
(٨)الطبقات لابن سعد(٦\٣٣٧)_
(٩)الثقات لابن حبان( ٧\٤٧٣، ٤٧٤)_
(١٠)تهذيب التهذيب(١٠\٣١٥)_
(١١)قال الزبيدى فى تاج العروس(١\٢٣٤): ..والخشبية، محركة: قوم من الجهمية، قاله الليث، يقولون: إن الله تعالى لا يتكلم، وإن القرآن مخلوق، وقال ابن الأثير: هم أصحاب المختار بن أبى عبيد: ويقال: هم ضرب من الشيعة، قيل: لأنهم حفظوا خشبة زيد بن على حين صلب....وقال منصور بن المعتمر: إن كان من يحب عليا يقال له: خشبى فاشهدوا أنى ساحبه، قال الذهبى: قاتلوا مرة بالخشب فعرفوا بذالک.)_
(١٢)سيرأعلام النبلاء(٥\٤٠٨)_

خو اول خو پخپله دا حضرات فرمائي چه تشيع کم وو.او په دوی کښې غلو نه وه.او حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ((تشيعه حبّ وولاء فقط))[1]

په ۱۳۲ھ کښې دوی وفات شو.[2] رحمه الله تعالى رحمة واسعةً.

⑤ ابووائل رحمه الله: دا ابو وائل شقيق بن سلمه اسدي کوفي رحمه الله دې.ددوی حالات په کتاب الايمان کښې د ((باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر)) لاندې تير شوی دی.[3]

**قوله** كَانَ عَبْدُ اللهِ يُذَكِّرُ النَّاسَ فِي كُلِّ خَمِيسٍ : حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به هر زيارت خلقو ته نصيحت کولو.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه تذکره وړاندې په کتاب الايمان کښې د ((باب ظلم دون ظلم)) لاندې شوې ده.[4]

**قوله** فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ لَوَدِدْتُ أَنَّكَ ذَكَّرْتَنَا كُلَّ يَوْمٍ: دوی ته يوکس اووئيل اې ابو عبدالرحمن! زما خواهش دې چه تاسو مونږ ته روزانه نصيحت کوئ.

د ((رجل)) نه څوک مراد دې؟ ددې مبهم ((رجل)) نه مراد غالباً يزيد بن معاويه نخعي رحمه الله دې.[5] د کتاب الدعوات روايت نه هم دا معلوميږي.ځکه چه په هغې کښې ابو وائل فرمائي: ((كنا ننتظر عبدالله، إذ جاء يزيد بن معاوية فقلنا: ألا تجلس؟ قال: لا ولكن أدخل، فأخرج إليكم صاحبكم وإلا جئتُ أنا فجلست، فخرج عبدالله، وهو آخذ بيده، فقام علينا، فقال: أما إني أخبر بمكانكم، ولكنه يمنعني من الخروج إليكم، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يتخولنا بالموعظة في الأيام، كراهية السآمة علينا))[6]

په دې روايت کښې د يزيد بن معاويه نخعي ذکر راغلې دې.چه دوی حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په وعظ کولو باندې د راضي کولو کوشش کړې وو.په دې وجه عين ممکن ده.چه په روايت باب کښې د ((رجل)) نه مراد هم دوی وي.

روزانه وعظ کول مناسب نه دي

**قوله** قَالَ أَمَا إِنَّهُ يَمْنَعُنِي مِنْ ذَلِكَ أَنِّي أَكْرَهُ أَنْ أُمِلَّكُمْ وَإِنِّي أَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ كَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِهَا مَخَافَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا: وې فرمائيل چه د روزانه وعظ او نصيحت نه زما دپاره مانع دا دې چه ماته دا خوښه نه ده.چه زه تاسو په ستړی کيدو (او ستومانه کيدو) کښې مبتلا کړم.زه په نصيحت کولو کښې

---

[1] سير أعلام النبلاء(٤٠٧\٥)_
[2] تهذيب الكمال(٥٥٥\٢٨)_
[3] كشف الباري(٥٥٩\٢)_
[4] كشف الباري(٢٥٧\٢)_
[5] فتح الباري(١٦٤\١)_
[6] صحيح البخاري(٩٥٩\٢) كتاب الدعوات. باب الموعظة ساعة بعد ساعة. رقم(٦٤١١)_

ستاسو دپاره د موقعې او وخت رعایت کوم لکه څنګه چه به نبی کریم ﷺ زمونږه موقعه او وخت کتلو نومونږ ته به ئې نصیحت کولو هغوی ته هم دا یره وه چه مونږ ستړی نشو (او زمونږ نفرت پیدا نشی)

مطلب دا دې چه د کوم شوق اظهار تاسو کوئ په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې ددې نه زیات شوق او جذبه موجود وه.ددې باوجود به نبی کریم ﷺ په تعلیم او تذکیر کښې زمونږ د طبیعت لحاظ ساتلو.ستاسو ذوق او شوق د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ذوق او شوق برابر نه دې هرکله چه هغوی د زړه د تنګیدو لحاظ ساتلو او د تعلیم او موعظت عمل ئې جاری ساتلې دې نو زما دپاره څنګه مناسب کیدې شی چه بلا ناغه تعلیم او تذکیر جاری اوساتم لکه څنګه چه به د نبی کریم ﷺ د رغبت (او شوق) لحاظ ساتلو دغه شان زه هم رعایت کوم

## ۱۳- بَابٌ مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ

**ما قبل باب سره مناسبت** په تیرشوی باب کښې د هغه سړی حال مذکور دې چه هغه د تعلیم او تذکیر کار کوی.او خلقو ته ددین خبرې ښائی.هغوی په نفع او نقصان باندې پوهوی.چونکه دا کار د ،،فقیه فی الدین،، دې په دې وجه مذکوره باب کښې د ،،فقیه فی الدین،، تعریف فرمائی.([1])

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی.چه د ترجمة الباب او ددې لاندې د ذکرشوی حدیث نه دوه خبرې ښکاره کیږی:

① یودا چه ،،فقه فی الدین،، ډیر لوئې خیر دې.

② دویمه دا چه ،،فقه فی الدین،، د الله تعالی عطاء ده.ترڅو چه نبی کریم ﷺ هم ،،وإنما أنا قاسم،، فرمائیلو سره ډېل عذر ښکاره کوی.چه ددې نه د ،،فقه فی الدین،، عظمت او فضیلت ښکاره کیږی.([2])

## حدیثِ باب

۷۰- ((حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ([3]) خَطِيبًا يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1] عمدة القاری(۷٤۸\۱۲)_

[2] الأبواب و التراجم(ص٤٦)_

[3] قوله: ،،سمعت معاوية خطيباً،،: الحديث أخرجه البخاری أيضاً في صحيحه(۱۱\٤۳۹) في كتاب فرض الخمس. باب قول الله تعالى ﴿فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ﴾ رقم(۳۱۱٦) و(۱۱\٥١٤) كتاب المناقب. باب (بدون ترجمة، بعد باب سؤال المشركين أن يريهم النبي ﷺ آية فأراهم انشقاق القمر)رقم(۳٦٤۱) و(۱۲\۱۰۸۷) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة. باب قول النبي ﷺ: لاتزال طائفة من أمتي ظاهرين على الحق. رقم(۷۳۱۲) و(۱۲\۱۱۱۱) كتاب التوحيد. باب قول الله تعالى ﴿إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ﴾ رقم(۷٤٦۰) ومسلم في صحيحه (۱۱\۳۳۳) كتاب الزكاة. باب النهي عن المسألة و(۱۲\۱٤۳) كتاب الإمارة. باب قوله ﷺ: لاتزال طائفة من أمتي....و إبن ماجه في سننه(ص ۲۰) المقدمة. باب فضل العلماء الحث على طلب العلم. رقم(۲۲۱)

يَقُولُ مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللَّهُ يُعْطِي وَلَنْ تَزَالَ هَذِهِ الْأُمَّةُ قَائِمَةً عَلَى أَمْرِ اللَّهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ))[۸، ۲۹۴۸، ۳۴۴۲، ۶۸۸۲، ۷۰۲۲]

## رجال الحديث

① سعيد بن عفير رحمه الله: دا سعيد بن كثير بن عفير رحمه الله دي. كله كله نيكه طرف ته نسبت كولو سره سعيد بن عفير ونيلي كيږي. لكه څنګه چه دلته كښې هم داسې دي. ابو عثمان ددوى كنيت دي.[1] دوى د انصار د موالي څينو دي. په ۱۴۶ھ كښې ددوى ولادت اوشو.[2] دوى د امام مالك، ليث بن سعد، سليمان بن بلال، عبدالله بن لهيعه، عبدالله بن وهب. يحي بن ايوب او يعقوب بن عبدالرحمن اسكندراني رحمهم الله وغيره نه احاديث روايت كوي. ددوى نه په روايت كونكو كښې امام بخاري، امام ابن معين، عبدالله بن حماد آملي، يحي بن عثمان بن صالح، ابوالزنباع روح بن الفرج او احمد بن حماد زغبه رحمهم الله وغيره حضرات دي.[3]

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائي: ((لم يكن بالثبت، كان يقرأ من كتب الناس، وهو صدوق))[4]

امام ابن معين رحمه الله فرمائي: ((ثقة لا بأس به))[5]

امام نسائي رحمه الله فرمائي: ((سعيد بن عفير صالح))[6]

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ((وكان ثقة إماما من بحور العلم))[7]

امام حاكم رحمه الله فرمائي: ((إن مصر لم تخرج أجمع للعلوم منه))[8]

امام بن معين رحمه الله فرمائي: ((رأيت بمصر ثلاث عجائب: ألنيل، والأهرام، وسعيد بن عفير))[9]

حافظ ذهبي رحمه الله په دوى باندې تبصره كولو كښې ليكي: ((حسبك أن يحي إمام المحدثين انبهر لابن عفير))[10]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ..كتاب الثقات.. كښې ذكر كړې دې.[11]

---

[1] تهذيب الكمال(۱۱\۳۶. ۳۷)_
[2] سير أعلام النبلاء(۱۰\۵۸۳)_
[3] دشيوخ اوتلامذه دتفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۱\۳۷.۳۸) وسير أعلام النبلاء(۱۰\۵۸۳)
[4] تهذيب الكمال(۱۱\۳۸)_
[5] تهذيب التهذيب(٤\۷۵)_
[6] المصدر السابق)_
[7] سير أعلام النبلاء(۱۰\٥٨٤)_
[8] تهذيب التهذيب(٤\۷۵)_
[9] سير أعلام النبلاء(۱۰\٥٨٤)_
[10] المصدر السابق)_
[11] الثقات لابن حبان(۸\۲۶۶)_

ابن يونس رحمه الله فرمائى.«كان سعيد من أعلم الناس بالأنساب، والأخبار الماضية، وأيام العرب والتواريخ، كان فى ذالك كله شيئاً عجيباً، وكان مع ذالك أديباً فصيحاً، حسن البيان، حاضر الحجة، لا تمل مجالسة، ولا ينزف علمه، قال: وكان شاعراً مليح الشعر....»[1]

البته امام ابواسحاق سعدى جوزجانى رحمه الله ددوى په باره كښې فرمائيلى دى.«فيه غير لون من البدع، وكان مخلطاً غير ثقة»[2] خو ابن عدى رحمه الله ددوى په ترديد كښې ليكلى دى.«هذا الذى قاله السعدى لامعنى له، ولم أسمع أحداً، ولا بلغنى عن أحد من الناس كلاماً فى سعيد بن كثير بن عفير وهو عند الناس صدوق، ثقة، وقد حدث عنه الأئمة من الناس، إلا أن يكون للسعدى أراد به سعيد بن عفير آخر، وأنا لا أعرف سعيد بن عفير غير المصرى....»[3]

حافظ ابن عدى رحمه الله ددوى دوه منكر حديثونه نقل كړى دى.او فرمائيلى ئې دى.چه ماته سوا ددې دوو حديثونو نه زياتى بل كوم منكر روايت ملاو نشو. او په دې دواړو روايتونو كښې هم چه كوم نكارت راغلې دې.هغه ددوى د خوى عبدالله بن سعيد په وجه راغلې دې.ځكه چه سعيد بن عفير مستقيم الحديث دې.[4] حافظ ذهبى رحمه الله ددې دواړو حديثونو نه علاوه يو بل حديث هم ذكر كړې دې.چه هغه منكر دې.خو ددې نكارت سبب ئې ددوى استاذ يحي بن ايوب ګرځولې دې.[5]

او حافظ ذهبى رحمه الله دا هم فرمائى.«من كان فى سعة علم سعيد فلا غرو أن ينفرد....»[6] ـ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«لم يكثر عنه البخارى»[7] يعنى اول خو ددوى منكر احاديث د تميز يو څو حديثونه دى.چه دا متعين او معلوم دى.ددې نه علاوه امام بخارى رحمه الله ددوى نه كثرت سره روايتونه هم نه دى نقل كړى.

په ۲۲۶هـ كښې ددوى وفات اوشو.[8] ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

۴ ابن وهب رحمه الله: دا د حديثو او فقهې مشهور امام ابو محمد عبدالله بن وهب بن مسلم قرشى فهرى مصرى رحمه الله دې.[9]

---

[1]) تهذيب التهذيب(۱۱\۴۰)_

[2])الكامل لابن عدى(۴۱۱\۳)_

[3])المصدر السابق)_

[4])الكامل(۴۱۱\۳، ۴۱۲)_

[5]ميزان الإعتدال(۱۵۵\۲)_

[6])سير أعلام النبلاء(۵۸۵\۱۰)_

[7])هدى السارى(۴۰۶)_

[8]سير أعلام النبلاء(۵۸۶\۱۰)_

[9])تهذيب الكمال(۲۷۷\۱۶)_

دوی د ابن جریج، یونس بن یزید ایلی، حنظله بن ابی سفیان، امام مالك لیث بن سعد، ابن لهیعه، حرمله بن عمران، اسامه بن زید لیثی، حیوه بن شریح، موسی بن ایوب غافقی او افلح بن حمید رحمهم الله وغیره ډیر حضراتو نه روایت کوی ددوی نه روایت کونکو کښې ددوی د شیخ لیث بن سعد نه علاوه عبدالرحمن بن مهدی، احمد بن صالح، حارث بن مسکین، سحنون بن سعید، یحیی بن یحیی لیثی، یونس بن عبدالاعلی، اصبغ بن الفرج او سعید بن ابی مریم رحمهم الله وغیره ډیر حضرات دی.(۱)

عبدالله بن وهب رحمه الله په ۱۲۵ھ کښې پیدا شو (۲) د بعضو صغار تابعینو نه دوی ته لقاء حاصل ده.(۳)

**په دوی کښې د علم حاصلولو شوق څنګه پیدا شو؟** د خپل طالب علمۍ قصه ذکر کولو کښې فرمائی چه زه په شروع کښې عبادت طرف ته راغب ووم شیطان زما په زړه کښې وسوسه اچول شروع کړل او زه د حضرت عیسی علیه السلام په باره کښې سوچ کښې پریوتلم چه الله تعالی هغوی څنګه پیدا کړل داسې قسمه نورو سوالونو زما په زړه کښې ځائ اونیولو ما یو سړی ته شکایت اوکړو هغوی اوفرمائیل ،،أطلب العلم،، نو د هغوی دا ارشاد زما د علم طلب کونو سبب جوړ شو.(۴)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی:((عبدالله بن وهب صحیح الحدیث، یفصل السماع من العرض، والحدیث من الحدیث، ما أصح حدیثه وأثبته....))(۵)

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی:،،ثقة،،(۶)

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائی:((نظرت فی حدیث ابن وهب نحو ثمانین ألف حدیث، من حدیثه عن المصریین وغیرهم، فما أعلم أنی رأیت له حدیثا لا أصل له، وهو ثقة))(۷)

امام ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی:((هو صدوق صالح الحدیث))(۸)

امام ابن عدی رحمه الله فرمائی:((وعبدالله بن وهب من أجلة الناس ومن ثقاتهم....، ومن یکون له من

---

(۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال(۱۶\۲۷۷ ۲۸۲) وسیر أعلام النبلاء (۹\۲۲۳ ۲۲۵)_

(۲) سیر أعلام النبلاء.(۹\۲۲۳)_

(۳) سیر أعلام النبلاء.(۹\۲۲٤)_

(٤) جامع بیان العلم وفضله(۱\۱۲۹) باب تفضیل العلم علی العبادة. رقم(۱۲۸)_

(۵) تهذیب الکمال(۱۶\۲۸۲) والإنتقاء فی فضائل الأئمة الثلاثة الفقهاء.(ص۹۳)_

(٦) تهذیب الکمال(۱۶\۲۸۳) وسیر أعلام النبلاء.(۹\۲۲۶)_

(۷) الإنتقاء.(ص\۹٤) وتهذیب الکمال(۱۶\۲۸٤) وسیر أعلام النبلاء.(۹\۲۲۵)_

(۸) سیر أعلام النبلاء.(۹\۲۲۶) و تهذیب الکمال(۱۶\۲۸٤)_

الأصناف مثل ما ذكرته أستغنى أن يذكر له شئ، ولا أعلم له حديثاً منكراً إذا حدث عنه ثقة من الثقات»(١)

امام ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. او ليكلى ئې دى.

«وكان ممن جمع وصنف، وهو الذى حفظ على أهل الحجاز ومصر حديثهم، وعنى بجمع ما رووا من المسانيد والمقاطيع، وكان من العباد....»(٢)

ابن سعد رحمه الله فرمائى. «وكان كثير العلم، ثقة فيما قال، «حدثنا»،»(٣)

امام عجلى رحمه الله فرمائى. «مصرى، ثقة، صاحب سنة، رجل صالح، صاحب آثار»(٤)

امام نسائى رحمه الله فرمائى. «ثقة، ما أعلمه روى عن الثقات حديثاً منكراً»(٥)

ساجى رحمه الله فرمائى. «صدوق ثقة، وكان من العباد»(٦)

خليلى رحمه الله فرمائى. «ثقة متفق عليه»(٧)

امام مالك رحمه الله به ابن وهب په ،،مفتى مصر،، او ،،فقيه مصر،، القابو سره يادولو.(٨)

حافظ ابن عبد البر رحمه الله فرمائى. «يقولون إن مالكاً رحمه الله لم يكتب إلى أحد كتاباً يُعَنونُه بالفقيه إلا إلى ابن وهب»(٩)

البته ابن عدى رحمه الله دوى لره په ،،الكامل،، كښې ذكر كړې دې.(١٠) او په دې كښې ئې د يحيى بن معين نه نقل كړې دى. چه «ابن وهب ليس بذاك وابن جريج، كان يستصغره»(١١)

**د امام نسائى او امام احمد رحمهما الله جرح او د هغې ترديد.** امام نسائى رحمه الله فرمائى. «كان يتساهل فى الأخذ ولا بأس به»(١٢)

---

١) الكامل (٤\٢٠٥)_
٢) الثقات (٨\٣٤٦) بتصرف ما وقع فى هذه العبارة من التحريفات. وانظر تهذيب الكمال (١٦\٢٨٥) وميزان الإعتدال (٢\٥٢٣)_
٣) الطبقات لابن سعد (٧\٥١٨)_
٤) تهذيب التهذيب (٦\٧٣)_
٥) تهذيب التهذيب (٦\٧٤) وسير أعلام النبلاء (٩\٢٢٨)_
٦) تهذيب التهذيب (٦\٧٤)_
٧) المصدر السابق)_
٨) سير أعلام النبلاء (٩\٢٢٧) وتهذيب التهذيب (٦\٧٣. ٧٤)_
٩) الإنتقاء (ص ٩٤)_
١٠) الكامل (٤\٢٠٢)_
١١) الكامل (٤\٢٠٢)_
١٢) تهذيب التهذيب (٦\٧٤)_

او امام احمد رحمه الله نه چه کله تپوس اوشو «أليس كان سيئ الأخذ؟» نو دوی اوفرمائيل «بلی»(۱) ترکومه پورې چه د ابن معين رحمه الله کلام دې نو د جمهورو عالمانو د توثيقاتو نه علاوه د دوی خپل توثيق هم وړاندې تير شوې دې نو ددې توثيقاتو په مقابله کښې ددې جرح هيڅ حيثيت نه پاتې کيږی.

ترکومه پورې چه د امام احمد او امام نسائي رحمهما الله دوی لره د ''سيئ الأخذ'' يا د ''متساهل'' ګرخولو تعلق دې نو اول خو دا د تحمل حديث په يو مخصوص صورت باندې رڼ کول مقصود دی چه ددې د امام ابن وهب نه علاوه يو ډير لوئې جماعت قائل دې هغه صورت دا دې چه دوی د ''اجازت حديث'' په بنياد باندې د ''حدثنا'' په الفاظو سره دا صحيح کيدو قائل وو. او په دې باندې عامل وو.(۲)

بيا دويمه خبره دا هم ده چه کوم ځائې کښې امام احمد رحمه الله د دوی د ''سيئ الأخذ'' کيدو ذکر کوی هلته ورسره دا تصريح هم کوی. چه «ولكن إذا نظرت في حديثه وما روى عن مالك وجدته صحيحاً»(۳) «وفي بعض الروايات: ''وما روى عن مشائخه وجدته صحيحاً''»(۴)

او امام نسائی رحمه الله دوی لره اګرچه ''متساهل فی الاخذ'' ګرځولې دې خو هغوی پخپله فرمائی «ثقة، ما أعلمه روى عن الثقات حديثاً منكراً»(۵)

حافظ ابن عدی چه ددوی ذکر په ''الکامل'' کښې کړې دې چه دا د ضعفاء د تذکرې دپاره مخصوص دې په دې باندې حافظ ذهبی رحمه الله تنقيد کړې دې. او فرمائيلی ئې دی «تناكد(۶) ابن عدي بإيراده في الكامل»(۷)

حافظ ذهبی رحمه الله په دوی باندې تبصره کولو کښې بالکل صحيح فرمائيلی دی چه «وعبدالله: حجة مطلقاً، وحديثه كثير في الصحاح، وفي دواوين الإسلام، وحسبك بالنسائي وتعنته في النقد حيث يقول: وابن وهب ثقة، ما أعلمه روى عن الثقات حديثاً منكراً»(۸)

---

(۱) ميزان الإعتدال(۲/۵۲۳)_

(۲) قال الساجي:...وكان يتساهل في السماع. لأن مذهب أهل بلده أن الإجازة عندهم جائزة، ويقول فيها: حدثني فلان.. تهذيب التهذيب(۶/۷۴). وقال الذهبي في السير(۹/۲۳۱): هذا الفعل مذهب طائفة، و إن الرواية سائغة به. وبه يقول الزهري و إبن عيينة.. وقال في الميزان(۲/۵۲۱): هذا مذهب الجماعة، وإن كان علي عبدالله فيه عتب فابن عيينة شريكه فيه.)_

(۳) الانتقاء(ص۹۳)_

(۴) تهذيب الكمال(۱۶/۲۸۲) وسير أعلام النبلاء(۹/۲۲۶) وميزان الإعتدال(۲/۵۲۳)_

(۵) تهذيب التهذيب(۶/۷۴)_

(۶) تناكد القوم: تعاسروا وضايق بعضهم بعضاً. المعجم الوسيط(۲/۹۵۱)_

(۷) ميزان الإعتدال(۲/۵۲۱)_

(۸) سير أعلام النبلاء(۹/۲۲۸)_

او هم دوى فرمائى ((وقد تمعقل بعض الأئمة على ابن وهب في أخذه للحديث، وأنه كان يترخص في الأخذ، وسواء ترخص و رأى ذالك سائغاً أو تشدد، فمن يروى مائة ألف حديث، ويندر المنكر في سعة ماروى، فإليه المنتهى في الإتقان))[1]

**د قضاء عهده مسترد كولو حيله** ابن وهب رحمه الله لره حاكم وخت دقضاء عهدې قبلولو باندې مجبور كړو نو دوى پخپل خان باندې جنون راوستلو او په دې طريقه ئې د قضاء عهدې قبلولو نه انكار اوكړو.[2]

دابن وهب رحمه الله ډير تصنيفات دى په هغې كښې ..كتاب الجامع.. ..كتاب البيعة.. المناسك.. المغازى.. الردة.. او ..تفسير غريب الموطا.. مشهور دى.[3] دوى د امام مالك رحمه الله نه د موطا هم روايت كړې دې او د موطا په مشهورو نسخو كښې ددوى نسخه خاص اهميت لرى.[4]

**د وفات واقعه** ددوى د وفات واقعه داسې پيښه شوه چه ددوى په وړاندې ددوى خپل تصنيف ..أهوال القيامة.. اولوستلې شو ونيلې شى چه ړومبې بې هوشى او غورځه شان راغله او بيا هم په دې حال كښې وفات شو.[5]

ددوى د وفات كال ١٩٧هـ دې.[6] ..رحمه الله تعالى رحمة واسعة..

③ **يونس رحمه الله:**[7] دا يونس بن يزيد ايلى قرشى رحمه الله دې ددوى كنيت ابويزيد دې.[8]

دوى د ابن شهاب زهرى، نافع مولى د ابن عمر، قاسم بن محمد بن ابى بكر، عكرمه مولى ابن عباس، عمارة بن غزيه. او د خپل رور ابوعلى بن يزيد رحمهم الله وغيره نه روايت كوى ددوى نه ليث بن سعد، يحى بن ايوب، نافع بن يزيد، اوزاعى، جرير بن حازم، عبدالله بن المبارك، بقية بن الوليد، سليمان بن بلال او محمد بن فليح رحمهم الله وغيره ډير حضرات روايت كونكى دى.[9]

دوى د امام زهرى رحمه الله په خدمت كښې دولس يا څوارلس كاله پاتې شوى دى.[10]

---

[1] المصدر السابق)_

[2] سير أعلام النبلاء (٩\٢٢٤)_

[3] سير أعلام النبلاء (٩\٢٢٥)_

[4] مقدمة التعليق الممجد (ص١٨) ومقدمة أوجز المسالک (١\٣٦)_

[5] الانتفاء (ص ٩٤) وسير أعلام النبلاء (٩\٢٢٦)_

[6] الكاشف (١١\٦٠٦) رقم (٣٠٤٨)_

[7] ددوى مختصر ترجمه په كشف البارى (١\٤٦٣) كښې تيره شوې ده._

[8] تهذيب الكمال (٣٢\٥٥١، ٥٥٢) وسير أعلام النبلاء (٦\٢٩٧)_

[9] دشيوخ اوتلامذه دتفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال (٣٢\٥٥٢، ٥٥٣) وسير أعلام النبلاء (٦\٢٩٨)

[10] تهذيب الكمال (٣٢\٥٥٣)_

امام ابن مبارک او عبدالرحمن بن مهدی رحمهما اللہ فرمائی: ((کتابه صحیح))[1]
امام احمد رحمہ اللہ فرمائی: ((یونس أکثر حدیثاً عن الزهری من عقیل، وهما ثقتان))[2]
امام ابن معین رحمہ اللہ فرمائی: ((أثبت الناس فی الزهری: مالك ومعمر ویونس، و.....، و.....))[3]
او امام ابن معین رحمہ اللہ فرمائی: ((یونس ثقة))[4]
امام احمد بن صالح رحمہ اللہ فرمائی: ((نحن لا نقدم فی الزهری علی یونس أحداً))[5]
امام عجلی او امام نسائی رحمهما اللہ فرمائی: ((ثقة))[6]
یعقوب بن شیبه رحمہ اللہ فرمائی: ((صالح الحدیث، عالم بحدیث الزهری))[7]
ابو زرعه رحمہ اللہ فرمائی: ((لا بأس به))[8]
ابن خراش رحمہ اللہ فرمائی: ((صدوق))[9]
حافظ ذهبی رحمہ اللہ فرمائی: ((الإمام الثقة المحدث....))[10]
او هم دوی فرمائی: ((ثقة حجة))[11]
حافظ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی: ((ثقة، إلا أن فی روایته عن الزهری وهماً قلیلاً، وفی غیر الزهری خطأ))[12]
ابن حبان رحمہ اللہ دوی لره په ((کتاب الثقات)) کښې ذکر کړی دی.[13]
**د بعضو امامانو جرح او د هغې تردید:** البته ابن سعد رحمہ اللہ فرمائی: ((وکان حلو الحدیث، کثیره، ولیس بحجة، وربما جاء بالشیء المنکر))[14]

---

[1])تهذیب الکمال(۳۲\۵۵۴)_
[2])تهذیب الکمال(۳۲\۵۵۵)_
[3])المصدر السابق)_
[4])تاریخ الدارمی(ص۴۵) رقم\۲۱)_
[5]) تاریخ الدارمی(ص۴۶)رقم\۲۴)_
[6])تهذیب الکمال(۳۲\۵۵۷)_
[7])المصدر السابق)_
[8]) المصدر السابق)_
[9])المصدر السابق)_
[10])سیر أعلام النبلاء(۶\۲۹۷)_
[11])میزان الإعتدال( ۴\۴۸۴) رقم( ۹۹۲۴)_
[12])تقریب التهذیب(ص ۶۱۴) رقم(۷۹۱۹)_
[13])الثقات لإبن حبان( ۷\۶۴۸، ۶۴۹)_
[14])الطبقات لإبن سعد(۷\۵۲۰)_

دغه شان امام وكيع رحمه الله دوى لره ،،سيئ الحفظ،، گرځولي دي.[1]
او امام احمد رحمه الله ددوى ځينې احاديث منكر گرځولي دى.[2]
خو حافظ ذهبى رحمه الله د ابن سعد او وكيع دواړو حضراتو جرحې رد كړې دى لكه چه دوى فرمائى.«ثقة حجة، شذ ابن سعد في قوله: ليس بحجة، وشذ وكيع فقال: سيئ الحفظ».[3]
تركومه پورې چه د امام احمد رحمه الله دهغوى د بعضو احاديثو منكر گرځولو تعلق دې نو كوم بو چه مكثر راوى وى نو د هغه په احاديثو كښې څه نه څه منكر احاديث هم موجود وى او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«وثقه الجمهور مطلقاً، وإنما ضعفوا بعض روايته حيث يخالف أقرانه أو يحدث من حفظه، فإذا حدث من كتابه فهو حجة».[4]
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.«قد احتج به أرباب الصحاح أصلاً وتبعاً».[5]
او ابن سعد رحمه الله چه «ربما جاء بالشئ المنكر» فرمائيلى دى په دې باندې رد كوى او فرمائى.«ليس ذاك عند أكثر الحفاظ منكراً، بل غريب».[6]
په ۱۵۹ھ كښې وفات شو.[7]،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

④ ابن شهاب رحمه الله: د امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهرى رحمه الله مختصر حالات د ،،بدء الوحى،، د دريم حديث لاندې تير شوى دى.[8]

⑤ حميد بن عبدالرحمن رحمه الله: دا ابو ابراهيم بن حميد عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دې ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د«باب تطوع قيام رمضان من الإيمان» لاندې تيرشوى دى.[9]

⑥ حضرت معاويه رضي الله عنه: دا امير المؤمنين ابو عبدالرحمن معاويه بن ابى سفيان صخر بن حرب بن اميه بن عبدشمس بن عبدمناف بن قصى بن كلاب قرشى اموى مكى رضي الله عنه دې.[10]

---

[1] سير أعلام النبلاء(۶\۲۹۸)_
[2] أنكر أبو عبدالله على يونس. فقال: كان يجيء عن سعيد بأشياء ليست من حديث سعيد. وضعّف أمر يونس.وقال لم يكن يعرف الحديث. وروى الميمونى عن أحمد قال: روى يونس أحاديث منكرة. سير أعلام النبلاء.(۶\۲۹۹)_
[3] ميزان الإعتدال( ۴\۴۸۴) رقم( ۹۹۲۴)_
[4] هدى السارى(ص۴۵۵)_
[5] سير أعلام النبلاء.(۶\۳۰۰)_
[6] سير أعلام النبلاء.(۶\۳۰۰)_
[7] الكاشف(۲\۴۰۴) رقم( ۶۴۸۰)_
[8] كشف البارى(۱\۳۲۶)_
[9] كشف البارى(۲\۳۱۶)_
[10] تهذيب الكمال(۲۸\۱۷۶. ۱۷۷) وسير أعلام النبلاء.(۳\۱۱۹. ۱۲۰)_

ددوی مور حضرت هند بنت عتبه بن ربیعه بن عبدشمس بن عبد مناف بن قصی رضی الله عنها ده، (۱) ونیلی شی چه دوی د خپل پلار نه وړاندې د عمرة القضاء په موقع باندې مسلمان شوی وو خو د خپل مورپلار یره ورسره وه په دې وجه ئې اظهار نشو کولې تردې چه د فتح مکې په موقعه باندې دوی اسلام ښکاره کړو. (۲)

د نبی کریم ﷺ نه علاوه حضرت ابوبکر(رض)، حضرت عمر(رض) او د خپلې خور حضرت ام المؤمنین ام حبیبه رضی الله عنها نه روایت کوی. ددوی نه روایت کونکو کښې د تابعینو نه سعید بن المسیب، ابو صالح السمان، ابو ادریس خولانی، ابو سلمة بن عبدالرحمن، عروة بن الزبیر، سالم بن عبدالله، محمد بن سیرین، سعید مقبری رحمهم الله وغیره حضرات دی. د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه حضرت ابن عباس، حضرت جریر، حضرت ابوسعید، حضرت نعمان بن بشیر او حضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنهم ددوی نه روایات اخستې دی. (۳)

حضرت معاویه رضی الله عنه ته د نبي کریم ﷺ سره د قرابت (رشته دارئ) تعلق سره د کاتب وحی کیدو شرف هم حاصل دې. (۴)

**حضرت معاویه رضی الله عنه دپاره د نبی کریم ﷺ دعاګانې** حضرت عبدالرحمن بن ابی عمیره مزنی رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه نقل کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل «**أللهم علمه الکتاب والحساب وقه العذاب**» (۵)

حضرت مسلمه بن مخلد رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل دي «**أللهم علمه الکتاب، و مکّن له فی البلاد، وقه العذاب**» (۶)

د حضرت عبدالرحمن بن ابی عمیره رضی الله عنه نه نقل دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل «**أللهم اجعله هادیاً مهدیاً واهد به**» (۷)

حضرت یونس بن میسره نه نقل دی چه نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما ته خطاب اوکړو او د حضرت معاویه رضی الله عنه په سلسله کښې ئې اوفرمائیل «**أحضروه أمرکم، و أشهدوه أمرکم، فإنه قوی أمین**» (۸)

---

(۱) المصدر السابق)_
(۲) المصدر السابق)_
(۳) دشیوخ اوتلامذه دتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال(۲۸\۱۷۷. ۱۷۸) وسیر أعلام النبلاء(۳\۱۲۰)
(۴) روی أحمد فی مسنده(۱\۳۳۵) عن ابن عباس:......قال: اذهب فادع لی معاویة. قال: وکان کاتبه...... أنظر سیر أعلام النبلاء(۳\۱۲۳)_
(۵) سیر أعلام النبلاء(۳\۱۲٤)_
(۶) سیر أعلام النبلاء(۳\۱۲۵) وانظر مجمع الزوائد(۹\۳۵۶)_
(۷) جامع الترمذی. کتاب المناقب. باب مناقب لمعاویة بن ابی سفیان رضی الله عنه رقم(۳۸٤۲) ومسند احمد(٤\۲۱۶)
(۸) سیر أعلام النبلاء(۳\۱۲۷) وانظر مجمع الزوائد(۹\۳۵۶)_

يو خل نبى كريم ﷺ حضرت معاويه رضي الله عنه خپل خان سره رديف جوړ كړو او كينولو او تپوس ني اوكړو ،، ما يليني منك؟،، نو دوى عرض اوكړو ،،يلي يا رسول الله ﷺ،، نبى كريم ﷺ اوفرمائيل ،،اللهم املأه علما،، په بعضو رواياتو كښې د ،،وحلما،، اضافه هم ده.[1]

**په سياست او حكومت كښې د حضرت معاويه رضي الله عنه حصه** حضرت معاويه رضي الله عنه د خپل رور حضرت يزيد بن ابى سفيان رضي الله عنه نه پس د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كښې د شام گورنر جوړ شو. د حضرت عمر رضي الله عنه نه پس حضرت عثمان رضي الله عنه دوى لره پخپل حال گورنر اوساتلو. دغه شان تقريبا شل كاله هغه په دې عهده باندې فائز پاتې شو.[2]

حضرت عمر رضي الله عنه ته د مملكت د انتظام په سلسله كښې ددوى په صلاحيتونو باندې زبردست اعتماد وو. يو خل ني حضرت معاويه رضي الله عنه طرف ته اوكتل او وې فرمائيل ((هذا كسرى العرب))[3] او هم دوى فرمائى ((تعجبون من دهاء هرقل وكسرى وتدعون معاوية؟))[4]

حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه فرمائى ((ما رأيت أحداً بعد عثمان أقضى بحق من صاحب هذا الباب، يعني معاوية))[5]

قبيصه بن جابر رضي الله عنه فرمائى ((صحبت معاوية فما رأيت رجلاً أثقل حلماً، ولا أبطأ جهلاً، ولا أبعد أناة منه))[6] حضرت على رضي الله عنه ارشاد فرمائى ((لاتكرهوا إمرة معاوية، فلو قد فقدتموه لرأيتم الرؤوس تندر عن كواهلها))[7]

د ،،**مشاجرات صحابه** رضي الله عنهم،، **حكم** د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه پس چه د حضرت على او حضرت معاويه رضي الله عنهما په مينځ كښې كوم څه واقعات مشاجرات (اختلافات) راپيښ شو. د هغې په باره كښې د اهل سنت والجماعت فيصله هم دا ده. چه حضرت على رضي الله عنه په حق باندې وو. او حضرت معاويه رضي الله عنه ته اجتهادى لغزش (او خطاء) واقع شوې وو.[8] خو ددې مشاجراتو (او اختلافاتو) په بنياد باندې هيڅ چاته د بد وئيلو هيڅ گنجائش نشته. لكه څنگه چه د نورو صحابه كرامو حضراتو په باره كښې مونږه دا وايو چه دا حضرات اگرچه معصوم نه دى. ددوى نه د خطاء صدور نه صرف دا چه واقع كيدې شى. بلكه د بعضو نه

---

[1] سير أعلام النبلاء (۱۲۷\۳)_
[2] تهذيب الكمال (۱۷۸\۲۸، ۱۷۹)_
[3] سير أعلام النبلاء (۱۳٤\۳)_
[4] المصدر السابق)_
[5] سير أعلام النبلاء (۱۵۰\۳)_
[6] سير أعلام النبلاء (۱۵۳\۳)_
[7] سير أعلام النبلاء (۱٤٤\۳)_
[8] انظر سير أعلام النبلاء (۱۲۸\۳)_

صدور شوې هم دې خو ټول صحابه ددې دنيا نه په داسې حالت كښې تلى دى.( وفات شوى دى) چه الله ﷻ ددوى نه راضى وو او هغوى ټول په ټوله جنتيان دى.(١)

نو په دې سلسله كښې د حضرت معاويه رضي الله عنه يا د بل كوم صحابى تذكره غلط طور باندې كولو سره خپل آخرت مه بربادوئ.

په ٤٠هـ كښې كله حضرت على رضي الله عنه شهيد شو حضرت حسن رضي الله عنه د حضرت معاويه رضي الله عنه سره صلح اوكړله او د هغوى په لاس باندې ئې بيعت اوكړو په دې طريقه حضرت معاويه رضي الله عنه متفقه طور باندې امير منتخب شو.ددې نه پس ئې مسلسل شلو كالو پورې حكومت اوكړو.(٢)

**د حضرت معاويه رضي الله عنه وصيت** كله چه د وفات وخت رانيزدې شو نو تپوس ترې اوكړې شو چه تاسو څه وصيت كول غواړئ؟ نو وې فرمائيل «**اللهم أقل العثرة، واعف عن الزلة، وتجاوز بحلمك عن جهل من لم يرج غيرك، فما وراءك مذهب**» ددې نه پس ئې دا شعر اوونيل~

**هو الموت لا منجى من الموت والذى — نحاذر بعد الموت أدهى وأفظع** (٣)

(مرګ يو داسې اټل حقيقت دې چه ددې نه هيڅ تيخته نشته بيا چه د مرګ نه روستو كومو خطراتو يره ده. هغه خو ډير زيات هولناك او تكليف وركونكى دى).

ددې نه پس ئې وصيت اوفرمائيلو «**كنتُ أوضئ رسول الله ﷺ، فنزع قميصه و كسانيه، فرفعته، وخبأت قلامة أظفاره، فإذا مت فألبسوني القميص على جلدي، واجعلوا القلامة مسحوقة في عيني، فعسى الله أن يرحمني ببركتها**» (٤)

**د حضرت معاويه رضي الله عنه نه د نقل شوو احاديثو تعداد** د حضرت معاويه رضي الله عنه نه ټول يوسل ديرش حديثونه نقل دى.چه په دې كښې متفق عليه حديثونه څلور دى.او بخارى په څلورو حديثونو سره او مسلم پنځو حديثونو سره متفرد دې.(٥)

په رجب ٦٠هـ كښې ددوى وفات اوشو (٦)،، **رضى الله عنه وأرضاه، وأدخله فسيح جناته**،،_

---

١ قال السخاوي في فتح المغيث (٩٣/٤) وهم رضي الله عنهم باتفاق أهل السنة. عدول كلهم مطلقاً. كبيرهم وصغيرهم. لابس الفتنة أو لا. وجوباً لحسن الظن بهم. ونظراً إلى ماتمهد لهم من المآثر من امتثال أوامره بعده ﷺ و فتحهم الآقاليم. وتبليغهم عنه الكتاب والسنة وهداية الناس. ومواظبتهم على الصلوات. والزكوات. و أنواع القربات. مع الشجاعة. والبراعة. والكرم. والإيثار. والأخلاق الحميدة التى لم تكن فى أمة من الأمم المتقدمة. وانظر المحلى لابن حزم (٦٥/١١)_

٢ سير أعلام النبلاء (١٣٧/٣)_

٣ سير أعلام النبلاء (١٦٠/٣)_

٤ سير أعلام النبلاء (١٢٦/٣)_

٥ سير أعلام النبلاء (١٢٦/٣) وخلاصة الخزرجى (ص ٣٨١)_

٦ خلاصة الخزرجى (ص ٣٨١)_

**قوله عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ:** دلته امام زهری رحمه الله ،،قال حمید بن عبدالرحمن،، ونیلو سره روایت کوی حالانکه په ..کتاب الاعتصام.. کښې د ،،اخبرنی حمید،، الفاظ دی.(۱) او د مسلم په روایت کښې د ((حدثنی حمید بن عبدالرحمن بن عوف)) الفاظ راغلی دی (۲) معلومه شوه چه دا حدیث تحدیث او اخبار سره نقل دې نو د انقطاع احتمال ختم شو

**قوله سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ خَطِيبًا يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ يُرِدْ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ:** ما د حضرت معاویه رضی الله عنه نه واوریدل چه خطبه ئې ورکوله.هغه فرمائی چه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه واوریدل چه فرمائیل یې ..چا سره چه الله تعالی دخیر اراده اوفرمائی.هغه ته فقه فی الدین ورکوی..

**په عموم د ،،من،، باندې اشکال او دهغې جواب** بعضې حضرات فرمائی.چه په ،،من یرد الله به خیرا....،، کښې که ..من.. عموم باندې محمول نکړې شی.بیا خو اشکال نه کیږی.خکه چه په دې صورت کښې به د ،،بعض من أرید له الخیر،، په معنی کښې شی.اوکه ..من.. پخپل عموم باندې اوساتلې شی.نو بیا اشکال کیږی.چه کوم ماشوم د بالغ کیدو نه وړاندې د ایمان په حالت کښې مړ شوې وی.نو هغه سره د خیر اراده متعلق کیدل معلوم او منلی شوی دی.حالانکه هغه ته فقه فی الدین حاصل نشو؟
ددې جواب ورکړې شوې دې.چه د اکثرو عموماتو پشان دا هم عام مخصوص منه البعض دې.او مطلب دا دې.،،من یرد الله به خیرا خاصا....،، ګویا چه دلته صفت محذوف دې.(۳)
علامه سندهی رحمه الله فرمائی.چه غوره توجیه دا ده.چه په ..خیر.. کښې تنوین په تعظیم باندې محمول کړې شی.اوس به مطلب دا وی.((من یرد الله به خیرا عظیما یفقهه فی الدین)) اوس هیڅ اشکال نه کیږی.
او دوی فرمائی.چه دا هم ممکن ده.چه ..خیر.. مطلق اوساتلې شی.او غیرفقیه فی الدین د فقیه په مقابله کښې د عدم په درجه کښې اوګنړلې شی.په دې صورت کښې به دا کلام مبالغة باندې محمول وی.ګویا چه کوم کس ته فقه فی الدین ورنکړې شو.هغه سره دخیر اراده اونکړې شوه.(۴)

---

۱ صحیح بخاری(۱۰۸۷\۲) کتاب الإعتصام بالکتاب والسنة. باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: لاتزال طائفة من أمتی ظاهرین علی الحق..رقم(۷۳۱۲)_

۲ صحیح مسلم(۳۳۳\۱) کتاب الزکاة. باب النهی عن المسألة)_

۳ حاشیة السندی علی صحیح البخاری(۱\۴۴، ۴۵) وحاشیة السندی علی ابن ماجه(۱\۱۴۳) المقدمة. باب فضل العلماء والحث علی طلب العلم. رقم الحدیث(۲۲۰)_

۴ المصدر السابق)_

او علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه دلته به ،،من،، د مکلفینو په معنی باندې محمول کوو ځکه چه د شارع کلام د مکلفینو احوالو سره متعلق کیږی.نو هغه بچې کوم چه د بالغ کیدو نه وړاندې مړ شوې وی.خو مؤمن وی.دغه شان هغه سړې چه هغه مسلمان وی.او اوس لا د مونځ وخت هم نه دې راغلې چه دهغه وفات اوشو.نو هغه ددې حدیث په مصداق کښې دسره داخل نه دې.(۱) ،،والله اعلم،،

**قوله وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللَّهُ يُعْطِي:** او زه صرف تقسیمونکې یم.او الله تعالی ورکوی.

**د مذکوره جملې نحوی تحقیق** علامه طیبی رحمه الله فرمائی.،،وإنما أنا قاسم.....،، کښې واو حالیه دې.او دا د ،،یفقهه،،.د فاعل یا مفعول نه حال دې.که د فاعل نه حال وی.نو مطلب به دا وی.چه زه په القاء د علم او په تبلیغ د وحی کښې فرق نه کوم.او هیڅ چاته په بل باندې ترجیح نه ورکوم.الله تعالی چه کوم کس ته څومره قدرې غواړی.ورکوی.

اوکه د مفعول نه حال واقع وی.نو مطلب به دا وی.چه الله تعالی کوم کس ته فقه فی الدین ورکول اوغواړی.نو هغه ته په معانیو د فهم استعداد ورکوی. بیا په ما باندې د هر یو د استعداد مطابق د علم د القاء الهام فرمائی.(۲)

**یو اشکال او د هغې جواب** دلته یو سوال دا پیدا کیږی.چه که د صورت په اعتبار سره اوونیلې شی.نو نبی کریم ﷺ معطی (ورکونکې) هم دې.او قاسم (تقسیمونکې) هم دې.اوکه د حقیقت په اعتبار سره اوکتلې شی.نو معطی او قاسم دواړه الله ﷻ دې. په دې وجه به دا فرق کول څنګه صحیح وی؟

ددې جواب دا دې.چه معطی په عرف کښې مالك ته وائی.او قاسم تقسیمونکی ته وائی. مراد دا دې.چه اصل مالك خو الله تعالی دې.او زه صرف د هغه د طرفه تقسیمونکې یم لکه څنګه چه ذرائع، وسائط او کار کونکی (عمله) وی.په عرف کښې هم دغه شان ده.(۳)

**ددې جملې دوه مطلبونه** بیا ددې جملې دوه مطلبونه کیدې شی:① یو دا چه الله تعالی ماته علوم راکوی.هغه مالك دې.هغه خزانه زما په لاس کښې راکړې ده.زه د هغې نه تاسو باندې تقسیموم.② دویم مطلب دا کیدې شی.چه د علومو تقسیم خو زه کوم.په دې کښې هیڅ تفاوت او تفاضل نه کیږی.البته ددې پوهه او ادراك او په دې کښې عمق او ژور والې، دا الله تعالی ورکوی.والله اعلم.

**قوله وَلَنْ تَزَالَ هَذِهِ الأُمَّةُ قَائِمَةً عَلَى أَمْرِ اللَّهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ:** او دا جماعت به د الله تعالی په حکم باندې قائم وی.او ددوی د مخالفینو نه به دوی ته هیڅ نقصان نه کیږی.تردې چه د الله تعالی حکم راشی.

---

(۱) حاشیة السندی علی صحیح البخاری(۱/۴۴، ۴۵)_
(۲) الکاشف عن حقائق السنن للطیبی(۱/۳۵۸) کتاب العلم، الفصل الاول)_
(۳) فضل الباری(۲/۴۸) وفیض الباری(۱/۱۷۱)_

**ايا ټول امت به د الله تعالى په دين باندې قائم وى؟** ددې نه په ښكاره دا معلوميږى چه ټول امت به د الله تعالى په دين باندې قائم وى.حالانكه دا خلاف ظاهر او خلاف مشاهده دى.په دې وجه ونيلې شى.چه دلته پوره امت مراد نه دې.بلكه د امت نه يو جماعت مراد دې.لكه چه د عمير بن هانى رحمه الله په روايت كښې «لايزال من أمتي أمة قائمة بأمرالله.....» الفاظ دى.[١]

**په حديث كښې كوم يو جماعت مراد دې؟** دا طائفه او جماعت كوم چه به د الله تعالى په حكم باندې قائم وى.ددې نه كوم يو جماعت مراد دې؟ د مسلمانانو مختلفو طبقو خپلې خپلې طبقې ددې مصداق ګرځولې دى.

امام بخارى رحمه الله فرمائى.«وهم أهل العلم»[٢]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى.«إن لم يكونوا أهل الحديث فلا أدري من هم؟»[٣]

قاضى عياض رحمه الله فرمائى.«أراد أحمد أهل السنة، ومن يعتقد مذهب أهل الحديث»[٤]

د بعضو رواياتو نه معلوميږى.چه ددې نه د مجاهدينو جماعت مراد دې.لكه چه د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه مرفوع روايت دې.«لن يبرح هذا الدين قائماً يقاتل عليه عصابة من المسلمين حتى تقوم الساعة»[٥]

د حضرت جابر رضي الله عنه مرفوع روايت دې.«لا تزال طائفة من أمتي يقاتلون على الحق ظاهرين إلى يوم القيامة»[٦] د حضرت معاويه رضي الله عنه په يو روايت كښې دى.«...ولا تزال عصابة من المسلمين يقاتلون على الحق....»[٧].

د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه په روايت كښې دى.«لا تزال عصابة من أمتي يقاتلون على أمر الله قاهرين لعدوهم، لا يضرهم من خالفهم حتى تأتيهم الساعة وهم على ذالك»[٨]په دې ټولو رواياتو كښې تصريح ده.چه دا جماعت د مجاهدينو دې.

---

[١] صحيح بخارى(٥١٤١١) كتاب المناقب، باب (بلا ترجمة، بعد باب سؤال المشركين أن يريهم النبى ﷺ آية، فأراهم انشقاق القمر) رقم(٣٦٤١) (١١١١٢) كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى:﴿ إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ﴾ ..رقم(٧٤٦٠)_

[٢]صحيح بخارى(١٠٨١٢) كتاب الإعتصام، باب قول النبى ﷺ: لا تزال طائفة من أمتى ظاهرين على الحق يقاتلون، وهم أهل العلم)_

[٣] شرح النووى(١٤٣١٢) كتاب الإمارة، باب قوله ﷺ: لا تزال طائفة من أمتى ظاهرين على الحق...و فتح البارى(١٦٤١١)_

[٤])المصادر السابق)_

[٥])صحيح مسلم(١٤٣١٢) كتاب الإمارة، باب قوله ﷺ: لا تزال طائفة من أمتى ظاهرين على الحق...)_

[٦])المصدر السابق)_

[٧])صحيح مسلم(١٤٤١٢)_

[٨])المصدر السابق)_

خو حقیقت دا دې چه په دې کښې د ..طائفه حقه.. نه عموم مراد دې چه په دې کښې ټول اهل حق داخل دی لکه چه امام نووی رحمه الله فرمائی

((يحتمل أن هذه الطائفة مفرقة بين أنواع المؤمنين، منهم، شجعان مقاتلون، و منهم: فقهاء، و منهم: محدثون، ومنهم: زهاد و آمرون بالمعروف والناهون عن المنكر، ومنهم: أهل أنواع أخرى من الخير ولا يلزم أن يكونوا مجتمعين، بل قد يكونون متفرقين في أقطار الأرض))[1]

**د حضرت کشمیری رحمه الله لطیف توجیه** حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې چونکه د مجاهدینو تصریح موجود ده ددې باوجود امام احمد رحمه الله ددې مصداق ..اهل حدیث.. یعني ..اهل السنة.. گرځوی چه په دې باندې زه ډیر حیران وو م بیا په تاریخي موادو باندې نظر کولو نه دا خبره په پوهه کښې راغله چه د مجاهدینو او اهل السنة والجماعة دواړو مفهوم خو جدا جدا دې خو د خارجي مصداق په لحاظ سره دواړه یو دی ځکه چه د جهاد فریضه همیشه اهل السنة والجماعة اداکړې ده نورو ډلو ته د جهاد توفیق نه دې شوې او خصوصیت سره د روافضو ډلې نه خو اکثرو اسلامی حکومتونو ته عظیم نقصانات رسیدلی دی.([2])

دلته ددې لحاظ هم ساتل پکار دی چه د ..مجاهدین.. مراد اخستلو په صورت کښې به ..جهاد.. عام وی که په توره او په نیزه وی او که په قلم او ژبه وی د جهاد بالسیف په مقابله کښې د جهاد بالقلم واللسان اهمیت څه کم نه دې ددې همیشه ضرورت راپیښیږی نو دا هم په ..جهاد.. کښې داخل دې.

**قوله** :لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ: مخالفین به دوی ته نقصان نشی رسولې

**ددې مطلب** ددې دا مطلب نه دې چه اهل حق ته هیڅ نقصان د هیڅ یو طرفه هم نشی رسیدلې او دوی ته به څه تکلیف او مصیبت نه راځی دوی ته تکلیف رسیدلې شی د قید او جیل مصیبتونه راپیښیدې شی د قتل حالت راتلې شی خو ددوی مشن او مهم هیڅ خوند ختمولې نشی. ددوی مهم به جاری وی او تر قیامته پورې به دا سلسله جاری وی.

**قوله** :حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ: تردې چه د الله تعالی حکم راشی.

**د ،،امرالله،، نه څه مراد دې؟** ددې ..امرالله.. نه په ظاهره ..قیامت.. مراد دې

**په روایاتو کښې تعارض او دهغې دفعیه** خو په دې باندې اشکال کیږی چه په حدیث کښې دی.((لا تقوم الساعة حتى لا يقال في الأرض: الله الله))([3]) دغه شان په یو روایت کښې دی.((لا تقوم الساعة على أحد يقول: الله الله))([4])دغه شان په یو بل روایت کښې دی.((لا تقوم الساعة إلا على شرار

---

[1] )شرح النووی علی صحیح مسلم(۱۴۳/۱۲)_

[2] ) فیض الباری(۱۷۱/۱، ۱۷۲) و انوارالباری(۲۱۳/۸)_

[3] )صحیح مسلم(۸۴/۱) کتاب الإیمان. باب ذهاب الإیمان آخر الزمان)_

[4] ) المصدرالسابق)_

الناس»(١) ددې رواياتو نه معلوميږى چه قيامت به هغه وخت قائميږى كوم وخت چه ..الله الله.. ويونكې هيڅ څوك نه وى او په ..شرار الناس.. به قيامت قائميږى حالانكه د حديث باب نه معلوميږى چه تر قيامته پورې به دا ..طائفة حقه.. قائمه وى په دواړه قسمه حديثونو كښې تعارض معلوميږى؟

ددې جواب دا دې چه دلته د ..امرالله.. نه مراد ..قيامت.. نه دې بلكه هغه ..ريح..(هوا) مراد ده كوم چه به د يمن نه چليږى لكه چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په مرفوع روايت كښې دى «إن الله عزوجل يبعث ريحاً من اليمن ألين من الحرير فلا تدع أحداً فى قلبه، قال ابوعلقمه: مثقال حبة، وقال عبدالعزيز: مثقال ذرة من إيمان إلا قبضته»(٢) نو اوس په دواړه قسمو رواياتو كښې تعارض پاتې نشو.

بيا په كومو رواياتو كښې چه ،،حتى تقوم الساعة،، مذكور دې د هغې نه ،،حتى تقرب الساعة،، مراد دې.(٣)

**د حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت** ترجمة الباب د حديث باب په ړومبى جزء بندې مشتمل دې نو د حديث ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې بيا ددې دويم جزء په ..اعطاء.. او ..تقسيم.. باندې دلالت كوى كوم چه زكاة او خمس سره متعلق دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا په ..كتاب الخمس.. كښې او امام مسلم رحمه الله په ..كتاب الزكاة.. كښې نقل كړې دې او ددې آخرى جزء د قيامت علاماتو سره موافق دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا حديث په ..كتاب الاعتصام.. كښې نقل كړې دې ددوى ذهن دې جهت طرف ته متوجه شوې دې چه په هره زمانه كښې به څوك نه څوك مجتهد ضرور وى(٤) والله اعلم بالصواب.

# ١٤- بَابُ الْفَهْمِ فِى الْعِلْمِ

**ماقبل سره مناسبت** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په ماقبل باب كښې د ..تفقه فى الدين.. ذكر وو او په دې باب كښې ..فهم فى العلم.. بيانوى په ..تفقه.. كښې ..فهم.. داخليدل واضح دى.(٥)

**د ترجمة الباب مقصد** د ترجمة الباب مقصد څه دې؟ په دې كښې د عالمانو اختلاف دې

① علامه سندهى رحمه الله فرمائى چه د امام بخارى رحمه الله مقصدا دا ښودل دى چه ..افهام..

---

(١) صحيح مسلم(٢\٤٠٦) كتاب الفتن. باب قرب الساعة)_

(٢)صحيح مسلم(١\٧٥) كتاب الإيمان. باب فى الريح التى تكون فى قرب القيامة من فى قلبه شيء من الإيمان)

(٣) شرح النووى على صحيح مسلم(٢\١٤٣) كتاب الإمارة. باب قوله ﷺ: لا تزال طائفة من أمتى ظاهرين على الحق لا يضرهم من خالفهم)_

(٤) فتح البارى(١١\١٦٤)_

(٥) عمدة القارى(٢\٥٢)_

مختلف وی.تردې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه سره د صغيرالسن کيدو په هغه خبره پوهه شو په کومې چه مشران حضرات پوهه نشو.علامه سندهی رحمه الله فرمائی.چه په دې کښې د ..فضل الفهم.. بيانول مقصود نه دی.خکه چه د حديث په دې باندې هيڅ دلالت نشته.(۱)

③ حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائی. چه ددې باب نه غرض ..فضل الفهم في العلم.. بيانول دی.حضرت شيخ الهند رحمه الله علامه سندهی رحمه الله طرف ته اشاره کړې ده.او فرمائيلی ئې دی.چه بعضو اهل تحقيق اعتراض کړې دې.چه په حديث کښې هيڅ يو لفظ په ..فضل.. باندې دلالت کونکې موجود نه دې.خو دا اعتراض صحيح نه معلوميږی.خکه چه مؤلف قريب بعيد(يعنی لرِ وراندې) د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا حديث په مختلفو ابوابو کښې ذکر کړې دې.چه په دې کښې په فضل د فهم باندې دلالت کونکې لفظ متعددو رواياتو کښې موجود دې.روستو په کتاب العلم کښې د حضرت عمر رضي الله عنه دا ارشاد راروان دې.چه «لأن تكون قلتها أحب إلى من أن يكون لى كذا و كذا»(۲) دا جمله په فضل د فهم باندې دلالت کوی.او د امام بخاری رحمه الله د عاداتو خنې ده.چه په مقصود باندې دلالت کونکې لفظ په يو حديث کښې موجود نه وی.خو که هم دا حديث په يوه بله موقعه باندې چه کله راوستلې شی.نو هلته مقصود باندې دلالت کونکې لفظ موجود وی.نو هم دا د ترجمة الباب د اثبات دپاره کافی گنړلې کيږی.(۳)

④ حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی.چه ددې باب منعقد کولو نه مقصود دا دې.چه تفقه في الدين د عالمانو د اعلی مراتبو خنې دې.که دا مرتبه حاصل نشی.نو کم ازکم ددې نه ادنی مرتبه يعنی ..فهم د مراد.. خو ضرور حاصلول پکار دی.خکه چه په حديث باب کښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د سوال په جواب باندې پوهيدل مذکور دی.او په دې باندې د حضرت عمر رضي الله عنه دا فرمائيل. چه که تا جواب ورکړې وې.نو زه به ډير زيات خوشحاله شوې ووم.دا د فهم او فطنت (ذهانت) په فضيلت باندې دلالت کوی.او ښکاره ده.چه دا ..فقه.. نه ده.خکه چه ..فقه.. خو استنباط د مسائلو او د شريعت دقائقو او د احکامو په علتونو باندې د مطلع کيدو نوم دې.

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی.چه دا هم ممکن ده.چه دا د تيرشوی باب بيان وی.خکه چه ..فقه.. او ..فهم.. دوه جدا جدا څيزونه نه دی.بلکه دا دواړه يو دی.(۴)

⑤ حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زکرياصاحب رحمه الله فرمائی.چه زما په نيز ددې باب نه د تدبر او مطالعې ترغيب ورکول دی.او د مطالعې په طريقه باندې متنبه کول مقصود دی.چه په دې سلسله کښې قرائن او امارات ملحوظ اوساتلې شی.لکه څنګه چه د نبی

---

(۱) حاشية السندی علی صحيح البخاری(۱\۴۵)_

(۲) صحيح بخاری(۱\۲۴) کتاب العلم. باب الحياء فی العلم. رقم\۱۳۱)_

(۳) الأبواب والتراجم(ص\۴۶)_

(۴) لامع الدراری(۲\۲۴)_

كريم ﷺ سوال، او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ...جمار... (د كجورو مغز) په لاس كښې كتلو سره مطلب او جواب باندې پوهيدل. په دې باندې واضح طور باندې دلالت كوى. (۱) والله اعلم.

## حديث باب

۶۲-((حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ ( ) إِلَى الْمَدِينَةِ فَلَمْ أَسْمَعْهُ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا حَدِيثًا وَاحِدًا قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُتِيَ بِجُمَّارٍ فَقَالَ إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً مَثَلُهَا كَمَثَلِ الْمُسْلِمِ فَأَرَدْتُ أَنْ أَقُولَ هِيَ النَّخْلَةُ فَإِذَا أَنَا أَصْغَرُ الْقَوْمِ فَسَكَتُّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ))[ر:۶۱]

## رجال الحديث

① علي رحمه الله: دا امير المؤمنين فى الحديث، الحجة، امام ابوالحسن على بن عبدالله بن جعفر بن نجيح سعدى بصرى رحمه الله دې چه دا په ابن المدينى نوم سره مشهور دې. (۳)

دوى د خپل پلار نه علاوه د حماد بن زيد، هشيم بن بشير، معتمر بن سليمان، سفيان بن عيينه، جرير بن عبدالحميد، محمد بن جعفر غندر، يحي بن سعيد القطان او عبدالرزاق رحمهم الله نه روايت كړې دې. ددوى نه په روايت كونكو كښې امام احمد بن حنبل، امام بخارى، صالح بن محمد جزره، ابو مسلم الكجى، ابو القاسم بغوى، او عبدالله بن محمد بن ايوب الكاتب رحمهم الله دى. (۴) ددوى نه دده شيوخو هم روايتونه اخستې دى چه په دې كښې سفيان بن عيينه رحمه الله هم دې. (۵)

دا په اصل كښې د مدينې منورې دې. هم په دې نسبت سره د ...ابن المدينى... په نوم سره مشهور دې. البته په ۱۶۱ھ كښې بصره كښې پيدا شو. (۶)

امام ابو حاتم رازى رحمه الله فرمائى: ((كان ابن المديني علماً في الناس، في معرفة الحديث والعلل)). (۷)

سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى: (( تلومني على حبّ علي، والله، والله، لقد كنتُ أتعلم منه أكثر مما يتعلم

---

(۱) لامع الدرارى(۲۴۱۲) والأبواب والتراجم لصحيح البخارى(ص۴۲)_

(۲) قد سبق تخريج هذا الحديث، فى باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا و أنبأنا)_

(۳) تاريخ بغداد(۴۵۸۱۱) وتهذيب الكمال(۵۱۲۱)_

(۴) د شيوخ او تلامذه دتفصيل دپاره اوگورئ: تاريخ بغداد(۴۵۸۱۱، ۴۵۹) و تهذيب الكمال(۶۱۲۱-۹) وسير أعلام النبلاء(۴۲۱۱۱، ۴۳)_

(۵) سير أعلام النبلاء(۴۳۱۱۱)_

(۶) الثقات لابن حبان( ۴۶۹۱۸) والأنساب للسمعانى(۲۳۵۱۵) وسير أعلام النبلاء(۴۳۱۱۱)_

(۷) تهذيب الكمال(۹۱۲۱)، وسير أعلام النبلاء(۴۳۱۱۱)_

مني»[1] دغه شان يحي بن سعيد القطان رحمه الله فرمائى «ألناس يلومونني في قعودى مع علي، وأنا أتعلم منه أكثر مما يتعلم مني»[2]

امام نسائى رحمه الله فرمائى «كان الله خلق علي بن المديني لهذا الشان»[3]

امام بخارى رحمه الله فرمائى «ما استصغرت نفسي عند أحد إلا عند علي بن المديني»[4]

فزهيانى رحمه الله وغيره فرمائى «أعلم أهل زمانه بعلل الحديث: علي»[5]

صالح جزره رحمه الله فرمائى «أعلم من أدركت بالحديث وعلله علي بن المديني....»[6]

امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى «علي بن المديني أعلم الناس بحديث رسول الله ﷺ وخاصة بحديث ابن عيينة»[7]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «و أما علي بن المديني: فإليه المنتهى في معرفة علل الحديث النبوي، مع كمال المعرفة بنقد الرجال، وسعة الحفظ و التبحر في هذا الشان، بل لعله فرد زمانه في معناه....»[8]

البته دوى لره عقيلى په ..كتاب الضعفاء.. كښې ذكركړې دې او ليكلى ئې دى «جنح إلى ابن أبي دؤاد والجهمية وحديثه مستقيم إن شاء الله»[9] يعنى على بن المدينى ابن ابى دؤاد معتزلى او جهميه طرف ته مائل وو. البته ددوى حديثونه انشاء الله صحيح دى.

چونکه احمد بن ابى دؤاد معتزلى د خلق قرآن نه صرف قائل وو. بلکه ددې داعى وو. او ده د خليفه په ذريعه عالمان په مختلفو ازمائښتونو کښې مبتلا کړى وو. د امام على بن المدينى رحمه الله نه په دې موقعه باندې هغوى طرف ته څه ميلان موندلې شوې وو چه د هغې په وجه عقيلى په دوى باندې کلام اوکړو. او پخپل ..كتاب الضعفاء.. کښې ئې دوى ذکر کړل. حالانکه دوى د خلق قرآن قائل نه وو. او کوم ميلان چه وو. د هغې نه هم دوى توبه اوبنکلې وه. لکه چه محمد بن عثمان بن ابى شيبه رحمه الله فرمائى «سمعتُ علي بن المديني يقول قبل موته بشهرين، من قال: القرآن مخلوق، فهو كافر»[10]

---

[1] تاريخ بغداد(۱۱\٤٥٩( وتهذيب الكمال(۲۱۱۰)_
[2] سير أعلام النبلاء(۱۱\٤٥)_
[3] سير أعلام النبلاء(۱۱\٤٦) وتهذيب الكمال(۲۱\۱٤)_
[4] سير أعلام النبلاء(۱۱\٤٦) وتاريخ بغداد(۱۱\٤٦۳)_
[5] سير أعلام النبلاء(۱۱\٤۹)_
[6] سير أعلام النبلاء(۱۱\٥۰)_
[7] تهذيب الكمال(۲۱\۱٤)_
[8] ميزان الإعتدال(۳\۱٤۱)_
[9] كتاب الضعفاء الكبير للعقيلى(۳\۲۳٥)_
[10] ميزان الإعتدال(۳\۱٤۱) وسير أعلام النبلاء(۱۱\٥۸) وتهذيب الكمال(۲۱\۳۲)_

د غه شان علي بن المديني رحمه الله په منبر باندې اودريږي او اعلان کوي «من زعم أن القرآن مخلوق، أو أن الله لا يرى، أو لم يكلم موسى على الحقيقة، فهو كافر»[۱]

د حافظ ذهبي رحمه الله په عقيلي باندې سخت تنقيد حافظ ذهبي رحمه الله د عقيلي «سامحه الله تعالى» په دې جسارت (او زړه ورتيا) باندې سخت تنقيد کړې دې[۲]

د غه شان عبدالله بن احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي «كان أبي حدثنا عنه، ثم أمسك عن اسمه، وكان يقول: حدثنا رجل، ثم ترك حديثه بعد ذالك»[۳]

خو دا اعتراض هم قابل د توجه نه دې ځکه چه علي بن المديني او د امام احمد په مينځ کښې ډير زيات د محبت او الفت تعلق وو چه امام احمد رحمه الله به هميشه دوى ته د احترام او تعظيم په وجه کنيت سره يادولو. کله به ئې هم نوم نه اخستلو[۴]

---

[۱](المصادر السابقة)_

[۲] د حافظ ذهبي رحمه الله دا تنقيد په ډيرو فاندو باندې مشتمل دې په دې وجه دلته يو اوږده عبارت نقل كولې شي. دوى په ميزان الاعتدال (۳/۱۴۰، ۱۴۱) کښې فرمائي ((وقد بدت منه هفوة ثم تاب منها. وهذا ابوعبدالله البخاري. وناهيک به. قد شحن صحيحه بحديث علي بن المديني. وقال ما استصغرت نفسي بين يدى أحد إلا بين يدى علي بن المديني. ولو تركت حديث علي. وصاحبه محمد. و شيخه عبدالرزاق. وعثمان بن ابى شيبة، و إبراهيم بن سعد. وعفان. و أبان العطار. و إسرائيل. و أزهر السمان. وبهز بن أسد. و ثابت البناني. وجرير بن عبدالحميد. لغلقنا الباب. و انقطع الخطاب. ولماتت الآثار. و استولت الزنادقة. ولخرج الدجال. أفما لک عقل يا عقيلي. أتدرى فيمن تتكلم! و إنما تبعناک في ذكر هذا النمط لنذب عنهم. ولنزيف ما قيل فيهم. كأنک لا تدرى أن كل واحد من هؤلاء أوثق منک بطبقات. بل و أوثق من ثقات كثيرين لم توردهم في كتابک. فهذا مما لا يرتاب فيه محدث..

و أنا أشتهى أن تعرفني من هو الثقة الثبت الذى ما غلط ولا انفرد بما لا يتابع عليه. بل الثقة الحافظ إذا انفرد بأحاديث كان أرفع له. و أكمل لرتبته. و أدل على اعتنائه بعلم الأثر. وضبطه دون أقرانه لأشياء ما عرفوها. اللهم إلا أن يتبين غلطه و وهمه في الشئ فيعرف ذالک. فانظر أول الشئ إلى أصحاب رسول الله ﷺ الكبار والصغار. ما فيهم أحد إلا وقد انفرد بسنة. فيقال له هذا الحديث لا يتابع عليه؟ وكذالک التابعون. كل واحد عنده ما ليس عند الآخر من العلم. وما الغرض هذا. فإن هذا مقرر على ما ينبغي في علم الحديث..

و إن تفرد الثقة المتقن يعدّ صحيحاً غريباً. و إن تفرد الصدوق ومن دونه يعدّ منكراً. و إن إكثار الراوى من الأحاديث التي لا يوافق عليها لفظاً أو اسناداً يصيره متروک الحديث..

ثم ما كل أحد فيه بدعة. أو له هفوة. أو ذنوب يقدح فيه بما يوهن حديثه. ولامن شرط الثقة أن يكون معصوماً من الخطايا والخطأ. ولكن فائدة ذكرنا كثيراً من الثقات الذين فيهم أدنى بدعة. أولهم أوهام يسيرة في سعة علمهم أن يعرف أن غيرهم أرجح منهم و أوثق إذا عارضهم أو خالفهم. فزن الأشياء بالعدل والورع)

[۳] ميزان الإعتدال (۳/۱۳۸)_

[۴] تهذيب الكمال (۲۱/۹)_

کله چه به امام علی بن المدینی بغداد ته راتلو نو د حلقې صدارت به دوی سنبالولو په دې موقعه به امام احمد بن حنبل او یحي وغیره حضرات راتلل پخپلو کښې به ئې مذاکره او مناظره کوله کله چه به په دوی کښې اختلاف شو نو دعلی بن المدینی قول به قول فیصل وو.[1]

بهرحال حفاظو او نقادو د حدیث تصریح کړې ده چه امام احمد رحمه الله په علی بن المدینی رحمه الله باندې کوم کلام کړې دې هغه صرف د خلق قرآن په مسئله کښې د نرمۍ اختیارولو په وجه دې چه ددې نه هم هغوی توبه اوبنکلې وه. لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. «تكلم فيه أحمد ومن تابعه لأجل ما تقدم من إجابته في المحنة، وقد أعتذر الرجل من ذالك، وتاب وأناب»[2]

په اصول حدیث باندې رومبې تصنیف امام علی بن المدینی رحمه الله هغه رومبې شخصیت دې چه دوی د اصول حدیث په مختلفو انواعو باندې د ټولو نه وړاندې مختلف کتابونه اولیکل.[3] امام نووی رحمه الله لیکلی دی چه ددوی د دوو سوو نه زیات تصانیف دی.[4] امام حاکم رحمه الله د یو څو کتابونو نومونه لیکلی دی.[5]

د امام علی بن المدینی وفات په «سُرّ من رأی» (سامرا) کښې ۲۳۴ھ کښې اوشو.[6] رحمه الله تعالی رحمةً واسعةً۔

٢ سفیان رحمه الله: دا امام سفیان بن عیینه رحمه الله دې ددوی حالات په «بدء الوحی» کښې رومبی حدیث په ضمن کښې مختصر[7] او په کتاب العلم کښې د «باب قول المحدث: حدثنا، وأخبرنا وأنبأنا» لاندې تفصیل سره ذکر شوی دی.

٣ ابن ابی نجیح رحمه الله: دا ابویسار عبدالله بن ابی نجیح (بفتح النون وکسر الجيم، وبعدها ياء مثناة تحتية وآخره حاء مهملة) ثقفی مکی دې. دابو نجیح نوم یسار دې چه دا د حضرت اخنس بن شریق رضی الله عنه مولی وو.[8]

دوی د خپل پلار ابو نجیح مکی، امام مجاهد، عطاء بن ابی رباح، طاؤس، او سالم بن

---

[1] تهذیب الأسماء واللغات(۱۱\۳۵۱) وتاریخ بغداد(۱۱\۴۶۳)_
[2] تهذیب التهذیب(۷\۳۵۶)_
[3] اوګورئ: لمحات من تاریخ السنة وعلوم الحدیث..للشیخ عبدالفتاح أبو غدة رحمه الله..(ص۱۰۱، ۱۰۲)_
[4] تهذیب الأسماء واللغات(۱۱\۳۵۰)_
[5] معرفة علوم الحدیث(ص۷۱) النوع العشرون: فقه الحدیث. ډاکټر اکرام الله امدادالحق د علی بن المدینی رحمه الله د خلوېښتو کتابونو ذکرکړې دې اوګورئ. الإمام علی بن المدینی و منهجه فی نقد الرجال(ص۲۶۲، ۲۷۹)_
[6] تاریخ بغداد(۱۱\۴۷۲، ۴۷۳)_
[7] کشف الباری(۱۱\۲۳۸)_
[8] تهذیب الکمال(۱۶\۲۱۵، ۲۱۶) وسیر أعلام النبلاء(۶\۱۲۵)_

عبدالله بن عمر رحمهم الله وغيره نه روايت كوى ددوى نه امام شعبه. سفيان ثورى. سفيان بن عيينه. ابن علیه. روح بن القاسم. ابراهيم بن نافع مكى او هشام دستوانى رحمهم الله وغيره روايت كوى [۱]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى «ابن نجيح ثقة، كان أبوه من خيار عباد الله» [۲]

امام يحيى بن معين، امام ابو زرعه، او امام نسائى رحمهم الله فرمائى ،،ثقة،، [۳]

د ابوحاتم رحمه الله نه چه كله تپوس اوكړې شو «ابن ابى نجيح عن مجاهد أحب إليك أو خصيف عن مجاهد؟» نو وى فرمائيل ،،ابن ابى نجيح أحب إلي، إنما يقال له ابن ابى نجيح القدر، وهو صالح الحديث» [۴]

ابن سعد رحمه الله فرمائى «كان ثقة كثير الحديث» [۵]

امام عجلى رحمه الله فرمائى ،،ثقة،، [۶]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ،،كتاب الثقات،، كښې ذكر كړې دې [۷]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى ،،ثقة،، [۸] او هم دوى فرمائى «هو من الأئمة الثقات» [۹]

**ابن ابى نجيح متهم بالقدر وو؟** د ابن ابى نجيح اګرچه ټولو حضراتو توثيق كړې دې خو دې متهم بالقدر وو.

لكه چه امام بخارى رحمه الله فرمائى «عبدالله بن ابى نجيح كان يتهم بالاعتزال والقدر» [۱۰]

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى «أما الحديث فهو فيه ثقة وأما الرأى فكان قدريا معتزليا» [۱۱]

جوزجانى رحمه الله هم دوى په متهم بالقدر كښې شمار كړې دې [۱۲]

يعقوب سدوسى رحمه الله فرمائى «هو ثقة قدرى» [۱۳]

---

[۱] دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(۱۶\۲۱۶) وسير أعلام النبلاء(۶\۱۲۵)_

[۲] تهذيب الكمال(۱۶\۲۱۷)_

[۳] المصدر السابق)_

[۴] المصدر السابق)_

[۵] الطبقات لابن سعد( ۵\۴۸۳)_

[۶] تهذيب التهذيب(۶\۵۵)_

[۷] الثقات لابن حبان( ۷\۵)_

[۸] الكاشف(۱\۶۰۳) رقم(۳۰۲۰)_

[۹] ميزان الإعتدال( ۲\۵۱۵)_

[۱۰] المصدر السابق)_

[۱۱] المصدر السابق)_

[۱۲] المصدر السابق)_

[۱۳] سير أعلام النبلاء(۶\۱۲۵)_

امام يحي بن سعيد القطان رحمه الله فرمائى «كان من رؤوس الدعاة إلى القدر»[1]
ابن سعد رحمه الله فرمائى «ويذكرون أنه كان يقول بالقدر»[2]
ددې اقوالو نه معلومه شوه چه عبدالله بن ابى نجيح نه صرف دا چه قدرى وو بلكه ..دعاة الى القدر.. خنې وو.
**يو اشكال او د هغې جواب** سوال دا دې چه امام بخارى رحمه الله ددوى نه استدلال او احتجاج څنګه اوکړو. حالانکه مبتدع راوى کوم چه داعى وى دهغه نه روايت او احتجاج کول صحيح نه دې؟[3]
① ددې يو جواب دا دې چه ممکن ده چه هغوى د خپل بدعت نه توبه اوبنکلې وى لکه چه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. «ولعله رجع عن البدعة»[4]
دغه شان جوزجانى چه کله عبدالله بن ابى نجيح، زکريا بن اسحاق، شبل بن عباد، ابن ابى زنب او سيف بن سليمان په قدريه کښې شمار کړو نوحافظ ذهبى رحمه الله اوفرمائيل «هؤلاء ثقات، وما ثبت عنهم القدر، أولعلهم تابوا»[5]
② دويم جواب دا دې چه که راوى مبتدع ..داعى الى البدعة.. وى نو د هغه د روايت نه احتجاج صحيح نه دې.[6] خو که داسې راوى ثقه او ضابط وى او ددې روايت نه دده د بدعت تائيد نه کيږى او دا روايت ددې مبتدع نه علاوه د بل چا نه نقل نه وى نو دده روايت به قابل قبول وى.[7] لکه څنګه چه امام بخارى رحمه الله د داسې ډيرو حضراتو نه روايت قبول

---

[1] حاشيه سبط ابن العجمى على الكاشف(۶۰۳\۱) رقم(۳۰۲۰)_
[2] الطبقات(۴۸۳\۵)_
[3] هدى السارى(ص۳۸۵) الفصل التاسع. وتعليقات..الرفع والتكميل فى الجرح والتعديل(ص ۱۴۴. ۱۴۵)_
[4] سيرأعلام النبلاء(۱۲۶\۶)_
[5] ميزان الإعتدال( ۵۱۵\۲)_
[6] قال ابن الصلاح فى علوم الحديث(ص ۱۱۴. ۱۱۵):......وقال قوم تقبل روايته إذا لم يكن داعية إلى بدعته ولا تقبل إذا كان داعية وهذا مذهب الكثيرأو الأكثر من العلماء. وحكى بعض أصحاب الشافعى رحمه الله خلافاً بين أصحابه فى قبول رواية المبتدع. إذا لم يدع إلى بدعته. وقال: أما إذا كان داعية فلا خلاف بينهم فى عدم قبول روايته. وقال أبو حاتم بن حبان البستى أحد المصنفين من أئمة الحديث: الداعية إلى البدع لايجوز الإحتجاج به عند أئمتنا قاطبة. لا أعلم بينهم فيه خلافاً. وهذا المذهب الثالث أعدلها وأولاها. والأول (أى رد رواية المبتدع مطلقاً) بعيد مباعد للشائع عن أئمة الحديث. فإن كتبهم طافحة بالرواية عن المبتدعة غير الدعاة. وفى الصحيحين كثير من أحاديثهم فى الشواهد والأصول. والله اعلم.)_
[7] قال الحافظ رحمه الله: ..فالمعتمد: أن الذى ترد روايته. من أنكر أمراً متواتراً من الشرع معلوماً من الدين بالضرورة. أو اعتقد عكسه. و أما من لم يكن بهذه الصفة. وانضم إلى ذالک ضبطه لما يرويه مع ورعه وتقواه فلا مانع من قبوله. نزهة النظر(ص۸۸)_

كړې دي چه هغوی نه صرف دا چه مبتدع وو بلکه د رؤوس المبتدعين ځنې وو.او خپل مذهب طرف ته به ئې خلقو ته دعوت هم ورکولو لکه عمران بن حطان. عبدالحميد بن عبدالرحمن حماني وغيره چه د بدعت د داعيانو ځنې وو (١)

**په روايت د حديث کښې د بدعت قادحه او غيرقادحه تفصيل** او حافظ ابن حجر رحمه الله د بدعت قادحه او بدعت غيرقادحه په تفصيلاتو کښې لاندې ليکي «وعلى هذا إذا اشتملت رواية المبتدع سواء كان داعية أم لم يكن، على مالا تعلق له ببدعته أصلاً، هل ترد مطلقاً؟ أو تقبل مطلقاً؟ مال ابوالفتح القشيري إلى تفصيل آخر فيه (٢) فقال: إن وافقه غيره فلا يلتفت إليه هو، إخماداً لبدعته وإطفاءً لناره، وإن لم يوافقه أحد ولم يوجد ذالك الحديث إلا عنده مع ما وصفنا من صدقه وتحرزه عن الكذب واشتهاره بالدين وعدم تعلق ذالك الحديث ببدعته فينبغي أن تقدم مصلحة تحصيل ذالك الحديث ونشر تلك السنة على مصلحة إهانته وإطفاء بدعته، والله اعلم» (٣)

دريمه خبره دا ده چه دوی لره صرف امام يحي بن سعيد القطان رحمه الله په ‹‹دعاة إلى القدر›› کښې شمار کړې دي.ددوی نه علاوه باقي ټولو دوی لره قدري ګرځولي دي خو په ‹‹دعاة›› کښې د کيدو تصريح ئې نه ده کړې.غالباً د امام بخاري رحمه الله په نيز ددوی صرف قدري کيدل ثابت دي.داعي کيدل ئې ثابت نه دي.لکه چه د حافظ سخاوي او حافظ عراقي رحمهما الله شعر: ~

..............ورووا : : عن أهل بدع في الصحيح ما دعوا

(يعني.....ائمه' نقاد د حديث. مثلاً امام بخاري او مسلم رحمهما الله وغيره پخپل ‹‹صحيح›› کښې د بعضو داسې اهل بدعت نه روايت نقل کړې دي چه هغوی د خپل بدعت داعيان نه وو). په تشريح کښې د ډيرو راويانو نومونه ذکرکړی دی چه هغوی کښې بدعت وو خو هغوي داعيان نه وو.په دغه نومونو کښې هغوی د عبدالله بن ابي نجيح نوم هم ذکرکړې دي.(٤)

غالباً د حافظ مزي رحمه الله په نيز هم ددوی ‹‹داعي الى القدر›› نه کيدل راجح دی ځکه چه دوی د ائمۀ رجال نه په توثيق کولو باندې اکتفاء کړې ده.البته ضمناً ئې د ابو حاتم نه توثيق سره ددوی ‹‹مائل الى القدر›› کيدل نقل کړی دی.او د يحي القطان د ‹‹داعي الى القدر›› قول دوی نه دې ذکرکړې.(٥)

---

(١) تدريب الراوي(١\٣٢۶)_

(٢) حكى السخاوي عن ابن دقيق العيد ما مال إليه القشيري. أنظر فتح الحديث(٢\٦٠، ٦١)_

(٣) هدي الساري((ص٣٨٥)_

(٤) فتح المغيث للسخاوي(٢\٦۶)_

(٥) تهذيب الكمال(١۶\٢١٧، ٢١٨)_

د تدليس الزام او دهغې تحقيق بيا دوی لره امام نسائی رحمه الله په مدلسينو کښې شمار کړې دې.لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی.«وذکره النسائی فيمن کان يدلس»[1]

او حافظ رحمه الله فرمائی.«أکثر عن مجاهد، وکان يدلس عنه، وصفه بذلك النسائی»[2]

دغه شان حافظ رحمه الله فرمائی.«ثقة رمی بالقدر و ربما دلس»[3] خو ددوی تدليس مضر نه دې.خکه چه:

① اول خو به دوی په عامو حديثونو کښې تدليس نه کولو.بلکه صرف د امام مجاهد رحمه الله په احاديثو کښې به ئې تدليس کولو.[4] بيا ئې ددوی په عامو حديثونو کښې هم نه کولو.بلکه صرف د امام مجاهد د تفسير سماع دوی ته حاصل نه وه.نو د تفسير په روايت کښې به د تدليس نه کار اخستلو.[5] چونکه دا د امام مجاهد رحمه الله د خاص الخاص شاگردانو خنې دې.[6] په دې وجه عالمانو ددوی د تفسير د رواياتو هم تصحيح کړې ده.لکه چه امام وکيع رحمه الله فرمائی.«کان سفيان يصحح تفسير ابن ابی نجيح»[7]

② دويم دا چه علامه قطب الدين حلبی رحمه الله فرمائی.«أکثر العلماء أن المعنعنات التی فی الصحيحين منزلة منزلة السماع»[8]

د ابن ابی نجيح رحمه الله وفات په ۱۳۱ھ يا ۱۳۲ھ کښې اوشو.[9] رحمه الله تعالی رحمة واسعة۔

③ **مجاهد رحمه الله:** دا شيخ القراء والمفسرين ابو الحجاج مجاهد بن جبر مکی قرشی مخزومی رحمه الله دې.[10]

---

[1])تهذيب التهذيب(۶\۵۵)_

[2])تعريف أهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس(ص۲۸)_

[3])تقريب التهذيب(ص۳۲۶) رقم(۳۶۶۲)_

[4]) كما يدلّ عليه قول الحافظ .. أكثر عن مجاهد، وكان يدلّس عنه......تعريف أهل التقديس(ص۲۸)_

[5])قال يحی بن سعيد:..لم يسمع ابن ابی نجيح التفسير عن مجاهد. قال ابن حبان: ابن ابی نجيح نظير ابن جريج فی كتاب القاسم بن ابی بزة عن مجاهد فی التفسير، رويا عن مجاهد من غير سماع.. تهذيب التهذيب(۶\۵٤)_

[6]) كما يدلّ عليه قول الحافظ .. أكثر عن مجاهد.....تعريف أهل التقديس(ص۲۸)_

[7])تهذيب الكمال(۱۶\۲۱۷)_

[8])فتح المغيث للعراقی(ص۸۱، ۸۲) وفتح المغيث للسخاوی(۱\۲۱۸) قال السخاوی:..يعنی إما لمجيئها من وجه آخر بالتصريح أو لكون المعنعن لا يدلس إلا عن ثقة، أو عن بعض شيوخه، أو لوقوعها من جهة بعض النقاد المحققين سماع المعنعن لها....)_

[9])تهذيب الكمال(۱۶\۲۱۸)_

[10])تهذيب الكمال(۲۷\۲۲۸)_

دوى د حضرت ابن عباس، حضرت ابوهريره، حضرت عائشه، حضرت سعد بن ابى وقاص، حضرت عبدالله بن عمرو، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت رافع بن خديج، حضرت جابر، حضرت ابو سعيد خدرى، حضرت ام هانى رضي الله عنهم نه روايت د حديث كړې دي.

ددوى نه په روايت كونكو كښې عكرمه، طاؤس، عطاء (وهم من أقرانه) عمرو بن دينار، ابوالزبير، ابن ابى نجيح، منصور بن المعتمر، اعمش، ايوب سختيانى، قتاده او فطر بن خليفه رحمهم الله وغيره دى.([1])

بعضو حضراتو هغه روايات مرسل ګرځولى دى.كوم چه دوى د حضرت سعد بن ابى وقاص، حضرت معاويه او كعب بن عجره رضي الله عنهم نه روايت كوى.([2]) او بعضو حضراتو د حضرت عائشه رضي الله عنها نه ددوى د سماع هم انكار كړې دي.([3]) خو صحيح خبره دا ده.چه دوى ته دحضرت عائشه رضي الله عنها نه سماع حاصل ده.([4]) په صحيح بخارى كښې ددې تصريح موجود ده.([5])

خصيف رحمه الله فرمائى.((كان أعلمهم بالتفسير مجاهد.....))([6])

امام يحي بن معين او ابوزرعه رحمهما الله فرمائى.((ثقة))([7])

امام عجلى رحمه الله فرمائى.((مكى تابعى ثقة))([8])

ابن حبان رحمه الله فرمائى.((وكان فقيها عابداً ورعاً متقناً))([9])

امام ابن سعد رحمه الله فرمائى.((وكان فقيهاً عالماً ثقة كثير الحديث))([10])

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.((إمام فى القراءة والتفسير حجة))([11])

**په امام مجاهد باندې د تدليس الزام او د هغې تحقيق:** علامه ابوالعباس نباتى صاحب ،،**النيل**

---

[1]) دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(٢٧\٢٢٩- ٢٣٢) وسيرأعلام النبلاء(٤\٤٥٠)_

[2])تهذيب التهذيب(١٠\٤٤)_

[3]) امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى...لم يسمع مجاهد من عائشة.. تهذيب الكمال(٢٧\٢٣٢)_

[4]) امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى...سمع مجاهد من عائشة.. سيرأعلام النبلاء(٤\٤٥١)_

[5])صحيح بخارى(١\٢٣٨، ٢٣٩) كتاب العمرة، باب كم اعتمرالنبى ﷺ، رقم(١٧٧٥)، (١٧٧٦) و(٢\٦١٠) كتاب المغازى، باب عمرة القضاء، رقم(٤٢٥٣)، (٤٢٥٤)_

[6])تهذيب الكمال(٢٧\٢٣٣)_

[7])المصدرالسابق)_

[8])تهذيب التهذيب(١٠\٤٤)_

[9]) الثقات لابن حبان( ٥\٤١٩)_

[10])الطبقات(٥\٤٦٧)_

[11])الكاشف(٢\٢٤٠، ٢٤١) رقم(٥٢٨٩)_

حل الكامل،، ليكلى دى چه ابن حبان بستى رحمه الله امام مجاهد لره پخپل كتاب الضعفا، كښې ذكركړې دې ددې نه علاوه ئې چا هم په كتاب الضعفاء كښې نه دې ذكركړې [1]
ددې جرح په رد كولو كښې علامه نباتى رحمه الله فرمائى «ومجاهد ثقة بلا مدافعة»[2]
دغه شان امام ترمذى رحمه الله په كتاب العلل كښې ليكلى دى «ومجاهد معلوم التدليس...»[3]
گويا امام مجاهد رحمه الله په معروف (او مشهورو) مدلسينو كښې دې خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «ولم أر من نسبه إلى التدليس»[4]
البته د امام مجاهد نه منقول دى چه دوى اوفرمائيل «خرج علينا على»[5]
كه د علماو د تصريح مطابق ددوى د حضرت على رضي الله عنه نه سماع ثابت نشته [6] بيا خو به دا جمله ،،دال على التدليس،، وى.گنى عين ممكن ده چه دوى ته د حضرت على رضي الله عنه نه سماع حاصل وى.ځكه چه غالب دا ده چه ددوى پيدائش د ۱۸ھ او ۲۱ھ په مينځ كښې شوې دې.[7] نو د حضرت على رضي الله عنه (چه ددوى شهادت په ۴۰ھ كښې شوې دې) نه ددوى سماع څه لرې نه ده.نو دا د تدليس څه واضح دليل نه دې.
خلاصه دا چه امام مجاهد رحمه الله بالاتفاق حجت او امام دې او په دې باندې هيڅ قسمه څه كلام موثرنشته.لكه چه امام ذهبى رحمه الله فرمائى «وأجمعت الأمة على إمامة مجاهد والاحتجاج به»[8]
دامام مجاهد رحمه الله وفات دراجح قول مطابق په ۱۰۲ھ كښې اوشو.[9]،، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،
⑤ ابن عمر رضي الله عنهما: د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات په كتاب الايمان كښې د «باب الإيمان وقول النبي ﷺ: بني الإسلام على خمس» لاندې تيرشوى دى.[10]

---

[1] ميزان الإعتدال( ٤٣٩\٣) رقم(٧٠٧٢) قال الشيخ محمد عوامة: فإن كان كتاب الضعفاء هو كتاب المجروحين كما هو مشهور فنسبة ذالک إلى ابن حبان فيها نظر. إذ لا شئ في المجروحين. و إن كانا كتابين مختلفين، كما يقوله شيخنا المحقق عبدالله الصديق الغمارى و يؤكده. فيقبل. والله اعلم. تعليقات على الكاشف(٢٤١\٢)_
[2] ميزان الإعتدال( ٤٣٩\٣) رقم(٧٠٧٢)_
[3] تهذيب التهذيب(٤٤\١٠)_
[4] تهذيب التهذيب(٤٤\١٠)_
[5] المصدر السابق)_
[6] قال أبو زرعة: مجاهد عن على مرسل.. تهذيب التهذيب(٤٤\١٠)_
[7] تعليقات على الكاشف(٢٤١\٢)_
[8] ميزان الإعتدال( ٤٤٠\٣)_
[9] الكاشف(٢٤١\٢) رقم(٥٢٨٩)_
[10] كشف البارى(٦٣٧\١)_

**قوله** قَالَ قَالَ لِي ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ: سفيان رحمه الله فرمائي چه ماته ابن ابى نجيح رحمه الله اوفرمائيل.

په مسند حميدى كښې د ،، سفيان حدثنا ابن ابي نجيح،، الفاظ دى.[1] چه په دې سره د تدليس شبه ختميږى.

**قوله** قَالَ صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلَمْ أَسْمَعْهُ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا حَدِيثًا وَاحِدًا: امام مجاهد رحمه الله فرمائي چه ما د (مكې نه) مدينې پورې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په صحبت كښې سفر اوكړو.ما ددوى نه ددې پوره سفر په دوران كښې سوا د يو حديث نه بل حديث داسې وانه ريدو.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم طرف ته ئې نسبت كولو سره بيان كړې وى.

**د حضرت ابن عمر رضى الله عنهما په روايت كښې احتياط** دا احتياط فى الروايت دې.چه د ابن عمر پشان عاشق رسول صحابى. د مكې مكرمې نه مدينې منورې ته سفر كوى.او مجاهد د هغوى خاص شاگرد د سفر ملگرې دې.هغه فرمائي.چه په پوره لاره كښې ئې صرف يو حديث بيان كړو.حالانكه هغه چه به څومره خبرې هم بيانولې.هغه به ټول احاديث وو.خو نبى كريم صلى الله عليه وسلم طرف ته په نسبت كولو كښې ئې احتياط كولو.

**قوله** قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُتِيَ بِجُمَّارٍ: وې فرمائيل.چه مونږ د نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره وو.چه هغوى (صلى الله عليه وسلم) ته د كجورو مغز راوړلې شو.

**قوله** فَقَالَ إِنَّ مِنَ الشَّجَرِ شَجَرَةً مَثَلُهَا كَمَثَلِ الْمُسْلِمِ فَأَرَدْتُ أَنْ أَقُولَ هِيَ النَّخْلَةُ فَإِذَا أَنَا أَصْغَرُ الْقَوْمِ فَسَكَتُّ: نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.چه بې شكه په ونو كښې يوه ونه داسې ده.چه هغه د مسلمان پشان ده.ما اراده اوكړله.چه اوښايم.چه هغه د كجورې ونه ده.خو ما اوكتل.چه زه په دې جماعت كښې د ټولو نه كشر يم.نو خاموش شوم.

مطلب دا دې.چه هسې نه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ناراضه شى.چه مشران حضرات په مجلس كښې موجود دى.د هغوى په وړاندې دې خبرې ولې اوكړې؟ په دې خيال سره زه خاموش شوم.

**قوله** قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ: نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.چه دا د كجورې ونه ده.

دلته امتحان اوشو.د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په ذهن كښې جواب راغې. دا ,,فهم فى العلم،، دې.دا بله خبره ده.چه د ادب په وجه خاموش شو.

**د حديث ترجمة الباب سره مطابقت** د علامه سندهى رحمه الله د قول مطابق چونكه د باب مقصدد افهامو مختلف كيدو بيانول دى.په دې وجه دلته كښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د كم

---

[1] مسند الحميدى(۲۹۸\۱۲) رقم الحديث (۶۷۶)_

عمره كيدو باوجود پوهيدل، او د نورو حضراتو نه پوهيدل، د افهامو په دې اختلاف باندې واضح دليل دې.

د شيخ الهند رحمه الله په نيز چونكه ،،فضيلت د فهم،، بيانول مقصود دى. نو دا حديث به په فضيلت د فهم باندې داسې دال وى.چه ددې په دويم طريق كښې د حضرت عمر رضي الله عنه دا ارشاد موجود دې «لأن تكون قلتها أحب إلى من أن يكون لى كذا وكذا»(١)

دغه شان حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائى.چه ددې باب نه مقصود د ،،تفقه،، د اعلى مراتبو نه كيدل بيانول دى.نو دلته چونكه حضرت ابن عمر رضي الله عنه پوهه شو.او په دې باندې د حضرت عمر رضي الله عنه دخوشحالئ اظهار مرتب كيږى.په دې وجه ددې نه د فهم فضيلت خو ثابتيږى.البته استنباط د مسائلو او د شريعت په دقائقو باندې اطلاع كومه چه ،،فقه،، ده.او دا د ،،فهم،، نه اعلى ده.ددې اثبات نه دې.ددې ذكر په تيرشوى باب كښې شوې دې.

د حضرت شيخ الحديث رحمه الله د قول مطابق چونكه مقصود د باب د مطالعې طريقه خودل او د مطالعې ترغيب وركول دى.او دا خبره د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ،،جمار،،( د كجورو مغز) په لاس كښې اخستل، او د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه دغور او فكر او تدبر كولو سره د جواب پوهيدو نه واضح كيږى.والله اعلم بالصواب.

تنبيه: په دې حديث باندې تفصيلى كلام د «باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا» لاندې شوې دې.

## ١٥-((بَابُ الِاغْتِبَاطِ فِي الْعِلْمِ وَالْحِكْمَةِ))

**ماقبل باب سره مناسبت:** ددې نه وړاندې امام بخارى رحمه الله «باب الفهم فى العلم» قائم كړې وو او اوس ئې «باب الاغتباط فى العلم والحكمة» قائم كړې دې.په دواړو كښې مناسبت په دې طريقه دې.چه څومره د يوكس په فهم د علم كښې اضافه وى.هغومره به دهغه په خوشحالئ او غبطه كښې اضافه وى.څكه چه كله د يوكس په فهم كښې اضافه وى.نو د هغه نظر وړاندې زياتيږى.او هغه سرې به په نظر كښې ساتى.كوم چه د فهم په اعتبار سره زيات قوى وى.دې به خواهش كوى.چه زه هم دهغه په شان شم.هم دا غبطه ده.(٢)

**په ترجمة الباب كښې د علم او حكمت دواړو ذكركولو وجه:** بيا په ترجمة الباب كښې امام بخارى رحمه الله د ،،علم او حكمت،، دواړو ذكركړې دې.حالانكه په حديث باب كښې صرف دحكمت ذكر دې.كه دا دواړه مترادف وى.نو بيا دا عطف تفسيرى دې.او ښودل مقصود دى. چه په حديث كښې د ،،حكمت،، نه مراد ،،علم،، دې.او كه د دواړو په مينځ كښې فرق اوكړې شى.نو دا به عطف الخاص على العام وى.او د ،،علم،، د لفظ په اضافې سره دا اشاره مقصود ده.چه د ،،حكمت،، حصول د علم په حصول باندې موقوف دې.(٣) والله اعلم.

١) صحيح البخارى(١\٢٤) كتاب العلم. باب الحياء فى العلم.رقم١٣١)_

٢) عمدة القارى(٢\٥٤)_

٣) فتح البارى(١\١٦٦) و إرشاد السارى(١\١٧١)_

د ,,حكمت،، په باره كښې تفصيل وړاندې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د ارشاد «كونوا ربانيين حكماء، علماء، فقهاء» لاندې مونږ بيان كړې دې

**قوله: وَقَالَ عُمَرُ تَفَقَّهُوا قَبْلَ أَنْ تُسَوَّدُوا:** حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى چه د سردار جوړيدو نه وړاندې تفقه حاصل كړئ.

,,تُسَوَّدُوا،،: دا د ,,سوّد يسوّد تسويداً،، (باب تفعيل) نه د مضارع مجهول جمع مذكر حاضر صيغه ده.سردار جوړيدل. د ثلاثى مجردو نه ,,ساد يسود سؤدداً وسيادةً،، راخى.(۱)

**د حديث نه د حضرت عمر رضي الله عنه مقصد** د حضرت عمر رضي الله عنه مقصد دا دې چه سيادت (سردارى) او رياست (حكومت) كله كله د تفقه او تعلم نه مانع جوړيږى.خكه چه د لوئي جوړيدو نه پس متعلم جوړيدو سره سړې طبعاً شرميږى.په دې وجه ته د سيادت د حصول نه وړاندې علم حاصل كړه.(۲)

امام شافعى رحمه الله فرمائى.«إذا تصدر الحدث فاته علم كثير»(۳) يعنى كله چه يو نوعمر د رياست په گدئ باندې كينى.نو هغه د ډيرو علومو نه محرومه كيږى. هم دا مفهوم امام يحيى بن معين رحمه الله نه هم نقل دې.(۴)

ابو عبيد رحمه الله پخپل ,,غريب الحديث،، كښې ددې مطلب دا بيان كړې دې.چه ته په ماشوموالى (كم عمرئ) كښې د سردار جوړيدو نه وړاندې علم حاصل كړه.گنى بيا به ته د خپلو كشرانو نه په علم حاصلولو كښې شرم محسوسوې.نو ته به جاهل پاتې شې.(۵)

شمرلغوى د ,,تسوّدوا،، ترجمه په ,,تزوجوا،، سره كړې ده.خكه چه كله سړې نكاح اوكړى.او بيا خاص طور باندې كله چه دده اولاد پيدا شى.نو د خپل كور د خلقو ,,سيد،،(سردار) جوړيږى.(۶) په ده باندې ذمه داريانې راخى.په دې وجه د نكاح نه وړاندې علم حاصل كړه.
علامه كرمانى رحمه الله دا احتمال هم ښكاره كړې دې.چه دا د ,,سواد لحيه،، نه ماخوذ دې.
گويا دنوجوان ياخوان په گيره كښې د ډير توروالى نه وړاندې د علم حاصلولو حكم مقصود دې.يا د پوخ عمر سړى ته حكم كول مقصود دى.چه هغه دگيرې د ويختو سپين والى طرف ته د مائل كيدو نه وړاندې علم حاصل كړى.(۷) خو په دې احتمال كښې تكلف دې.(۸)

---

۱) عمدة القارى(۲\۸٤)_
۲) فتح البارى(۱\۱۶۶)_
۳)المصدر السابق)_
۴) عمدة القارى(۲\۵۵)_
۵) فتح البارى(۱\۱۶۶)_
۶) المصدر السابق)_
۷) شرح الكرمانى(۲\٤)و فتح البارى(۱\۱۶۶)_
۸)فتح البارى(۱\۱۶۶)_

**د حضرت عمر رضي الله عنه د اثر ترجمة الباب سره مطابقت** ابن المنير رحمه الله فرمائی.چه په دې اثر كښې سيادت (او سرداری) د علم د ثمراتو څنې ګرځولې شوې دې.او طالب علم ته ونيلې شوې دی.چه دې د سيادت درجې ته درسيدو نه وړاندې زيادت د علم غنيمت اوګنړی.چه استحقاق د سيادت ثابت شی.کوم چه سبب د اغتباط دې.[1]

حافظ رحمه الله فرمائی.چه زما په نيز مطابقت داسې دې.چه رياست اګرچه عادةً د غبطه سبب جوړيږی.خو حديث شريف په دې باندې دلالت کوی.چه د غبطې بنياد دوه څيزونه دی.يو علم دې.او بل جود ( سخاوت) دې.بيا جود هم هغه وخت محمود دې.کله چه علم سره وی.ګويا حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی.چه د رياست او سياست د حصول نه وړاندې علم حاصل کړه.چه کله په تا باندې رشك اوکړې شی.نو دا رشك کول په حقه دی. دغه شان ګويا حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی.چه ته د رياست په حصول کښې جلد بازی مه کوه.چه ددې په وجه عادتاً ( عام طور باندې) سړې د علم د طلب نه پاتې کيږی.بلکه د رياست طلب پريږده.او علم حاصل کړه.چه ته په حقيقت کښې قابل د رشك جوړ شې.[2] والله اعلم.

**قوله**: قَالَ أَبُوعَبْدِاللَّهِ وَبَعْدَأَنْ تُسَوَّدُوا: ابو عبدالله يعنی امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه کله سردار جوړ کړې شې.ددې نه پس هم علم حاصل کړه.

امام بخاری رحمه الله ددې ښودلو دپاره د مذکوره جملې اضافه فرمائيلې ده.چه د حضرت عمر رضي الله عنه د قول «تفقهوا قبل أن تسودوا» دا نه اوګنړلې شی.چه ..بعد السيادة.. علم حاصل نکړې شی.[3]

**د حضرت عمر رضي الله عنه د اثر تخريج** دا اثر ابن عبدالبر رحمه الله په ..جامع بيان العلم وفضله..کښې [4]، ابن ابی شيبه رحمه الله په ..مصنف.. کښې [5]، بيهقی رحمه الله په ..المدخل.. کښې [6]، او په ..شعب الايمان.. کښې [7] دارمی رحمه الله پخپل ..سنن.. کښې [8]او ابن ابی خيثمه رحمه الله په ..کتاب العلم..کښې [9]کښې موصولاً تخريج کړې دې.

**قوله**: وَقَدْتَعَلَّمَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كِبَرِسِنِّهِمْ: د نبی کريم صلى الله عليه وسلم اصحابو په کبرسنئ ( لوئې عمر) کښې تعليم حاصل کړې دې.

---

[1] المتوارى على تراجم البخارى(ص٥٦)_
[2] فتح البارى(١\١٦٦)_
[3] فتح البارى(١\١٦٦)_
[4] جامع بيان العلم وفضله(١\٣٦٦، ٣٦٧) رقم(٥٠٨) و(٥٠٩)_
[5] المصنف لابن ابى شيبة(٥\٢٨٥) كتاب الأدب. باب ما جاء فى طلب العلم وتعليمه. رقم(٢٦١٠٧)_
[6] كذا فى عمدة القارى(٢\٥٥) وتغليق التعليق(٢\٨٢)_
[7] شعب الإيمان(٢\٢٥٥) باب فى طلب العلم. رقم(١٦٦٩)_
[8] سنن الدارمى(١\٩١) المقدمة. باب فى ذهاب العلماء. رقم(٢٥٠)_
[9] تغليق التعليق(٢\٨٢)_

دا جمله هم د امام بخارى رحمه الله د قول ،، وبعد أن تسودوا،، تتمه او ددې علت دې.مطلب دا دې چه د سيادت حاصليدو نه پس د علم حاصلولو نه مه منع كيږئ.بلكه دا سلسله جارى ساتئ.ځكه چه علم خو د: مهد نه لحد (د ځيږې نه لحد) پورې طلب كولې شى.حضراتو صحابه كرامو رضي الله عنهم چه كله ايمان نه وو راوړلې.او د جاهليت دور وو.هغوى ته معلم د خير هم نه وو ملاو شوې.او نه د هغوى علم طرف ته رغبت (او شوق) وو.د ايمان راوړلو نه پس الله دوى ته علم هم وركړو.او د علم رغبت او شوق ئې هم وركړو.هغوى ددې د ضرورت په لحاظ سره د سيادت حاصليدو نه پس هم علم حاصل كړو.

لكه چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث په بخارى شريف كښې دې.فرمائى: «كنتُ أقرئ رجالاً من المهاجرين، منهم عبدالرحمن بن عوف»[۱] دغه شان په يو روايت كښې دى.«كنت أقرئ عبدالرحمن بن عوف»[۲]

نو دا سيادت دې په علم حاصلولو كښې مانع جوړ نشى.اصل هم دا دې.چه تاسو دا علم وړاندې حاصل كړئ.خو كه تاسو وړاندې حاصل نكړې شو.نو ،،بعد أن تسودوا،، هم حاصلول ضرورى دى.والله أعلم.

## حديث باب

۷۳-((حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ عَلَى غَيْرِ مَا حَدَّثَنَاهُ الزُّهْرِيُّ قَالَ سَمِعْتُ قَيْسَ بْنَ أَبِي حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ(۳)قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ آتَاهُ اللَّهُ مَالًا فَسُلِّطَ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ وَرَجُلٌ آتَاهُ اللَّهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِي بِهَا وَيُعَلِّمُهَا))

[ ۱۳٤۳، ۶۷۲۲، ۶۸۸۶]

## رجال الحديث

① حميدى رحمه الله: دا امام ابوبكر عبدالله بن الزبير حميدى مكى رحمه الله دې.ددوى حالات د

---

۱)صحيح بخارى(۱۰۰۹\۲) كتاب الحدود. باب رجم الحبلى من الزنا إذا أحصنت. رقم(۶۸۳۰)_

۲) صحيح بخارى(۱۰۸۹\۲) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة. باب ماذكر النبى ﷺ وحض على اتفاق أهل العلم..... رقم(۷۳۲۳)_

۳) قوله:..عبدالله بن مسعود..الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه(۱۸۹\۱) كتاب الزكاة. باب إنفاق المال فى حقه. رقم(۱٤۰۹) و(۱۰۵۷\۲) ألأحكام. باب أجرمن قضى بالحكمة. رقم(۷۱٤۱). (۱۰۸۸\۲) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة. باب ما جاء فى إجتهاد القضاة بما أنزل الله تعالى. رقم(۷۳۱۶) ومسلم فى صحيحه(۲۷۲\۱) كتاب فضائل القرآن. باب فضل من يقوم بالقرآن ويعلمه. و ابن ماجه فى سننه. فى كتاب الزهد. باب الحسد. رقم(٤۲۰۸)_

بدء الوحى درومبى حديث لاندې اختصار سره (١)او په كتاب العلم كښې د «باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا و أنبأنا» لاندې تفصيل سره تيرشوى دى.

② سفيان رحمه الله: دا امام سفيان رحمه الله دې.ددوى تذكره هم د بدء الوحى درومبى حديث لاندې اختصار سره(٢)او د «باب قول المحدث حدثنا......» لاندې تفصيل سره ذكر شوى دى.

③ اسماعيل بن ابى خالد رحمه الله: دا تابعى محدث اسماعيل بن ابى خالد احمسى بجلى كوفى رحمه الله دې.ددوى مختصر تذكره په كتاب الايمان كښې د «المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تير شوى دى.(٣)

④ قيس بن ابى حازم رحمه الله: دا مشهور مخضرم تابعى قيس بن ابى حازم احمسى بجلى كوفى رحمه الله دې.ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب قول النبى ﷺ: الدين النصيحة لله ولرسوله ولأئمة المسلمين وعامتهم» لاندې تيرشوى دى.(٤)

⑤ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه: د حضرت عبدالله بن مسعود هزلى رضي الله عنه حالات په كتاب الايمان كښې د «باب ظلم دون ظلم» لاندې ذكر شوى دى.(٥)

**قوله: قَالَ حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ عَلَى غَيْرِ مَا حَدَّثَنَاهُ الزُّهْرِيُّ:**
سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى.چه مونږ ته اسماعيل بن ابى خالد په داسې الفاظو سره حديث واورولو.چه دا دهغې الفاظو نه علاوه وو.كومو سره چه زهرى مونږ ته حديث بيان كړې وو.
د «عَلَى غَيْرِ مَا حَدَّثَنَاهُ الزُّهْرِيُّ» مطلب او ددې تصريح مقصد: مطلب دا دې.چه سفيان بن عيينه دا روايت د اسماعيل بن ابى خالد نه هم نقل كوى.او د زهرى نه هم. د زهرى روايت په بخارى شريف كښې په،،عن سالم عن أبيه،، طريق سره نقل دې.(٦) دغه شان په مسلم كښې

---

(١)كشف البارى(٢٣٧/١)_
(٢)كشف البارى(٢٣٨/١)_
(٣)كشف البارى(٦٧٩/١)_
(٤)كشف البارى(٧٦١/٢)_
(٥)كشف البارى(٢٥٧/٢)_
(٦)أخرجه البخارى فى صحيحه(١١٢٣/٢) فى كتاب التوحيد، باب قول النبى ﷺ: رجل آتاه الله القرآن فهو يقوم به آناء الليل والنهار..... رقم(٧٥٢٩) عن طريق.. على بن عبدالله، عن سفيان، عن الزهرى..... كما أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه(٧٥١/٢) فى كتاب فضائل القرآن، باب اغتباط صاحب القرآن، رقم(٥٠٢٥) عن طريق..أبى اليمان عن شعيب عن الزهرى..... بدون واسطة سفيان.)_

هم دا روایت منقول دې.(١) حالانکه اسماعیل دا روایت د قیس بن ابی حازم په واسطې سره د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل کوی.په دواړو روایتونو کښې د سند سره سره الفاظو کښې هم څه قدرې فرق شته.(٢)

د «علی غیر ما حدثنا الزهری» تصریح نه غرض یو خو متعدد طرقو طرف ته اشاره ده.چه دا د روایت د تقویت سبب دې.دویمه ددې شبهې ازاله مقصود ده.چه څوك د سفیان مختلفو سندونو ته په کتلو سره سند کښې اضطراب او نه ګڼړی.(٣) والله اعلم.

**قوله قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ:** حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.چه صرف د دوو سرو په خصلتونو باندې رشك کیدل پکار دی.

**د حسد نه حقیقی معنی مراد ده.او که غبطه مراد ده؟** په ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله د ،،اغتباط،، لفظ استعمال کړې دې.حالانکه په حدیث کښې د ،،حسد،، لفظ دې.امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب سره دا ښودلې ده.چه په حدیث کښې ،، حسد ،، حقیقی معنی کښې نه دې.بلکه د ،،غبطه،، په معنی کښې دې.

ددې دلیل دا دې.چه امام بخاری رحمه الله هم دا روایت په ،،فضائل القرآن،، کښې د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه هم روایت کړې دې.چه د هغې الفاظ دا دی.«لاحسد إلا فی اثنتین: رجل علمه الله القرآن، فهو يتلوه آناء الليل و آناء النهار، فسمعه جار له، فقال: ليتنى أوتيتُ ما أوتى فلان فعملت مثل ما يعمل»(٤) دا الفاظ په دې خبره باندې دلالت کوی.چه دلته ،،حسد،، مراد نه دې.په کوم کښې چه د بل کس د نعمت زوال مطلوب وی.بلکه غبطه مراد ده.چه په دې کښې د زوال نه بغیر د هغه د نعمت خپل ځان دپاره دحصول تمنا او خواهش کیږی.

دغه شان د ابو کبشه انماری رضي الله عنه اوړد حدیث دې.«وعبد رزقه الله علماً و لم يرزقه مالاً فهو صادق النية، يقول: لو أن لى مالاً لعملت بعمل فلان، فهو بنيته، فأجرهما سواء.....»(٥)

دلته دا احتمال هم شته.چه ،،حسد،، پخپله حقیقی معنی کښې وی.خو په دې صورت کښې به استثناء منقطع وی.او مطلب به دا وی.چه حسد خو په هیڅ صورت کښې هم

---

(١) أخرجه مسلم فى صحيحه(٢٧٢|١) فى كتاب فضائل القرآن، باب فضل من يقوم بالقرآن ويعلمه، عن طريق، أبى بكر بن أبى شيبة وعمرو الناقد، وزهير بن حرب عن سفيان، عن الزهرى عن سالم عن أبيه.....كما أخرجه عن يونس عن الزهرى، أيضاً.)_

(٢) د الفاظو د فرقونو دپاره تيرې شوې حوالې اوګورئ.)_

(٣) شرح الكرمانى(٤٢|٢)_

(٤) صحيح البخارى(٧٥١|٢) كتاب فضائل القرآن، باب إغتباط صاحب القرآن، رقم(٥٠٢٦)_

(٥) أخرجه الترمذى (واللفظ له) فى جامعه، فى كتاب الزهد، باب ماجاء مثل الدنيا مثل أربعة نفر، رقم(٢٣٢٥)، وابن ماجه فى سننه، فى كتاب الزهد، باب النية، رقم(٤٢٢٨)_

صحيح نه دي.البته دا دوه خصلتونه محمود دى.چه په دې كښې هم حسد نشته.نو په هېڅ خيز كښې حسد مه كوئ.(۱)

بيا دلته د ،،اثنتين،، لفظ دې.او مراد ،،خصلتين،، دې.په اكثرو رواياتو كښې هم دغه شان دې.(۲) نو وروسې به ،،رجل آتاه الله،، كښې رجل مرفوع وئيلې شى.په اصل كښې دې نه وراندې به ،،خصلة،، مضاف محذوف وى.چه د دا مبتدا ده.دا حذف كړې شو.او مضاف اليه ددې قائم مقام كړې شو. او په دې باندې ئې د مضاف اعراب وركړل.(۳) البته د ،،كتاب الاعتصام،، په روايت كښې ،،اثنين،، د مذكر لفظ دې.(۴) گويا ،،رجلين اثنين،، مراددې.نوددې نه پس به ،،رجل،، د بدليت په بناء باندې مجرور وئيلې شى.(۵) والله اعلم.

**قوله**: رَجُلٌ آتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَسُلِّطَ عَلٰى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ: يو د هغه سړى په خصلت باندې چاته چه الله تعالى دولت وركړې وى.او هغه دحق په سلسله كښې خرچ كولو باندې مسلط شوې وى.

،،سُلِّط،، د ابوذر په روايت كښې هم دغه شان دې.حالانكه د نورو حضراتو په رواياتو كښې ،،سلطه،، دې.،،هلكة،، په فتحې د هاء او لام سره دې.

د دولت مندو عام طور باندې دا حال وى.چه دهغه دولت د هغه په زړه باندې خور (او چاپيره) وى.خو ددې سړى دا كيفيت بيان كړې شوې دې.چه الله تعالى څنگه ده ته مال وركړې دې.دغه شان ئې په حق لاره كښې ده ته د خرچ كولو توفيق هم وركړې دې.

**په حق لاره كښې ټول مال خرچ كول اسراف نه دې**: ددې ځائې نه يوه خبره بله هم معلومه شوه.چه كه الله تعالى يوكس ته مال وركړى.او هغه ټول په ټوله په حق لاره كښې خرچ كړى.نو دې ته به اسراف نشى وئيلې.

**قوله**: وَرَجُلٌ آتَاهُ اللّٰهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِي بِهَا وَيُعَلِّمُهَا: او دويم دهغه سړى په خصلت باندې،چه هغه ته الله تعالى د قرآن او حديث علم وركړې وى.هغه ددې موافق فيصله كوى.او خلقو ته ئې ښائى.

دلته د حكمت ذكر دې.حالانكه په بعضو رواياتو كښې د ،،قرآن،، ذكر دې.«رجل علمه الله القرآن فهو يتلوه آناء الليل و آناء النهار.....»(۶)

---

(۱) فتح البارى(۱۶۷\۱)-
(۲) المصدرالسابق)_
(۳) المصدرالسابق)_
(۴) كذا قاله الحافظ فى الفتح(۱۶۷\۱)_
(۵) فتح البارى(۱۶۷\۱)_
(۶) صحيح البخارى(۷۵۱\۲) كتاب فضائل القرآن. باب إغتباط صاحب القرآن. رقم(۵۰۲۶)_

**يو سوال او دهغې جواب** دلته يوسوال دا دې.چه ددې دوو څيزونو د تخصيص څه وجه ده؟ حالانكه رشك په نورو صفاتو باندې هم كيدې شى؟

① ددې يو جواب دا دې.چه ددې دواړو صفاتو د اهميت په وجه نبى كريمﷺ د مبالغې په طور اغتباط دې دواړو كښې محصور اوفرمائيلو.حقيقت كښې نه دې.نور صفات هم قابل د غبطې كيدې شى.خو ددې دواړو په مقابله كښې هغه گويا كالعدم دى.

② دويم جواب دا دې.چه دا دواړه د انسان د ټولو خصلتونو (او خوبيانو) عنوان دې.ځكه چه په انسان كښې به خوبيانې يا داخل وى.يا به خارجى وى .په خارجى خوبيانو كښې دټولو نه لويه خوبى دا ده.چه هغه سره مال وى.او هغه دخير په لاره كښې خرچ كوى.په داخلى خوبيانو كښې د ټولو نه اهمه خوبى دا ده.چه دده سره علم او حكمت وى.او هغه ددې مطابق فيصله اوكړى .او تعليم وركړى.گويا نبى كريمﷺ دا دواړه خوبيانې د مثال په طور فرمائيلى دى.والله اعلم.

## ۱۶-((بَابُ مَا ذُكِرَ فِي ذَهَابِ مُوسَى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْبَحْرِ إِلَى الْخَضِرِ وَقَوْلِهِ تَعَالَى هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَى أَنْ تُعَلِّمَنِي مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا)) [الكهف: ٦٦]

**ما قبل باب سره مناسبت:** ددې نه وړاندې باب قائم كړې شوې وو.((باب الاغتباط فى العلم والحكمة)) او اوس ئې د ((باب ذهاب موسى فى البحر إلى الخضر)) باب قائم كړې دې.په دواړو بابونو كښې ① مناسبت دا دې.چه كوم څيز قابل د غبطې وى.د هغې په حاصلولو كښې مشقت اوچتولې شى.(۱)

② دغه شان يو مناسبت دا دې.چه په وړاندې باب كښې د حضرت عمرؓ اثر وو.چه ((تفقهوا قبل أن تسودوا)) اوس په دې باب كښې دا بيانولې شى.چه اوگورئ! حضرت موسىؑ د سيادت په اوچت مقام باندې فائز وو.خو ددې باوجود د علم د طلب نه بند نشو.(۲)

**د ترجمة الباب مقصد** حافظ ابن حجرؒ فرمائى.چه ددې ترجمې منعقد كولو مقصد د علم د طلب په سلسله كښې د مشقت برداشت كولو ترغيب وركول دى.(۳)

شاه ولى الله صاحبؒ فرمائى.چه ددې باب نه مقصد د علم د حصول دپاره د ،،رحله،، (سفر) اثبات دې.ځكه چه علم دپاره سفر د حضرات صحابه كرامو‌ؓ او د تابعينوؒ په زمانه كښې معهود نه وو.بلكه دغه حضراتو به د خپل خپل ښار دعالمانو علم حاصلولو.بيا كله چه كتابونه مدون شو.او دا كتابونه په مختلفو ښارونو كښې خواره شو.نو خلقو ددې د

---

(۱) عمدة القارى(۵۸/۲) وفتح البارى(۱۶۸/۱)_

(۲) المصادر السابق)_

(۳) فتح البارى(۱۶۸/۱)_

حصول دپاره سفرې شروع کړلې.دغه شان د ،،رحله،، عادت شروع شو.ددې ،،رحله،، دپاره مؤلف يو صحيح او قوى اصل دلته بيان کړې دې.(١)

**يو اشکال او د هغې توجيهات** خو په دې باندې اشکال کيږى.چه امام بخارى رحمه الله ددې نه دوه بابونه روستو «باب الخروج في طلب العلم» منعقد کړې دې.او هم دا حديث ئې دوباره راوړلې دې.او حضرت شاه صاحب رحمه الله چه کوم مقصد بيان کړې دې. دا د «باب الخروج....» سره زيات مناسب دې؟

ددې اشکال نه خلاصې په دې طريقه ممکن دې.چه داسې اووئيلې شى. چه ددې باب نه مقصود ،،خروج في البحر،، بيانول دى.د راروان باب نه مطلق خروج ثابتول مقصود دى.(٢)

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى.چه د مذکوره باب نه د ،،تعلم بعد السيادة،، اثبات مقصود دې.چه دا يو خاص او اهم صورت دې.او په راروان باب کښې ،،خروج في طلب العلم،، عام دى.اوس هيڅ قسمه څه تکلف نشته. او امام بخارى رحمه الله په نورو موقعو کښې هم دغه شان کړى دى.چه د تيرشوى باب متعلق د يو امر تحقيق او تکميل ئې په دويم باب کښې کړې دې.نو په تيرشوى باب کښې «وقد تعلم أصحاب النبى ﷺ في كبر سنهم» مجملاً د ترجمې لاندې ذکرکړې شوې وو.اوس ئې دهغې تکميل بالاستقلال اوکړو.او دا ئې ثابته کړله.چه اوګوره! حضرت موسى عليه السلام سيد السادات وو.خو سره ددې ئې د علم د تعلم دپاره پخپل شوق خومره جدوجهد اوکړو.او علم هم هغه کوم چه د ضرورى علم نه زياتى او دحضرت کليم الله د علم نه مفضول وو.(٣)

حضرت شيخ الهند رحمه الله چه د الله تعالى قول ﴿هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا﴾(٤) د ترجمې جزء جوړ کړې دې.ددې په توجيه کښې فرمائى.چه ،،خيال هغه طرف ته ځى.چه حضرت موسى عليه السلام کيدې شى.چه په غرض د تعلم تشريف نه وى اوړلې.بلکه د حضرت خضر د ملاقات او دهغوى د علم د مشاهدې په شوق کښې تشريف اوړلې وى.لکه چه سيدالمرسلين ﷺ هم «يرحم الله موسى! لوددنا لو صبر حتى يقص علينا من أمرهما»(٥) فرمائيلو سره د شوق اظهار فرمائيلې دې.غالباً هم ددې خيال رد کولو په غرض مؤلف ترجمة الباب سره د الله تعالى قول ﴿هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا﴾ ذکرکړې دې.والله تعالى اعلم.(٦)

---

(١) شرح تراجم أبواب البخارى(ص١٥)_

(٢) الأبواب والتراجم، ازشيخ الهند رحمه الله (ص٤٨)_

(٣) المصادر السابق)_

(٤) الكهف\٦٦)_

(٥) صحيح البخارى(١\٢٣) كتاب العلم، باب مايستحب للعالم إذا سئل: أى الناس أعلم؟ فيكل العالم إلى الله، رقم(١٢٢)_

(٦) الأبواب والتراجم(ص٤٨)_

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه زما په نيز ددې باب مقصد د علم د طلب دپاره د سمندري سفر جواز بيانول دي.څکه چه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه حديث «لا يركب البحر إلا حاج أو معتمر أو غاز في سبيل الله»(١) نه په ښکاره حصر معلوميږي.ددې توهم د لرې کولو دپاره ئې دا باب قائم کړې دې.او ددې نه روستو په کتاب البيوع کښې «باب التجارة في البحر»(٢) ئې هم ددې مقصد دپاره قائم کړې دې.(٣) والله اعلم.

دا هم ممکن ده.چه امام بخاري رحمه الله دا باب د دوو موقوف آثارو تقويت دپاره قائم کړې وي.

① يو اثر د ابو العاليه رحمه الله دې.«أن موسى التقى بالخضر في جزيرة من جزائر البحر»(٤)

② او دويم اثر د ربيع بن انس رحمه الله دې.«انجاب الماء عن مسلك الحوت، فصار طاقة مفتوحة، فدخلها موسى على أثر الحوت حتى انتهى إلى الخضر»(٥)دا دواړه آثار اګرچه موقوف دي.خو ددې رجال ثقات دي.نو د هغې د تقويت ښکاره کولو او اثبات دپاره ئې دا باب قائم کړې دې.(٦)

**په ترجمة الباب باندې يو اشكال او د هغې جواب:** د ترجمة الباب الفاظ «ذهاب موسى في البحر إلى الخضر» په دې خبره باندې دال دې.چه حضرت موسى عليه السلام د حضرت خضر عليه السلام سره د ملاقات دپاره د سمندر سفر اوکړو.حالانکه دوى د هغه سره ملاقات دپاره د اوچې سفر کړې وو.لکه چه د «فانطلقا يمشيان»(٧) او د «حتى أتيا الصخرة»(٨) الفاظ دال دي.سمندري سفر دوى حضرت خضر عليه السلام سره د ملاقات دپاره نه، بلکه د ملاقات نه پس ئې هغوى سره ( يوځائې) کړې وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه په دې کښې يا خو د ،،البحر،، نه وړاندې مضاف محذوف دې.يا د ،،الخضر،، نه وړاندې مضاف محذوف دې. يعنى «ذهاب موسى في ساحل البحر إلى الخضر» مراد دې.يا «ذهاب موسى إلى البحر إلى مقصد الخضر» مراد دې.(٩)

---

(١) سنن أبي داؤد، كتاب الجهاد، باب في ركوب البحر في الغزو، رقم(٢٤٨٩)_

(٢) صحيح البخاري(٢٧٧\١) رقم الباب_

(٣) تعليقات لامع الدراري(٢٩\٢)_

(٤) فتح الباري(١٦٨\١)_

(٥) المصادر السابق)_

(٦) تعليقات لامع الدراري( ٣٠\٢ )_

(٧) صحيح البخاري(٤٨٢\١) كتاب أحاديث الأنبياء باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام، رقم(٣٤٠١)

(٨) صحيح البخاري(٤٨٢\١) كتاب أحاديث الأنبياء باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام رقم(٣٤٠١)_

(٩) فتح الباري(١٦٨\١)_

① په رومبى صورت كښې به مطلب دا وى.چه موسى عليه السلام د حضرت خضر عليه السلام سره د ملاقات په غرض سره د بحر د ساحل ( د سمندر د غاړې) سفر اوكړو.
② په دويم صورت كښې به مطلب دا وى.چه موسى عليه السلام په سمندر كښې د حضرت خضر عليه السلام د مقصد لاندې تابع جوړ شوې روان وو.
ياد ساتئ چه دلته د محذوف ،،ساحل،، نه علاوه ،،ناحية،، يا ،،جانب،، هم راوښكلې كيدې شي.د دريو واړو مفهوم يوشان دې.په دې وجه د يو د راجح ګرځولو ضرورت نشته.

بيا بعضو حضراتو فرمائيلى دى.چه په رومبى صورت كښې د «ذهاب موسى فى ساحل البحر»نه پس ،،إلى الخضر،، ونيل. د ضرورت نه يوه زياتى خبره ده.(١)
خو دا اعتراض خكه صحيح نه معلوميږى.چه حضرت موسى عليه السلام كوم سفر اختيار كړې وو. دهغې مطلب د علم د طلب په سلسله كښې حضرت خضر عليه السلام سره ملاويدل وو.نو د «ذهاب موسى فى ساحل البحر» نه پس ،،إلى الخضر،، په مقصد باندې دلالت كونكې كلمه ده.دا به د ضرورت نه زياتى خبره نشى ګرځولې.

دغه شان په دويم صورت يعنى د «ذهاب موسى فى البحر إلى مقصد الخضر» دتاويل په صورت كښې هم اعتراض شوې دې.چه حضرت موسى عليه السلام كوم سفر كړې وو.د هغې مقصد د حضرت خضر عليه السلام نه حصول د علم وو.لكه څنګه آيت كريمه ﴿هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا﴾(٢) دلالت كوى.نو د ،،إلى مقصد الخضر،، ونيلو په ځائې ،،إلى مقصد التعليم،، ونيل پكار وو.(٣)
خو دا اعتراض هم صحيح نه معلوميږى.چه حضرت موسى عليه السلام په اصل كښې د علم د طلب دپاره وتلې وو.او دا علم دوى لره د حضرت خضر عليه السلام نه حاصلول وو.په دې وجه دوى دملاقات نه پس د ،،آتباع،، اجازت واخستلو.په دوى باندې يو څو شرطونه كيخودې شو. شرطونه قبول شو.نود ،،اتباع،، اجازت ملاوشو.اوس حضرت موسى عليه السلام د حضرت خضر عليه السلام تابع شو.اوس كه د يومقصد دپاره حضرت موسى عليه السلام د حضرت خضر عليه السلام د تابع كيدو په حيثيت سره دوى سره سفر كوى.نو په دې كښې څه باك دې؟
حافظ رحمه الله دويم احتمال دا ذكركړې دې.چه دلته د حضرت موسى عليه السلام سفر ...ى ( په اوچه) هم شوې دې.دا برى سفر حضرت خضر عليه السلام سره د ملاقات دپاره شوې دې.دغه شان ددوى سفر بحرى هم شوې دې.دا بحرى سفر د حضرت خضر عليه السلام په معيت كښې شوې دې.د دواړو سفرونو نه مقصود تحصيل دعلم دې.دلته چه كوم «ذهاب موسى فى البحر إلى الخضر» ونيلو سره بحرى سفر مخصوص بالذكر كړې دې.ددې مقصد د برى سفر نه انكار نه دې. بلكه مقصد

---

(١) ايضاح البخارى(٥\٦٦)_
(٢) الكهف_
(٣) ايضاح البخارى(٥\٦٦)_

يعنى تحصيل د علم كوم چه دوارو سفرونو سره متعلق دې.ددې دپاره سفر كول.او دا ,,بحرى،، سره مختص كول. دا د ,,اطلاق الكل على البعض،، د قبيل نه دې.يا د ,,تسمية السبب باسم المسبب،، د قبيل نه دې.(١) مطلب دا دې.چه ددې نه انكار نه دې.چه د حضرت موسى عليه السلام سفر برى شوې دې.او ددې نه هم انكار نه دې.چه د حضرت موسى عليه السلام ملاقات حضرت خضر عليه السلام سره په بر (اوچه) كښې شوې دې.خو د حضرت موسى عليه السلام مقصد يعنى علم حاصلول د دوارو سفرونو يعنى د برى او بحرى سفرونو د مجموعې نه حاصل شو.چه مخكښې ئې برى سفر اوكړو.بيا ئې بحرى سفر اوكړو.په دې وجه دلته د كل يعنى د علم د تحصيل اطلاق په جزء يعنى صرف په ,,بحرى سفر،، باندې اوكړې شو.يا دا چه بحرى سفر چونكه د علم د تحصيل سبب جوړ شوې دې.په دې وجه باندې د مسبب اطلاق اوكړې شو.

ابن رشيد رحمه الله فرمائى.چه حضرت موسى عليه السلام د حضرت خضر عليه السلام په طلب كښې د بر نه پس حقيقتاً د بحر رخ كړې وو.او بحرى سفر كولو نه پس ئې هغوى سره ملاقات كړې وو.په دې وجه امام بخارى رحمه الله دلته د ,,فى البحر،، قيد لګولې دې.(٢)

حافظ رحمه الله ددې په تائيد كښې فرمائى.چه په حديث كښې «فكان يتبع أثر الحوت فى البحر» راغلى دې.(٣) په دې كښې د ,,فى البحر،، ظرف څه سره متعلق دې؟ په دې باره كښې دوه احتمالات دى.

① يو دا چه د ,,فى البحر،، تعلق د ,,يتبع،، فاعل يعنى حضرت موسى عليه السلام سره وى.نو په دې صورت كښې به مطلب دا وى.چه حضرت موسى عليه السلام د تلونكى كب په طلب كښې د سمندر سفر اوكړو.

② دويم احتمال دا دې.چه د ,,فى البحرى،، تعلق د ,,الحوت،، سره وى.نو په دې صورت كښې به مطلب دا وى.چه كوم كب په سمندر كښې تلې وو.د هغې په طلب كښې حضرت موسى عليه السلام روان شو.په دې صورت كښې به د حضرت موسى عليه السلام سفر د حضرت خضر عليه السلام د طلب دپاره برى وى.بحرى به نه وى.(٤)

حافظ رحمه الله فرمائى. چه په دې دوارو احتمالاتو كښې د ابن رشد په نيز رومبې احتمال قوى دې.او هغه دا فرمائى.چه د حضرت خضر عليه السلام په تلاش كښې حضرت موسى عليه السلام د سمندر سفر كړې وو.ددې تائيد امام بخارى رحمه الله د خپل ,,ترجمة الباب،، په ذريعه فرمائى.

ددې احتمال تائيد د ابو العاليه او ربيع بن انس، دوو موقوفو اثارو په ذريعه سره كيږى.

---

(١) فتح البارى (١١٦٨)_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) كما فى حديث الباب.)_

(٤) فتح البارى (١١٦٨)_

چه ابو العاليه د عبد بن حميد نه نقل كړى دى. «ان موسى التقى بالخضر فى جزيرة من جزائر البحر»(١)
ښكاره ده. چه يوې جزيرې ته رسيدو دپاره سمندرى سفر ضرورى دې.
د ربيع بن انس روايت هم عبد بن حميد نقل كړې دې «انجاب الماء عن مسلك الحوت، فصار طاقة مفتوحة فدخلها موسى على أثر الحوت حتى انتهى إلى الخضر»(٢) يعنى كب چه كومه لاره اختيار كړله. د هغه ځائې نه اوبه اخوا شوې. اود يو كهلاو سرنګ صورت ئې اختيار كړو. موسى عليه السلام كب پسې روستو په دې سرنګ كښې داخل شو. تردې چه حضرت خضر عليه السلام سره ملاو شو. ددې نه هم معلوميږى. چه حضرت خضر عليه السلام سره د ملاقات دپاره دوى د سمندر سفر كړې وو. والله اعلم.
ابن المنير رحمه الله فرمائى. چه دلته ,,الى،، په معنى د ،،مع،، دې.(٣) لكه څنګه چه په ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ﴾ (٤) كښې ,,الى،، د ،،مع،، په معنى كښې دې. نو اوس مطلب واضح دې. او «ذهاب موسى فى البحر مع الخضر» بې اعتراضه دې.
حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى. چه آسانه دا ده. چه ،،الى،، او ،،بحر،، پخپله ښكاره معنى باندې پريخودې شى. او دا اووئيلې شى. چه د ،،إلى الخضر،، نه وړاندې واو د عطف ذكر نكړې شو. چه د سامع په فهم باندې اعتبار كولو سره ډير ځل واو د عطف نه ذكركوى.(٥) نو اوس به مطلب دا وى. چه «ذهاب موسى فى البحر وإلى الخضر»
په دې توجيه باندې يو اشكال دا كيدې شى. چه حضرت موسى عليه السلام د سمندر سفر روستو كړې وو. مخكښې ئې د اوچې سفر كړې وو. چه په هغې كښې ئې حضرت خضر عليه السلام سره ملاقات كړې وو؟ ددې جواب دا دې. چه بحرى سفر چونكه ډير زيات خطرناك او مشكل وى. نو ددې د اهميت په وجه ئې ددې ذكر مقدم كړو.
دا هم وئيلې كيدې شى. چه بحرى سفر چونكه اصلى مقصود وو. ځكه چه علم هم ددې په ذريعه حاصل شو. په دې وجه ئې دا مقدم ذكركړو. او برى سفر په حقيقت كښې وسيله وه. په دې وجه ئې دا مؤخر كړو.
دا هم وئيلې كيدې شى. چه د امام بخارى رحمه الله مقصد چونكه دلته بحرى سفر د علم د طلب دپاره ثابتول دى. په دې وجه دوى بحرى سفر وړاندې ذكر كړو. والله اعلم بالصواب.

---

(١) المصدر السابق)_
(٢) المصدر السابق)_
(٣) فتح البارى(١٦٨/١)_
(٤) النساء/٢)_
(٥) الأبواب والتراجم(ص٤٨)_

## حدیث باب

((حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ غُرَيْرٍ الزُّهْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ تَمَارَى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسِ بْنِ حِصْنٍ الْفَزَارِيُّ فِي صَاحِبِ مُوسَى قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ خَضِرٌ فَمَرَّ بِهِمَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ(١) فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ إِنِّي تَمَارَيْتُ أَنَا وَصَاحِبِي هَذَا فِي صَاحِبِ مُوسَى الَّذِي سَأَلَ مُوسَى السَّبِيلَ إِلَى لُقِيِّهِ هَلْ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَأْنَهُ قَالَ نَعَمْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ بَيْنَمَا مُوسَى فِي مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمُ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْكَ قَالَ مُوسَى لَا فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَى مُوسَى بَلَى عَبْدُنَا خَضِرٌ فَسَأَلَ مُوسَى السَّبِيلَ إِلَيْهِ فَجَعَلَ اللَّهُ لَهُ الْحُوتَ آيَةً وَقِيلَ لَهُ إِذَا فَقَدْتَ الْحُوتَ فَارْجِعْ فَإِنَّكَ سَتَلْقَاهُ وَكَانَ يَتَّبِعُ أَثَرَ الْحُوتِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ لِمُوسَى فَتَاهُ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ قَالَ ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِي فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خَضِرًا فَكَانَ مِنْ شَأْنِهِمَا الَّذِي قَصَّ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فِي كِتَابِهِ)) [۷۸، ۱۲۲، ۷۴، ۲۲۶۷، ۲۷۲۸، ۳۲۷۸، ۳۴۰۰-۳۴۰۱، ۴۷۲۵، ۴۷۲۶، ۴۷۲۷، ۶۶۷۲، ۷۴۷۸]

## رجال الحدیث

① محمد بن غریر الزهری رحمه الله: دا ابو عبدالله یا ابو عبدالرحمن محمد بن غُرَیر (بضم الغین وبالرائین المهملتین بینهما یاء تحتانیة ساکنة) بن الولید بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف قرشی زهری مدنی دې. د غُریری په نسبت سره مشهور دې.(٢)

---

١) قوله:..أبي بن كعب..الحديث أخرجه البخاري في صحيحه أيضاً في (١\١٧، ١٨) كتاب العلم. باب الخروج في طلب العلم. رقم و(١\٢٣) كتاب العلم. باب مايستحب للعالم إذا سئل: أى الناس أعلم؟ فيكل العلم إلى الله. رقم(١٢٢) و(١\٣٠٢) كتاب الإجارة. باب إذا استاجر أجيراً على أن يقيم حائطاً يريد أن ينقض: جاز. رقم(٢٢٦٧) و(١\٣٧٧) كتاب الشروط مع الناس بالقول. رقم(٢٧٢٨) و(١\٤٦٣) كتاب بدء الخلق. باب صفة إبليس وجنوده. رقم(٣٢٧٨). (١\٤٨١، ٤٨٢) كتاب أحاديث الأنبياء. باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام رقم(٣٤٠٠) و(٣٤٠١) و(٢\٦٨٧، ٦٩٠) كتاب التفسير سورة الكهف. باب: وإذ قال موسى لفتاه لا أبرح حتى أبلغ مجمع البحرين أو أمضى حقبا. رقم(٤٧٢٥). باب فلما بلغا مجمع بينهما نسيا حوتهما. فاتخذ سبيله في البحر سربا. رقم(٤٧٢٦) و باب فلما جاوزا قال لفتاه آتنا غداءنا.... رقم(٤٧٢٧) و(٢\٩٨٧) كتاب الأيمان والنذور. باب إذا حنث ناسياً في الأيمان. رقم(٦٦٧٢) و(٢\١١١٤) كتاب التوحيد. باب قول الله تعالى. تؤتي الملك من تشاء..... رقم٧٤٧٨) ومسلم في صحيحه. في كتاب الفضائل. باب من فضائل الخضر. رقم(٦١٦٣- ٦١٦٨) والترمذي في جامعه. في كتاب تفسير القرآن. باب ومن سورة الكهف. رقم(٣١٤٩) و(٣١٥٠)_

٢) تهذيب الكمال(٢٦\٢٦٨)_

دوی د ابو نعیم الفضل بن دکین، مطرف بن عبدالله مدنی او یعقوب بن ابراهیم بن سعد زهری رحمه الله نه روایت کوی.ددوی نه امام بخاری، عبدالله بن شبیب مدنی، ابو جعفر محمد بن احمد بن نصر ترمذی رحمه الله روایت کوی.(۱)
ابن حبان رحمه الله دوی لره په ،،کتاب الثقات،، کښې ذکرکړې دې.(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.،،صدوق،،(۳)
تنبیه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه سمعانی رحمه الله په ،،الانساب،، کښې لیکلی دی.چه ددوی د پلار غریر اصل نوم عبدالرحمن دې.چه دا په غریر لقب سره مشهور دې.(۴)
خو دا په ظاهر کښې د حافظ رحمه الله تسامح ده.ځکه چه علامه سمعانی د اسحاق بن غریر بن المغیره بن حمید بن عبدالرحمن بن عوف زهری د تذکرې لاندې نقل کړی دی.چه د ،،غریر،، نوم عبدالرحمن بن المغیره دې.(۵) او زیربحث راوی محمد بن غریر بن الولید بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف دې.علامه سمعانی رحمه الله ددې نه روستو ددوی تذکره هم په دې نوم سره کړې ده.او ددوی د شیوخو او شاګردانو ذکر ئې کړې دې.(۶) دا د ،،غریر،، په نوم دوه مختلف افراد دی.یو د مغیره ځوئې دی.هم ددوی نوم عبدالرحمن دې. دویم د ولید ځوئې دې.کوم چه دلته د زیربحث راوی پلار دې.والله اعلم.
**یوه بله تنبیه**: حافظ ابن حجر رحمه الله د ،،الزهره،، په حواله نقل کړی دی.چه امام بخاری رحمه الله ددوی نه پنځه حدیثونه روایت کړی دی.(۷) خوابو نصرکلاباذی رحمه الله فرمائی.چه ددوی صرف درې حدیثونه په صحیح بخاری کښې دی.یو په کتاب العلم کښې، یو په کتاب الزکاة کښې، او یو د بنی اسرائیل په بحث کښې لاندې (۸)،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

② **یعقوب بن ابراهیم رحمه الله**: دا ابویوسف یعقوب بن ابراهیم بن سعد بن ابراهیم بن

---

(۱) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال(۲۶\۲۶۸، ۲۶۹)_
(۲) قاله المزی فی تهذیب الکمال(۲۶\۲۶۹) والحافظ فی تهذیب التهذیب(۹\۳۹۶) والخزرجی فی ،،الخلاصة،، (ص۳۵۵) وسبط ابن العجمی فی تعلیقاته علی الکاشف(۲\۲۱۰) رقم(۵۱۰۸) قال الشیخ محمد عوامة،،ولم أره فی المطبوع من ،،الثقات،، قلت: ولم أجد أیضاً طول بحثی فی المحدثین من کتاب الثقات المطبوع.)_
(۳) تقریب التهذیب( ص۵۰۱) رقم(۶۲۱۶)_
(۴) تهذیب التهذیب(۹\۳۶۹)_
(۵) الأنساب للسمعانی(۱٤\۲۸۸) نسبة ،،الغریری،،)_
(۶) المصدر السابق)_
(۷) تهذیب التهذیب(۹\۳۹۶)_
(۸) قاله العینی فی العمدة(۲\۶۱) وانظر لحدیثه صحیح البخاری(۱۱\۲۰۰) کتاب الزکاة باب قول الله تعالی، لایسألون الناس إلحافاً. وحکم الغنی. رقم((۱٤۷۸) و(۱۱\٤۹۸) کتاب المناقب. باب ذکر أسلم وغفار و مزینة وجهینة وأشجع. رقم(۳۵۱۳)_

عبدالرحمن بن عوف قرشي زهري مدني نزيل بغداد دي.[1]

دوی دخپل پلار ابراهيم بن سعد، شعبه، عاصم بن محمد عمری، محمد بن اخی الزهری، عبدالملك بن الربيع بن سبرة الجهني، عبيده بن ابى رائطه، ليث بن سعد، عبدالعزيز بن المطلب، سيف بن عمرضبى، او شريك بن عبدالله نخعى رحمهم الله نه روايت کوی.

ددوی نه په روايت کونکو کښې امام احمد بن حنبل، اسحاق بن راهويه، ابوخيثمه زهير بن حرب، على بن المدينى، محمد بن غرير الزهرى، محمد بن يحي ذهلى، يحي بن معين، او يعقوب بن شيبه سدوسى رحمهم الله پشان د علم حديث ستنې (لوې عالمان) دى.[2]

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى.. «ثقة»[3]

امام عجلى رحمه الله فرمائى.. «ثقة»[4]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.. «صدوق»[5]

امام دارقطنى رحمه الله دوى لره ثقه ګرخولې دې.[6]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په «كتاب الثقات» كښې ذكركړې دې.[7]

ابن سعد رحمه الله فرمائى. «وكان ثقة مأموناً.....وكان يقدم على أخيه فى الفضل والورع والحديث»[8]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.. «حجة ورع»[9]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.. «ثقة فاضل»[10]

په سن ۲۰۸ھ كښې دوى وفات شو.[11] «رحمه الله تعالى رحمة واسعة»_

③ ابى رحمه الله: ددوى تذكره په كتاب الايمان كښې د «تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال» لاندې مختصر ذكر شوې وه.[12] دلته لږ په تفصيل سره ذكر كولې شى.دا د يعقوب بن ابراهيم

---

[1] تهذيب الكمال(۳۲\۳۰۸)_

[2] د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۳۲\۳۰۸، ۳۰۹) وسيرأعلام النبلاء(۹\۴۹۱، ۴۹۲)_

[3] تاريخ الدارمى(۲۳۰) رقم(۸۸۵)_

[4] تهذيب الكمال(۳۲\۳۱۰)_

[5] المصدرالسابق)_

[6] سنن الدارقطنى(۱\۵۹) كتاب الطهارة، باب استقبال القبلة فى الخلاء، رقم۲)_

[7] الثقات لابن حبان( ۹\۲۸۴)_

[8] الطبقات لابن سعد(۷\۳۴۳)_

[9] الكاشف(۲\۳۹۳)رقم( ۶۳۸۴)_

[10] تقريب التهذيب( ۶۰۷) رقم(۷۸۱۱)_

[11] تهذيب الكمال(۳۲\۳۱۱)_

[12] كشف البارى(۲\۱۲۰)_

پلار ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف زهری قرشی مدنی دې.ددوی کنيت ابو اسحاق دې.[1]

دوی د خپل پلار سعد بن ابراهيم، عبدالله بن جعفر مخرمی، امام زهری، هشام بن عروه، شعبه، صالح بن کيسان، صفوان بن سليم او ابن اخی الزهری رحمهم الله وغيره نه روايت کوی. ددوی نه ابراهيم بن حمزه زبيری، سعد بن ابراهيم، يعقوب بن ابراهيم، عبدالله بن مسلمه قعنبی، عبدالله بن وهب مصری، عبدالرحمن بن مهدی،عبدالصمد بن عبدالوارث، وکيع بن الجراح،يزيدبن هارون او يحي بن يحي نيسابوری رحمهم الله وغيره نه روايت دحديث کوی.[2]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،[3]او هم دوی فرمائی.«أحاديثه مستقيمة»[4]

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائی.،،ثقة حجة،،[5]

امام عجلی رحمه الله فرمائی.،،مدنی ثقة،،[6]

ابوحاتم رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،[7]

ابن خراش رحمه الله فرمائی.،،صدوق،،[8]

ابن سعد رحمه الله فرمائی.«وكان ثقة كثير الحديث وربما أخطأ في الحديث»[9]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«أحد الأعلام الثقات»[10]

**ددوی په ثقاهت باندې کلام:** بعضو حضراتو په دوی باندې معمولی کلام هم کړې دې.کله چه د يحي بن سعيد رحمه الله په وړاندې ددوی او د عقيل تذکره اوشوه.نو هغوی پخپل خاص انداز سره دا ښکاره کړله.چه دوی ضعيف دی.خو امام احمد رحمه الله فرمائی.«أيش ينفع هذا؟هؤلاء ثقات،لم يخبرهما يحي»[11]يعنی د داسې قسمه تضعيف هيڅ فائده نشته.ځکه چه دې د ثقاتو ځنې دې.يحي بن سعيد رحمه الله دوی معلوم کړی نه دی.

---

[1] تهذيب الكمال(۲/۸۸)_

[2] د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۲/۸۸-۹۰)وسير أعلام النبلاء(۸/۳۰۵)_

[3] تهذيب الكمال(۲/۹۰)_

[4] المصدر السابق)_

[5] تهذيب الكمال(۲/۹۱) وسير أعلام النبلاء(۸/۳۰۵) وتهذيب التهذيب(۱/۱۲۱) والكامل لابن عدی(۱/۲۴۷)

[6] تهذيب الكمال(۲/۹۲)_

[7] المصدر السابق)_

[8] المصدر السابق)_

[9] الطبقات لابن سعد(۷/۳۲۲)_

[10] ميزان الإعتدال(۱/۳۳) رقم(۹۷)_

[11] الكامل لابن عدی(۱/۲۴۶)_

ابن عدى رحمه الله بعضې داسې احاديث ذكركړي دي.كوم چه دې د امام زهرى رحمه الله نه روايت كړي.او دهغې په سندونو كښې د امام زهرى رحمه الله دويم شاگرد ددوى سره اختلاف كوى.خو امام ابن عدى رحمه الله ددغه حديثونو ذكركولو نه پس فرمائى.«وقول من تكلم في إبراهيم بن سعد ممن ذكرناه بعد ارما تكلم فيه تحاملاً عليه فيما قاله فيه، وإبراهيم بن سعد من ثقات المسلمين، حدث منه جماعة من الأئمة ممن هم أكبر سناً منه، وأقدم موتاً منه.....»[1] اوهم دوى فرمائى.«وإبراهيم بن سعد له أحاديث صالحة مستقيمة عن الزهرى وعن غيره، ولم يتخلف أحد من الكتابة عنه بالكوفة والبصرة و بغداد، وهو من ثقات المسلمين»[2]

حافظ ذهبى رحمه الله ددوى غريب احاديث ذكركولو نه پس فرمائيلى دى.«إبراهيم بن سعد ثقة بلا ثيا، قد روى عنه شعبة مع تقدمه وجلالته»[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«ثقة حجة تكلم فيه بلا قادح»[4]

ددوى احاديث اصحابو د اصول سته قبول كړى دى.او دهغې نه ئې احتجاج او استدلال كړې دې.[5]

په ۱۸۳ھ كښې ددوى وفات اوشو.[6]،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

④ صالح رحمه الله: دا ابومحمد يا ابوالحارث صالح بن كيسان مدنى رحمه الله دې.ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال» لاندې ذكر شوى دى.[7]

⑤ ابن شهاب رحمه الله: دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دې.ددوى حالات د بدءالوحى د دريم حديث لاندې ذكر شوى دى.[8]

⑥ عبيدالله بن عبدالله رحمه الله: دا مشهور فقيه عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دې.ددوى حالات هم د بدءالوحى پنځم حديث لاندې ذكر شوى دى.[9]

⑦ عبدالله بن عباس رضي الله عنهما: د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات د بدءالوحى

---

[1] الكامل(۱\۲٤۸، ۲٤۹)_
[2] الكامل(۱\۲۵۰)_
[3] ميزان الإعتدال(۱\۳٤) رقم(۹۷)_
[4] تقريب التهذيب(ص۸۹) رقم(۱۷۷)_
[5] هدى السارى(ص۳۸۸)_
[6] الكاشف(۱\۲۱۲) رقم(۱۳۸)_
[7] كشف البارى(۲\۱۲۱)_
[8] كشف البارى(۱\۳۲۶)_
[9] كشف البارى(۱\٤۶۶)_

خلورم حديث لاندې، (١)او په كتاب الايمان كښې د «باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې ذكر شوى دى.(٢)

⑧ الحر بن قيس رضي الله عنه: دا حضرت حُر بن قيس بن حصن بن حذيفه بن بدر فزارى رضي الله عنه دې.دا د حضرت عيينه بن حصن رضي الله عنه وراره دې.نبى كريم ﷺ چه كله د غزوهٔ تبوك نه راواپس شو.دغه وخت د بنو فزاره وفد راغلې وو.چه په هغې كښې حضرت حر بن قيس رضي الله عنه هم وو. حضرت حُر بن قيس رضي الله عنه د فضل او كمال والا خلقو ځنې وو.د حضرت عمر رضي الله عنه مقربين او ددوى د خصوصى حضراتو ځنې وو.دكومو نه چه به حضرت عمر رضي الله عنه رائې او مشوره اخستله.(٣)

په صحيح بخارى كښې ددوى تذكره د موسى او دخضر عليهما السلام د قصې نه علاوه په يوه بله موقعه هم راغلې دې.په هغې كښې ذكر دى.چه حضرت عيينه بن حصن رضي الله عنه د خپل وراره حر بن قيس رضي الله عنه سره ايسار شو.او هغه ته ئې اووئيل.چه د حضرت عمر رضي الله عنه په دربار كښې د تلو دپاره اجازت راواخله.هغوى اجازت راواخستلو. نو عيينه بن حصن حضرت عمر رضي الله عنه ته خطاب اوكړو.او وې وئيل.«يا ابن الخطاب! فوالله ماتعطينا الجزل ولا تحكم بيننا بالعدل» حضرت عمر رضي الله عنه سخت ناراضه شو.حضرت حُر بن قيس رضي الله عنه فوراً عرض اوكړو.«يا اميرالمؤمنين! إن الله قال لنبيه ﷺ: ﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ۝﴾ وإن هذا من الجاهلين» فرمائى.چه كله حضرت عمر رضي الله عنه دا آيت واوريدو.نو غصه ئې فوراً سړه شوه.«وكان وقافاً عند كتاب الله»(٤)

⑨ ابى بن كعب رضي الله عنه: دا مشهور صحابى سيدالقراء حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه دې.د انصارو قوم خزرج سره ددوى تعلق دې.(٥) ابوالمنذر او ابوالطفيل دواړه ددوى كنيتونه دى.(٦) په بيعت عقبهٔ ثانيه كښې شريك وو.د بدر سره په نورو غزواتو كښې هم د نبى كريم ﷺ سره شريك پاتې شوې دې.(٧)

ددوى نه په صحابه كرامو كښې حضرت ابوايوب، حضرت ابن عباس، حضرت ابو موسى

---

(١)كشف البارى(٤٣٥\١)_

(٢)كشف البارى(٢٠٥\٢)_

(٣) تفصيل دپاره اوګورئ: الإصابة(٣٢٤\١)_

(٤)صحيح البخارى(٦٦٩\٢) كتاب التفسير، سورة الأعراف، باب: خذ العفو وأمر بالعرف و أعرض عن الجاهلين،رقم(٤٦٤٢)و(١٠٨٢\٢) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة، باب الإقتداء بسنن رسول الله ﷺ، رقم(٧٢٨٦)

(٥) تهذيب الكمال(٢٦٢\٢) وتهذيب الأسماء واللغات(١٠٨\١) والإصابة(١٩\١)_

(٦) المصادر السابق)_

(٧)المصادر السابق)_

اشعرى، حضرت انس بن مالك، حضرت عمر، حضرت ابوهريره، حضرت سليمان بن صرد، حضرت سهل بن سعد الساعدى، عبدالله بن الحارث بن نوفل رضي الله عنهم روايت كوى.
دغه شان د تابعينو نه حضرت ابوالعاليه رياحى، زر بن حبيش اسدى، سعيد بن المسيب، ابو ادريس خولانى، ابو عثمان نهدى، عبيد بن عمير ليثى، عطاء بن يسار، او عماره بن عمرو بن حزم انصارى رحمهم الله وغيره حضرات روايت كوى.[1]

**د حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه بعضې فضائل او امتيازات:** د حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه يو اهم فضيلت دا دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوى ته قرآن واورولو. او وې فرمائيل چه الله تعالى ماته ستانوم اخستې دې. او د قرآن اورولو حكم ئې راكړې دې.[2]

نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. «استقرءوا القرآن من أربعة، من عبدالله بن مسعود، فبدأ به، وسالم مولى أبي حذيفة، وأبي بن كعب، ومعاذ بن جبل»[3]

د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په زمانه مباركه كښې چه كومو حضراتو قرآن كريم جمع كړو. حضرت ابى ابن كعب رضي الله عنه د هغه حضراتو ځنې وو. حضرت انس رضي الله عنه فرمائى. «جمع القرآن على عهد النبي صلى الله عليه وسلم أربعة كلهم من الأنصار، أبي، ومعاذ بن جبل، وأبوزيد، وزيد بن ثابت»[4]

حضرت عمر رضي الله عنه دوى ته په ،،سيدالمسلمين،، معزز لقب سره رابللې دې.[5]

واقدى رحمه الله فرمائى. «أول من كتب لرسول الله صلى الله عليه وسلم حين قدم المدينة أبي بن كعب، وهو أول من كتب في آخر الكتاب: فلان بن فلان»[6]

نبى كريم صلى الله عليه وسلم دوى ته ،،سيدالانصار،، وئيلې دې.[7]

د بيمارو د كفارې كيدو فضيلت اوريدو نه پس حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه د الله تعالى نه دعا اوكړله. «اللهم إني أسألك حمّى لا تمنعني خروجاً في سبيلك، ولا خروجاً إلى بيتك، ولا مسجد نبيك صلى الله عليه وسلم» نو دا دعا داسې قبوله شوه. چه هميشه به ددوى جسم ګرم وو.[8]

---

[1] تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(٢\٢٦٣، ٢٦٤)و تهذيب الأسماء(١\١٠٩) وسيرأعلام النبلاء(١\٣٩٠)_

[2] قال النبي صلى الله عليه وسلم لأبي: إن الله أمرني أن أقرأ عليك، لم يكن الذين كفروا، قال: وسماني؟ قال: نعم، فبكى.، صحيح البخارى(١\٥٣٧) كتاب المناقب، باب مناقب أبي ا بن كعب رضي الله عنه. رقم(٣٨٠٩)_

[3] صحيح البخارى(١\٥٣١) كتاب فضائل أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم، باب مناقب سالم مولى أبي حذيفة رضي الله عنه، رقم(٣٧٥٨)_

[4] صحيح البخارى(١\٥٣٧) كتاب المناقب، باب مناقب زيد بن ثابت رضي الله عنه، رقم(٣٨١٠)_

[5] الإصابة(١\١٩) وتهذيب الكمال(٢\٢٦٩) وتهذيب الأسماء واللغات(١\١٠٩)_

[6] تهذيب الأسماء واللغات(١\١٠٩)_

[7] تهذيب الكمال(٢\٢٦٨) وسيرأعلام النبلاء(١\٣٩٦)_

[8] تهذيب الكمال(٢\٢٦٨) وسيرأعلام النبلاء(١\٣٩٢)_

نبی کریم ﷺ د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه د قرآن کریم د ټولو نه عظیم آیت کوم یو دې؟ حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه جواب ورکړو چه ،،آیت الکرسی،، دټولو نه عظیم آیت دې.نبی کریم ﷺ د مسرت (او خوشحالۍ) اظهار اوکړو.او ددوی په سینه باندې ئې لاس راښکلو.او وې فرمائیل.«لیهنك العلم أبا المنذر»[1] نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.«أقرأهم لکتاب الله أبی»[2]

معمر رحمه الله فرمائی.«عامة علم ابن عباس من ثلاثة: عمر، وعلی، وأبی»[3]

حضرت مسروق رحمه الله فرمائی.«کان أصحاب القضاء من أصحاب رسول الله ﷺ ستة: عمر، و علی، و عبدالله، وأبی، وزید، وأبوموسی»[4]

دحضرت ابی بن کعب رضی الله عنه په سن د وفات کښې ډیر اختلاف دې. واقدی رحمه الله فرمائی. «رأیت أهله وغیر واحد یقولون: مات فی سنة اثنتین وعشرین بالمدینة، وقد سمعت من یقول: مات فی خلافة عثمان سنة ثلاثین، وهو أثبت الأقاویل عندنا»[5] حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی.«والأکثر أنه مات فی خلافة عمر»[6]

خلاصه دا چه ددوی د وفات په باره کښې مختلف اقوال دی.«أقل ما قیل سنة ١٩ هـ، وأکثر ما قیل سنة ٣٢هـ»[7] الله اعلم.

**فائده (ددوی د مرویاتو تعداد):** د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه تقریباً یوسل خلور شپیته (یعنی ١٦٣) حدیثونه رانقل دی.په دې کښې متفق علیه حدیثونه درې دی.او امام بخاری رحمه الله په دریو حدیثونو کښې او امام مسلم رحمه الله په اووه حدیثونو کښې متفرد دې.[8] والله اعلم.،، رضی الله تعالی عنه وأرضاه،،_

---

[1] صحیح مسلم، کتاب صلاة المسافرین، باب فضل سورة الکهف و آیة الکرسی، رقم(١٨٨٥)_

[2] جامع الترمذی(، کتاب المناقب، باب مناقب معاذ بن جبل و زید بن ثابت و أبی بن کعب وأبی عبیدة بن الجراح رضی الله عنهم، رقم(٣٧٩١)_

[3] سیر أعلام النبلاء(٣٩٨/١)_

[4] تهذیب الأسماء واللغات(١٠٩/١) والإصابة(١٩/١)_

[5] طبقات ابن سعد( ٥٠٢/٣)_

[6] الاستیعاب بهامش الإصابة(٥٢/١)_

[7] تقریب التهذیب(ص٩٦) رقم(٢٨٣) وتعلیقات الکاشف(٢٢٩/١)رقم(٢٣١)_

[8] تهذیب الأسماء واللغات(١٠٩/١) وسیرأعلام النبلاء(٤٠٢/١) وخلاصة الخزرجی(ص ٢٤) البته په دې آخری ماخذ کښې د بخاری د منفرد احادیثو تعداد خلور دې.والله اعلم_

**قوله**: أَنَّهُ تَمَارَى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسِ بْنِ حِصْنٍ الْفَزَارِيُّ فِي صَاحِبِ مُوسَى: د حضرت ابن عباس او حضرت حر بن قيس بن حصن فزارى رضي الله عنهما په مينځ کښې په دې خبره باندې جګړه شوه چه د حضرت موسى عليه السلام .. صاحب.. (ملګرې) څوك وو؟

مطلب دا دې چه حضرت موسى عليه السلام دچا په طلب کښې سفر کړې وو. او د هغه په باره کښې قرآن کريم کښې وارد دى. ﴿فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا.....﴾[1] نو دا څوك دې؟

د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وينا دا وه چه دا حضرت خضر عليه السلام وو. اوحضرت حُر بن قيس رضي الله عنه ددې انکار کولو. او هغه د يوبل کس نوم اخستلو. هغه د بل کوم کس نوم اخستلو؟ په هيڅ يو روايت کښې ددې تصريح نه ملاويږى.([2])

دلته اختلاف تاسو ګورئ چه د حضرت ابن عباس او حضرت حر بن قيس رضي الله عنهم په مينځ کښې واقع دې. ددې نه پس د فيصله کونکى ذکر دې چه هغه حضرت ابى بن کعب رضي الله عنه دې.

**دلته اختلاف په صاحب د موسى عليه السلام کښې دې، وړاندې يو بل اختلاف هم دې** بيا دلته اختلاف د موسى عليه السلام د صاحب په تعين کښې دې. حالانکه روستو امام بخارى رحمه الله په ((باب ما يستحب للعالم إذا سئل: أيّ الناس أعلم؟ فيكل العلم إلى الله))[3] کښې. دغه شان په کتاب التفسير کښې ([4]) روايت نقل کړې دې چه په هغې کښې يو بل اختلاف دې. دا اختلاف د دوو تابعينو حضرت سعيد بن جبير او د نوف بکالى رحمهما الله په مينځ کښې واقع شوې دې. او اختلاف په دې خبره کښې دې چه د ..موسى.. نه څوك مراد دې؟ د حضرت سعيد بن جبير رحمه الله وينا وه چه دا موسى بن عمران دې. کوم چه د بنى اسرائيلو مشهور پيغمبر تير شوې دې. او د نوف بکالى دعوه دا وه چه د ..موسى.. نه مراد موسى بن ميشا بن أفرائيم بن يوسف بن يعقوب عليهما السلام دې.([5]) ددې دويم اختلاف فيصله کونکې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې.

**قوله**: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ خَضِرٌ فَمَرَّ بِهِمَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ إِنِّي تَمَارَيْتُ أَنَا وَصَاحِبِي هَذَا فِي صَاحِبِ مُوسَى الَّذِي سَأَلَ مُوسَى السَّبِيلَ إِلَى لُقِيِّهِ هَلْ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَأْنَهُ قَالَ نَعَمْ:

---

[1] سورة الكهف\٦٥)_

[2] فتح البارى(١\١٦٩)_

[3] صحيح بخارى(١\٢٣) كتاب العلم، رقم الحديث(١٢٢)_

[4] صحيح البخارى(٢\٦٨٧، ٦٨٨) كتاب التفسير، سورة الكهف، باب: و إذ قال موسى لفتاه لا أبرح حتى أبلغ مجمع البحرين أو أمضى حقبا، رقم(٤٧٢٥)، باب: فلما بلغا مجمع بينهما نسيا حوتهما.... رقم(٤٧٢٦)، وباب: فلما جاوزا قال لفتاه آتنا غداءنا لقد لقينا من سفرنا هذا نصباً، رقم(٤٧٢٧)_

[5] فتح البارى(١\١٦٩)_

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه دا خضر دې.دوی دواړو سره حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه تيرشو.حضرت ابن عباس هغوی متوجه کړل او عرض ئې اوکړو چه زما او زما د دوست په مينځ کښې د موسى عليه السلام او دهغه د ..صاحب.. په باره کښې اختلاف شوې دې.د کوم سره چه د ملاقات لاره دوی د الله تعالى نه غوښتلې وه.آيا تاسو د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه د هغوی څه ذکر اوريدلې دې؟ هغوی اوفرمائيل چه آو.

**قوله** سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ بَيْنَمَا مُوسَى فِي مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمُ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْكَ قَالَ مُوسَى لَا:

حضرت ابی ابن کعب رضي الله عنه فرمائی.چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل.چه دا ئې فرمائيل چه يوخل موسى عليه السلام د بنی اسرائيلو په جمات کښې تشريف ايخودې وو.چه يو سړې هغوی ته راغې.او دهغه نه ئې تپوس اوکړو.چه تاسو څوك داسې سړې پيژنئ.چه هغه ستاسو نه زيات علم لرى؟ موسى عليه السلام اوفرمائيل.چه نه. (نه پيژنم).

دا سوال کونکې سړې څوك وو.د هغه د نوم تصريح په هيڅ يو روايت کښې نه ملاويږى.(١)

**د حضرت موسى عليه السلام خپل ځان ته اعلم وئيل** حضرت موسى عليه السلام د خپل ځان نه د زيات علم والا سړی کومه نفی کړې وه.هغه صحيح وه.ځکه چه هغه د الله تعالى په جليل القدر رسولانو کښې دې.ښکاره ده.چه نبی او رسول نه زيات علم والا هيڅ څوك نشی کيدې.خو چونکه هغه ته دا ښودل مقصود وو.چه د الفاظو په استعمال کښې د احتياط ضرورت دې.په داسې موقعو باندې ..الله اعلم.. وئيلو سره حقيقی علم الله تعالى طرف ته منسوب کول پکار دی.په دې وجه دې باندې عتاب (او ملامتيا) اوشوه.(٢)

**قوله** فَأَوْحَى اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى مُوسَى بَلَى عَبْدُنَا خَضِرٌ: الله تعالى حضرت موسى عليه السلام طرف ته وحی راوليګله.چه ولې نشته! زمونږ بنده خضر ستا نه زيات علم لرى.

## حضرت خضر عليه السلام

**د لفظ ،،خضر،، ضبط** ..خضر..د خاء معجمه په فتحې او د ..ضاد.. په کسرې سره هم ضبط کړې شوې دې.او د ..خاء.. کسرې او د ..ضاد.. سکون سره هم وئيلې شوې دې.(٣)

**خضر لقب دې اوکه نوم؟** ..خضر.. دا لقب دې.نوم نه دې.

**په خضر سره د ملقب کيدو وجه** په ..خضر.. سره د ملقب کيدو څه وجه ده؟ امام بخاری رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل کړې دی.((إنما سمّي الخضر، لأنه جلس على فروة بيضاء،

---

(١) فتح البارى(١١٦٩/١)_

(٢) ..فعتب الله عليه إذ لم يردّ العلم إليه..... صحيح البخارى(٤٨٢/١) كتاب أحاديث الأنبياء. .باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام. رقم(٣٤٠١)_

(٣) المغنى(ص٢٧. ٢٨)_

فإذا هي تهتز من خلفه خضراء»(١)
امام عبدالرزاق رحمه الله دا حديث پخپل مصنف كښې خپل سند سره نقل كړې دې.او په دې كښې د ..فروة.. د تفسير اضافه هم شته.«الفروة: الحشيش الأبيض وما أشبهه»(٢) دا غالباً عبدالرزاق پخپله تفسير كړې دې (٣)

امام حربى رحمه الله فرمائى.«الفروة من الأرض: قطعة يابسة من حشيش»(٤)په دې تفسير سره هم د امام عبدالرزاق د قول تائيد كيږى.

امام ابن الاعرابى فرمائى.«الفروة: أرض بيضاء ليس فيها نبات»(٥)
امام خطابى رحمه الله اوددوى اتباع كونكو نوروحضراتوپه دې تفسير باندې اعتماد كړې دې (٦)
ددې خلاصه دا ده.چه حضرت خضر عليه السلام ته ..خضر.. څكه اووئيلې شو.چه هغه به كله په اوچه گيا، يا په بې اوبو اوبې گيا زمكه باندې كيناستلو .نو دغه گيا يا زمكه به سرسبزه او شينكى جوړه شوه.

په دې لقب سره د ملقب كيدو يوه وجه امام مجاهد رحمه الله نه هم منقول ده.«لأنه كان إذا صلى أخضر ما حوله»(٧)چه هغه به كله هم يو ځائې كښې مونځ كولو.نوګيرچاپيره زمكه به سرسبزه كيدله.
**د حضرت خضر عليه السلام نوم او نسب:** د حضرت خضر عليه السلام په نوم كښې او ددوى د پلار په نوم كښې هم ډير اختلاف دې.بعضو ددوى نوم ..بليا.. ښودلې دې.بعضو ..الياس.. بعضو ..اليسع.. بعضو ..عامر..او بعضو ..خضرون.. ښودلې دې.

د راجح قول مطابق ددوى نسب نامه داسې ده.«بليا: بفتح الباء الموحدة، بعدها لام ساكنة، و بعدها ياء تحتانية وبعدها ألف، بن ملكان بن فالغ بن عابر، بن شالخ، بن أرفشخذ بن سام، بن نوح عليه السلام»(٨)
**د حضرت خضر عليه السلام نبوت او ولايت:** حضرت خضر عليه السلام ولى وو. او كه نبى وو. اوكه رسول وو؟

---

(١)صحيح البخارى(٤٨٣/١) كتاب أحاديث الأنبياء، باب حديث الخضرمع موسى عليهما السلام. رقم (٣٤٠٢) وجامع الترمذى، كتاب التفسير، سورة الكهف، رقم(٣١٥١)_
(٢)فتح البارى(٤٣٣/٦) كتاب أحاديث الأنبياء، باب حديث الخضر مع موسى عليهما السلام_
(٣)قال عبدالله بن أحمد بعد أن (واه عن أبيه عنه: أظن هذا تفسيراً من عبدالرزاق. انتهى.و جزم بذالك عياض. فتح البارى(٤٣٣/٦)_
(٤)فتح البارى(٤٣٣/٦)_
(٥)المصدرالسابق)_
(٦) غريب الحديث للخطابى(٢٢٢/١)، والفائق للزمخشرى(١٠٣/٣) والنهاية لابن الأثير(٤٤١/٣)_
(٧) فتح البارى(٤٣٣/٦)_
(٨) تفصيل دپاره اوګورئ: فتح البارى(٤٣٣/٦)_

امام ابوالقاسم قشيري رحمه الله هم په دې كښې اختلاف دې يو جماعت چه په هغوی كښې دې.ددې خبرې قائل دې چه حضرت خضر عليه السلام ولي وو.(١)

ابن عطيه بغوی رحمه الله د اكثرو اهل علمو نه نقل كړی دی.چه هغه نبي وو.البته بيا په اهل علمو كښې دا اختلاف دې.چه آيا هغه رسول هم وو.او كه نه؟ (٢)

امام قرطبي رحمه الله فرمائي.چه د جمهورو په نيز حضرت خضر عليه السلام نبي وو.آيت هم په دې باندې دلالت كوی.څكه چه هيڅ يو نبی د غير نبی نه تعليم نه حاصلوی.او په دې وجه هم چه د باطن په احكامو باندې انبياءكرام د وحی په ذريعه خبريدې شی.(٣)

د جمهورو عالمانو په نيز ددوی نبی كيدل پخپله قرآن كريم كښې د ذكر شوو واقعاتو نه ثابت دې.څكه چه د حضرت خضر عليه السلام نه په دې سفر كښې چه څومره واقعات ثابت دی.د هغې نه بعضې خو قطعی طور باندې خلاف شرع دی.او د شريعت د حكم نه استثناء د وحی الهی نه بغير كيدې نشی.چه دا د نبی او پيغمبر سره مخصوص دې.ولې ته هم په كشف يا الهام سره بعضې څيزونه معلوميدې شی.خو هغه څه حجت نه وی.د هغې په بناء باندې د ظاهر شريعت هيڅ حكم نشی بدليدلې.په دې وجه دا متعين كيدې شی.چه حضرت خضر عليه السلام د الله تعالى نبی او پيغمبر وو.دوی ته د وحی الهی په ذريعه بعضی خاص هغه احكام وركړې شوی وو.كوم چه د ظاهر شريعت خلاف وو. هغوی چه هرڅه اوكړل ددې استثنائی حكم لاندې ئې اوكړل.(٤) پخپله ددوی د طرفه ددې اظهار هم د قرآن كريم په دې جمله كښې اوشو. ﴿وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ اَمْرِيْ﴾(٥)

بيا بعضې حضرات ددوی د ،،ملك،، ( فرښته) كيدو قائل دی.لكه چه ابن كثير دا قول علامه ماوردی طرف ته منسوب كړې دې.(٦)

**حضرت خضر عليه السلام تر اوسه پورې ژوندې دې اوكه ددوی وفات شوې دې؟** دا مسئله هم ډيره اختلافی پاتې شوې ده.امام نووی، ابن صلاح، او حضرات صوفيه ددې خبرې قائل دی.چه حضرت خضر عليه السلام تر اوسه پورې ژوندې دې.لكه چه حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائی.((هو حي عند جمهور العلماء، والعامة معهم في ذالك، وإنما شذ بإنكاره بعض المحدثين))(٧)

---

(١)فتح البارى(٦\٤٣٤)_

(٢)المصدرالسابق)_

(٣)الجامع لأحكام القرآن(١١\١٦)_

(٤) معارف القرآن(٥\٦١٢)_

(٥)الكهف\٨٢)_

(٦) تفسير ابن كثير(٣\٩٩) تحت قوله تعالى: و أما الجدار.....)_

(٧)فتح البارى(٦\٤٣٤) وشرح النووى على صحيح مسلم(٢\٢٦٩) كتاب الفضائل. باب من فضائل الخضر عليه السلام وتهذيب الأسماء واللغات(١\١٧٦)_

امام نووی رحمه الله ددوی په اتباع کښې زیاتې دا هم لیکلی دی.«جمهور العلماء على أنه حي موجود بين أظهرنا ، و ذالك متفق عليه عند الصوفية و أهل الصلاح و المعرفة، وحكاياتهم في رؤيته، والإجتماع به، والأخذ منه، و سؤاله و جوابه، و وجوده في المواضع الشريفة و مواطن الخير أكثر من أن تحصر و أشهر من أن تستر»[1]

خو ددوی په مقابله کښې د اکثرو محدثینو په دې باندې اتفاق دې چه حضرت خضر عليه السلام اوس ژوندې نه دې.د هغوی وفات شوې دې.[2]

د حیات ( ژوند) نه په انکار کونکو کښې امام بخاری، ابراهیم حربی، ابو جعفر بن المنادی،ابو یعلی بن الفراء،ابوطاهر العبادی اوابوبکربن العربی وغیره ډیر حضرات دی.[3]

**ددوی دحیات د منکرینو او مثبتینو دلائل** د حیات د منکرینو ① یو اهم دلیل هغه روایت دې کوم چه دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دې.هغه فرمائي.«صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات ليلة صلاة العشاء في آخر حياته، فلما سلم قام، فقال: أرأيتكم ليلتكم هذه؟ فإن على رأس مائة سنة منها لا يبقى ممن هو على ظهر الأرض أحد»[4] هم ددې مفهوم حديث د حضرت جابر رضي الله عنه نه هم نقل دې.[5]

مثبتین د حیات ددې ① جواب ورکوی.چه په دې حدیث کښې د ،،على ظهر الأرض،، قید دې.حالانکه حضرت خضر عليه السلام دغه وخت په سمندر کښې وو.[6]

② یا دا چه ددې حدیث د عموم نه حضرت خضر عليه السلام مخصوص دې.لکه څنګه چه ابلیس او حضرت عیسی عليه السلام ددې نه مستثنی دی.[7]

② د حیات د منکرینو یو دلیل د الله تعالی ارشاد هم دې. ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ الْخُلْدَ﴾[8] خو ښکاره ده.چه مثبتین د حیات د حضرت خضر عليه السلام د دوام او خلود قائل نه دی.نو ددې نه استدلال صحیح نه دې.

③ دحیات دمنکرینو یو دلیل د قرآن آیت دې. ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ لَمَا آتَيْتُكُم مِّن كِتَابٍ وَحِكْمَةٍ ثُمَّ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهِ وَلَتَنصُرُنَّهُ ۚ قَالَ أَأَقْرَرْتُمْ وَأَخَذْتُمْ عَلَىٰ ذَٰلِكُمْ إِصْرِي ۖ قَالُوا

---

[1]) المصادر السابق)_

[2]) فتح الباری(۶/۴۳۴)_

[3]) المصادر السابق)_

[4]) صحیح مسلم. کتاب فضائل الصحابة. باب بیان معنی قوله: على رأس مائة سنة لا يبقى. نفس منفوسة ممن هو موجود الآن. رقم(۶۴۷۹) و(۶۴۸۰)_

[5]) صحیح مسلم. کتاب فضائل الصحابة. باب بیان معنی قوله: على رأس مائة سنة.....رقم(۶۴۸۱-۶۴۸۴)_

[6]) فتح الباری(۶/۴۳۴)_

[7]) المصادر السابق)_

[8]) الأنبیاء/۳۴)_

أَقْرَرْنَا قَالَ فَاشْهَدُوْا وَأَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ﴾(١) هم دا مفهوم په يو روايت كښې هم دې: «ما بعث الله نبياً إلا أخذ عليه الميثاق: لئن بعث محمد وهو حي ليؤمنن به ولينصرنه....»(٢)

استدلال په دې طريقه دې چه ددې آيت او حديث په رو سره الله تعالى چونكه د هر نبى نه دا عهد اخستې دې چه كه د نبى كريم ﷺ زمانه ملاو شى نو ايمان راوړلو سره سره به نصرت هم لازمى وى.په دې وجه لازما د حضرت خضر عليه السلام نه هم عهد اخستې شوې دې خكه چه هغه هم نبى دې.كه هغه د نبى كريم ﷺ په زمانه كښې وو نو د نبى كريم ﷺ د نصرت او اعانت دپاره حاضر ولې نشو.كه داسې وې.نو د رواياتو نه به ضرور معلومه شوې وه.(٣)

خو مثبتين د حيات ونيلې شى.چه په رواياتو كښې ذكر راتلل ضرورى نه دې.ډيره ممكن ده.چه حضرت خضر عليه السلام د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوې وى.او په غزواتو كښې هم شريك شوې وى.

حافظ ابن حجر رحمه الله زياتى نور دلائل او شواهد هم ذكركړى دى.او مثبتين د حيات د مستدرك حاكم د يو روايت نه استدلال كوى:

«....ثنا عباد بن عبد الصمد عن أنس بن مالك رضي الله عنه قال: لما قبض رسول الله ﷺ أحدق به أصحابه، فبكوا حوله و اجتمعوا، فدخل رجل أصهب اللحية، جسيم، صبيح، فتخطى رقابهم، فبكى، ثم التفت إلى أصحاب رسول الله ﷺ فقال: إن في الله عزاء من كل مصيبة، وعوضاً من كل فائت، وخلفاً من كل هالك، فإلى الله فأنيبوا، وإليه فارغبوا، و نظرة إليكم في البلاء، فانظروا، فإنما المصاب من لم يجبر، و انصرف، فقال بعضهم لبعض: تعرفون الرجل؟ فقال أبوبكر وعلي: نعم، هذا أخو رسول الله ﷺ الخضر عليه السلام»(٤)

خو دا حديث قابل د استدلال نه دې.خكه چه په دې كښې دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت كونكې راوى عباد بن عبدالصمد د حد نه زيات ضعيف او ناقابل اعتبار دې (٥) امام حاكم رحمه الله هم ددې تخريج كړې دې.او فرمائيلى ئې دى.«هذا شاهد لما قبله، وإن كان عباد بن عبد الصمد ليس من شرط هذا الكتاب»(٦)

---

(١) آل عمران\٨١)_

(٢) عزاه ابن كثير في البداية والنهاية(٢\٣٠٦) مبعث رسول الله ﷺ تسليماً كثيراً. وذكر شئ من البشارات بذالک) و إبن حجر في فتح البارى(٦\٤٣٤) إلى صحيح البخارى. ولم أجده فيه بعد بحث كثير. والله اعلم. وانظر الدر المنثور(٢\٤٧. ٤٨)_

(٣) فتح البارى(٦\٤٣٤)_

(٤) المستدرک للحاكم(٣\٥٧) كتاب المغازى. تعزية الخضر عند وفاته ﷺ)_

(٥) عباد بن عبدالصمد. أبو معمر. عن أنس بن مالک. بصرى واه. قال البخارى. منكر الحديث...و وهاه ابن حبان وقال....حدثنا عباد بن عبد الصمد عن أنس بنسخة أكثرها موضوعة..... وقال ابوحاتم: عباد ضعيف جداً. وقال ابن عدي. عامة ما يرويه في فضائل علي. وهو ضعيف. غال في التشيع. ميزان الإعتدال(٢\٣٦٩) رقم(٤١٢٨)

(٦) المستدرک(٣\٥٨)_

④ دغه شان يو استدلال د مسلم شريف د يو حديث نه هم دې.چه هغه د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه نقل دې.هغه فرمائى.«حدثنا رسول الله ﷺ يوماً حديثاً طويلاً عن الدجال، فكان فيما حدثنا قال: يأتى وهو محرم عليه أن يدخل نقاب المدينة، ينتهى إلى بعض السباخ التى تلى المدينة، فيخرج إليه يومئذ رجل هو خير الناس أو من خير الناس، فيقول له: أشهد أنك الدجال الذى حدثنا رسول الله ﷺ حديثه، فيقول الدجال، أرأيتم إن قتلت هذا ثم أحييته أتشكون فى الأمر؟ فيقولون: لا قال: فيقتله ثم يحييه، فيقول حين يحييه، والله ما كنت فيك قط أشد بصيرة منى الآن، قال: فيريد الدجال أن يقتله، فلا يسلط عليه»[1]
ددې حديث په آخر كښې د امام مسلم شاګرد، د صحيح مسلم راوى ابو اسحاق فرمائى: «يقال إن هذا الرجل هو الخضر عليه السلام»[2] دا حديث اګرچه صحيح دې.خو په دې كښې د ...رجل.. خضر عليه السلام كيدل متيقن نه دى.د ابو اسحاق قول په دې سلسله كښې حجت نه دې.
⑤ د مثبتين حيات يو دليل هغه واقعه ده.كومه چه يعقوب بن سفيان پخپل تاريخ كښې او ابو عروبه د رياح بن عبيده په طريق سره نقل كړې ده.«رأيت رجلاً يماشى عمر بن عبد العزيز معتمداً على يديه، فلما انصرف، قلت له، من الرجل؟ قال: رأيته؟ قلت: نعم، قال: أحسبك رجلاً صالحاً، ذاك أخى الخضر، بشرنى أنى سأولى وأعدل»[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«لا بأس برجاله، ولم يقع لى إلى الآن خبر ولا أثر بسند جيد غيره»[4] خو پخپله حافظ رحمه الله ددې په جواب كښې فرمائى.«وهذا لا يعارض الحديث الأول فى مائة سنة، فإن ذالك قبل المائة»[5]
ددې نه علاوه هم مثبتين د حيات د مختلفو رواياتو نه استدلال كوى.خو حقيقت دا دې چه د سند په لحاظ سره هغې كښې يو روايت هم صحيح نه دې.[6]
البته د حضرات صوفيه وينا ده.چه بې شميره خلقو حضرت خضر عليه السلام كتلې دې او هغه سره

---

[1] صحيح مسلم(۴۰۲\۲) كتاب الفتن. باب ذكر الدجال)_
[2] المصدر السابق)_
[3] فتح البارى(۴۳۶\۶)_
[4] المصدر السابق)_
[5] المصدر السابق)_
[6] ددې رواياتو دپاره اوګورئ: فتح البارى(۴۳۶\۶) قال ابن كثير: وذكروا فى ذالك حكايات و آثاراً عن السلف وغيرهم وجاء ذكره فى بعض الأحاديث، ولا يصح شئ من ذالك. تفسير القرآن العظيم. (۹۹\۳)،، وقال ابن الجوزى: قال ابن المنادى:....و جميع الأخبار فى ذكر الخضر واهية الصدور والأعجاز. لا تخلو من أمرين إما أن تكون أدخلت بين حديث بعض الرواة المتأخرين استغفالاً، وإما أن يكون القوم عرفوا حالها فرووها على جهة التعجب. فنسبت إليهم على وجه التحقيق..... الموضوعات لابن الجوزى(۱۹۹\۱)_

ئې ملاقات کړې دې.
**راجح مذهب** خلاصه دا ده.چه دواړو طرف ته څومره دلائل دى.دا پخپله مدعا باندې قطعي او واضح نه دى په دې وجه خاص يو طرف ته د اصرار کولو ضرورت نشته.البته په دې مقام باندې راجح د محدثينو مذهب معلوميږى.
**يوه اهمه خبره** دلته دا خبره هم د يادولو ده.چه د حضرت خضر ﷺ مرګ او ژوند سره زمونږه څه اعتقادى يا عملى مسئله متعلق نه ده.ځکه چه قران او حديث کښې ددې متعلق هيڅ صراحت او وضاحت نه دې شوې.په دې وجه په دې کښې د زيات بحث او تمحيص کولو هم ضرورت نشته.او نه خاص د يوطرف يقين کول مونږ دپاره ضرورى دى.والله اعلم
((فَسَأَلَ مُوسَى السَّبِيلَ إِلَيْهِ فَجَعَلَ اللَّهُ لَهُ الْحُوتَ آيَةً وَقِيلَ لَهُ إِذَا فَقَدْتَ الْحُوتَ فَارْجِعْ فَإِنَّكَ سَتَلْقَاهُ وَكَانَ يَتَّبِعُ أَثَرَ الْحُوتِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ لِمُوسَى فَتَاهُ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ قَالَ ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِي فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خَضِرًا فَكَانَ مِنْ شَأْنِهِمَا الَّذِي قَصَّ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فِي كِتَابِهِ))
نو موسى ﷺ هغه پورې د رسيدو د لارې تپوس اوکړو.الله تعالى يو کب هغوى دپاره نشانه مقرر کړله.او وې فرمائيل چه کله کب ورك شى.نو واپس شه.ته به هغه سره ملاو شې.حضرت موسى ﷺ په سمندر( په غاړه غاړه ) ددې کب په نشان باندې روان شو.ددوى خادم ( حضرت يوشع) هغوى ته اووئيل.چه کله مونږ صخره (غټ کاڼړى) سره ايسار شوى وو.نو ما نه د کب قصه بيانول هيرشو.او شيطان زما نه هيره کړله.چه زه تاسو ته د هغې ذکر اوکړم حضرت موسى ﷺ اوفرمائيل.چه مونږه هم ددغه ځائې په تلاش کښې وو.بيا دواړه په تلاش کښې د خپلو خپو په نشانونو راواپس شو.هلته ئې خضر ﷺ سره ملاقات اوشو.بيا هغه قصه تيره شوه.کومه چه الله تعالى پخپل کتاب کښې بيان کړله.
**ايا علم باطن د علم ظاهر نه افضل دې؟** دلته بعضو خلقو وئيلى دى.چه حضرت موسى ﷺ د شريعت يعنى د ظاهر عالم وو.او حضرت خضر ﷺ د باطن عالم وو.د ظاهر عالم ته د باطن عالم شاګرد جوړيدو دپاره وئيلې شى.او د هغوى نه د علم حاصلولو حکم ورکولې شى.معلومه شوه.چه علم باطن يعنى علم طريقت، د علم ظاهر يعنى د علم شريعت نه افضل دې.
① حضرت تهانوى رحمه الله فرمائى.چه دا غلطه ده.علم باطن يا علم طريقت خو پخپله د شريعت جزء دې.شريعت د ظاهرى اصلاح او د باطنى اصلاح د علم نوم دې.په شريعت کښې د اعمالو او معاملاتو صحيح کيدو سره د اخلاقو د صحيح کيدو او د زړه د تزکيه هم حکم دې.معلومه شوه.چه شريعت علم ظاهر او علم باطن ته جامع دې.طريقت چه دا په علم باطن سره تعبير کولې شى.دا د شريعت يو جزء دې.او دا خبره معلومه او مسلم (منلې شوې) ده چه جزء د کل نه افضل نه وى.
② دويمه خبره دا ده.چه حضرت موسى ﷺ دعلم ظاهر او علم باطن جامع وو. د علم شريعت او علم طريقت حامل وو.هغه چه حضرت خضر ﷺ ته ورغلې وو.هغه د علم طريقت يا علم باطن زده کولو ته نه وو ورغلې.هغه خو يو څو تکوينى امور وو.چه دهغې نه علم

ظاهر سره تعلق وو .او نه علم باطن سره. ددغه تکويني امورو علم حضرت موسیؑ ته نه کيدل. ددوی دپاره څه عيب يا نقص نه دي.(۱)

د حضرت خضرؑ په واقعه کښې دا اوشو چه بعضې څيزونه کوم چه زماناً يا مکاناً د حضرت خضرؑ په اعتبار سره بعيد (لرې) وو .هغه د حضرت خضرؑ دپاره قريب (نزدې) وو حضرت خضرؑ ته د هغې علم اوشو .او حضرت موسیؑ ته د هغې علم اونشو .لکه چه بادشاه مکاناً بعيد وو .نو حضرت موسیؑ ته د هغه د حالاتو علم نه وو .دغه شان کوم بچې (ماشوم) چه حضر خضرؑ قتل کړو .د هغه کفر زماناً بعيد وو .او حضر خضرؑ ته الله تعالی ددې علم ورکړو .دغه شان هغه خزانه کومه چه مدفون وه .حضرت موسیؑ دپاره دهغې علم بعيد وو .د حضرت خضرؑ دپاره نيزدې وو .دغه شان زماناً يا مکاناً ددې څيزونو حضرت خضرؑ دپاره قريب کيدل، او ددې علم کيدل. په دې سره د حضرت موسیؑ په مقابله کښې د حضرت خضرؑ فضيلت نه ثابتيږي .او دا به نشی ونيلې چه خضرؑ د طريقت او باطن عالم وو .او موسیؑ د هغې د زده کولو دپاره هغوی ته ورغلې وو .حضرت موسیؑ خو پخپله جامع د شريعت او طريقت وو .هغه خو پخپله د ظاهر او باطن د علم نه ښه واقف وو .دا تکويني امور وو .چه ددې حضرت موسیؑ ته علم نه وو .او حضرت خضرؑ ته وو .ددې علم نه کيدل د حضرت موسیؑ د علم د نقص دليل نه دې.

تر کومه پورې چه د حضرت موسیؑ حضرت خضرؑ ته د ورتلو تعلق دې .نو ددې وجه افضليت نه دې .بلکه تعليم او تاديب دې .چه بيا دپاره په تکلم کښې احتياط کوه.

**که شيخ د ناجائز حکم اوکړي .نو مريد دپاره دهغې کول جائز نه دی** بعضې خلقو دلته دا استدلال هم کړې دې .چه که شيخ د ناجائز کار حکم ورکړي .نو مريد له هغه کول پکار دی .ګنې محرومه به شی .حضرت خضرؑ دلته درې کارونه اوکړل .حضرت موسیؑ ته په هغې باندې اعتراض شو .او ددې اعتراض نتيجه دا شوه .چه هغه د علم د حصول نه منع کړې شو .ددې نه جاهلانو دا نتيجه اوښکلې ده .چه که شيخ د خلاف شريعت کار حکم ورکړي .او مريد د هغې تعميل اونکړي .نو هغه محرومه کولې شی.

**دا استدلال هم قطعاً غلط دې** ① اول خکه چه حضرت موسیؑ ، الله تعالی حضرت خضرؑ ته وراوليګلو .او دا معلومه ده .چه الله تعالی خپل پيغمبر د يو خلاف شريعت کار کونکی ته ورليګلو دپاره نشی راضی کيدې .نو دلته دا ونيل اصلاً غلط دی .چه حضرت خضرؑ ناجائز کارونه اوکړل .خکه چه د حضرت خضرؑ متبع د شريعت کيدل، د الله تعالی هغه کړه د مقررولو نه ثابتيږي.

بيا ددې خبرې لحاظ ساتل هم پکار دی .چه د حضرت خضرؑ شريعت به جدا وی .او دهغې احکام جزئيه او فرعيه به جدا وی .او د حضرت موسیؑ شريعت به جدا وی .او ددې احکام او مسائل او فروع به جدا وی .په دې وجه حضرت موسیؑ ته اشکال اوشو .ښکاره ده .چه د حضرت خضرؑ شريعت او احکام د جدا کيدو په وجه هغه مورد د الزام نه

---

(۱) بيان القرآن (۱۱\۱۲۷-۱۳۲) سورة الكهف)

دی.دغه شان د حضرت موسی علیه السلام شریعت او احکام جدا کیدو په وجه دا هم مورد دالزام نشی کیدی.

دلته چه د کوم شیخ د اطاعت خبره شروع ده.چه که هغه د شریعت خلاف حکم ورکړی.نو هغه اومنلې شی.او هیڅ اعتراض اونکړې شی نو

① اول خو ددې شیخ الله تعالی کوم ځائې نوم اخستې دې.چه دهغې نه دا ثابته شی.چه دې د شریعت خلاف خبره کونکې نه دې.

② دویمه خبره دا ده.چه دلته خو شریعت یو دې.دا خبره خو نه ده.چه دشیخ شریعت د محمدرسول الله ﷺ د شریعت نه جدا بل یو شریعت وی.اوس که شیخ د شریعت خلاف حکم ورکوی.نو د «لا طاعة لمخلوق فی معصية الخالق» مطابق به دهغه خبره رد کول واجب وی.

③ البته که څه مبهم خبره وی.چه په هغې کښې د تاویل گنجائش وی.نو هغه بله خبره ده. دلته د کفر بواح او د هغه امر خبره کولې شی.چه د هغې په عدم جواز کښې هیڅ شبه موجود نه ده.

**ایا د شیخ اکبر ابن عربی رحمه الله په نیز ولایت د نبوت نه افضل دې؟** شیخ اکبر محی الدین ابن عربی رحمه الله د ولایت او نبوت نه بحث کولو کښې فرمائیلی دی.چه ولایت د نبوت نه افضل دې.حافظ ابن تیمیه رحمه الله په دې باندې سخت تردید کړې دې.او ابن عربی ئې کفر او الحاد ته رسولې دې.(۱)

خو صحیح خبره دا ده.چه د ابن عربی مقصد دا نه دې.چه ولی د نبی نه افضل وی.د هغوی مقصد دا دې.چه په نبی کښې دننه یو شان د نبوت وی.او یو شان د ولایت وی.د نبی شان ولایت ددوی د شان نبوت نه افضل وی.په غیر نبی کښې که څه ولایت اوموندې شی.نو هغې ته د نبی د نبوت نه افضل نشی وئیلې کیدې.او نه ابن عربی وئیلی دی.

حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله پخپلو مکتوباتو کښې ددې هم تردید کړې دې.او فرمائیلی ئې دی.چه په نبی کښې دننه چه کوم شان د ولایت او شان نبوت دواړه وی.هغې کښې شان د نبوت د شان ولایت نه افضل وی.(۲) ،،والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب،،_

## ۱۷- بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ

**د تیرشوی باب سره ددې باب مناسبت** په دواړو بابونو کښې مناسبت ① دا دې.چه په تیرشوی باب کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په حضرت حر بن قیس رضی الله عنه غلبه مذکور ده.چه دا د حضرت ابن عباس د کمال علم په وجه اوشوه.او په دې باب کښې دا مذکور دی.چه دا علم او فضل حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته د نبی کریم ﷺ په دعا سره حاصل شو.(۳)

---

۱) مجموع فتاوی شیخ الإسلام(۱۲\٤-۲۰۲٤۷)_

۲) مکتوباب مجدد الف ثانی)_

۳) عمدة القاری(۲\٦٥)_

② دويمه وجه د مناسبت دا بیان کړې شوې ده.چه په تیرشوی باب کښې دا مذکور دی.چه حضرت موسی علیه السلام د حضرت خضر علیه السلام نه دهغې علم استفاده اوکړله.کوم چه دوی سره نه وو.او په دې باب کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د نبی کریم ﷺ نه د علم کتاب د استفادې ذکر دې.(١) والله اعلم.

**د ترجمة الباب مقصد** حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمهما الله فرمائی.په دې کښې اشاره ده.چه ددې الفاظو استعمال د نورو خلقو دپاره کیدې شی.دا جواز د ابن عباس رضی الله عنهما خصوصیت نه دې.هم دا وجه ده.چه په حدیث کښې د ترجمې الفاظ کیخودې شو.او دا نې اونه وئیل.چه ددې دعائیه کلمو تعلق د یو خاص ذات سره دې.ددې معنی په لحاظ سره د ..علمه.. مرجع به څوك مخصوص سړې نه وی.(٢)

حافظ رحمه الله فرمائی.چه دا هم کیدې شی.چه مرجع ابن عباس رضی الله عنهما وی.دکوم ذکر چه په تیرشوی باب کښې راغلې دې.او په دې طریقه اشاره اوشوه.چه د حر بن قیس په مقابله کښې د ابن عباس رضی الله عنهما کامیابی د پیغمبر ﷺ ددې دعا اثر وو.(٣)

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی.چه ددې واقعې نه د علم او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د دواړو عظمت او فضیلت بداهت سره معلومیږی.په دې وجه مولف دا روایت په کتاب العلم او په مناقبو د ابن عباس رضی الله عنهما دواړو ځایونو کښې ذکر کړې دې.ددې سره دا هم په فهم کښې راځی.چه علم د الله جل جلاله خاص انعام او عطاء ده.لکه څنګه چه په «باب من یرد الله به خیراً یفقهه فی الدین» کښې اوس مذکور شو.نو سړې چه هر څومره ذهین او فهیم وی.او په تعلم د علم کښې څومره هم جدوجهد (او محنت) اوکړی.هیڅ کله هم قابل د اعتماد نه دې.بلکه توجه او التجا الی الله ضروری ده.ددې نه بغیر د خیر د ارادې دا نعمت نشی ملاویدې. یعنی په ضروریاتو د تعلم کښې دعا او التجا الی الله هم ده.په دې وجه فهم او سعی سره ددې هم ډیر زیات حاجت دې.(٤)

حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی.چه په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده.چه کوم کس سره د کتاب علم دې.هغه ګویا د نبی کریم ﷺ د سینې مبارکې نه استفاده کوی.ګویا چه ددې سړی سینه د نبی کریم ﷺ د سینې سره منضم (او پیوست) ملاو شوې ده.لکه څنګه چه نبی کریم ﷺ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما خپلې سینې مبارکې سره ملاو کړې وو.او دعا نې ورته کړې وه.(٥)

حضرت شیخ الحدیث مولانامحمد زکریا صاحب رحمه الله فرمائی.چه ددې باب مقصد نبی

---

(١) المصدر السابق)_

(٢) فتح الباری(١٦٩١١) وعمدة القاری(٦٥١٢)_

(٣) فتح الباری(١٦٩١١)_

(٤) الأبواب والتراجم از حضرت شیخ الهند قدس سره(ص٤٩)_

(٥) لامع الدراری مع تعلیقاته(٣٢١٢)_

کریم ﷺ د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دپاره کومه دعا کړې ده.د هغې سبب طرف ته اشاره کول دي.دغه سبب یا خو د نبی کریم ﷺ خدمت دې.چه هغوی د نبی کریم ﷺ دپاره د اودس اوبه ایخودې وې.یا دهغوی حسن ادب دې.چه نبی کریم ﷺ هغوی خپل خان سره برابر اودرولو.خو هغه شاته شو.او اودریدو.ددې دواړو سببونو ذکر روستو راروان دې.(۱)

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی.چه دا هم ممکن ده.چه امام بخاری رحمه الله ددې نه د استاذ او د شیخ ادب بیان کړې وی.چه استاذ له پکار دی.چه خپلو طالبانو دپاره دعا کوی.لکه څنګه چه نبی کریم ﷺ دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دپاره دعا اوکړله.(۲) او هم دوی فرمائی.چه دا هم ممکن ده.چه امام بخاری رحمه الله دا باب چه مطلق ساتلې دې.دا د فاندو د تکثیر په غرض سره ایخودې وی.چه په دې کښې د استاذ دعا کول هم داخل دی.او د طالب علم دعا طلب کول هم دا خل دی.(۳) والله أعلم.

## حديث باب

۷۵-((حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ(۴)قَالَ ضَمَّنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ اللَّهُمَّ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ))
[۱۴۳، ۳۵۴٦ ، ٦۸۴۲]

## رجال الحديث

① ابومعمر رحمه الله:دا عبدالله بن عمرو بن ابی الحجاج منقری بصری دې.ابو معمر ئې کنیت دې.او د ،،مقعد،، په لقب سره مشهور دې.(۵)

دوی د جریر بن عبدالحمید، عبدالعزیز بن محمد دراوردی، عبد الوهاب ثقفی، ملازم بن عمرو حنفی نه علاوه د عبدالوارث بن سعید نه روایت دحدیثو کوی.خاص طور باندې دوی د عبدالوارث نه بنه استفاده اوکړله.په اصول سته کښې چه ددوی ډیرې روایات نقل دی.

---

(۱) تعلیقات لامع الدراری(۳۱\۲، ۳۲) والأبواب والتراجم لصحیح البخاری(ص۴۳)_

(۲) الأبواب والتراجم لصحیح البخاری(ص۴۳)_

(۳) المصدرالسابق)_

(۴)قوله:..عن ابن عباس.. الحدیث أخرجه البخاری( أیضاً فی (۲۶\۱) کتاب الوضوء، باب وضع الماء عند الخلاء، رقم\۱۴۳) وفی(۵۳۱\۱) کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ (المناقب) باب ذکر ابن عباس رضی الله عنهما رقم(۳۷۵۶) وفی (۱۰۸۰\۲) فاتحة کتاب الإعتصام بالکتاب والسنة، باب( بدون ترجمة) رقم(۷۲۷۰)، ومسلم فی صحیحه فی کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل عبدالله بن عباس رضی الله عنهما رقم(۶۳۶۸) والنسائی فی السنن الکبری(۵۱\۵، ۵۲) کتاب المناقب، باب: عبدالله بن العباس بن عبدالمطلب خیرالأمة وعالمها وترجمان القرآن ﷺ، رقم(۸۱۷۷- ۸۱۷۹) و ابن ماجه فی سننه، فی المقدمة، باب فی فضائل أصحاب رسول الله ﷺ، فضل ابن عباس، رقم(۱۶۶)_

(۵) تهذیب الکمال(۳۵۳\۱۵)وسیرأعلام النبلاء(۶۲۲\۱۰)_

ټول دعبدالوارث په واسطې سره دی.(١)

ددوی نه په روایت کونکو کښې امام بخاری، امام ابوداؤد، امام ابوزرعه، امام ابو حاتم، امام دارمی، امام ذهلی، عباس دوری، او محمد بن واره رحمهم الله وغیره ډیر دحدیثو ستنې ډیرلوې محدثین) دی.(٢)

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائی، ،ثقة ثبت،،(٣) او هم دوی فرمائی.((ثقة نبیل عاقل))(٤)

علی بن المدینی رحمه الله فرمائی.((قد کتبت کتب عبدالوارث عن ولده عبدالصمد، وأنا أشتهی أن أکتبها من أبی معمر))(٥)

حافظ ذهبی رحمه الله د علی بن المدینی رحمه الله د مذکوره قول قدر او قیمت ښکاره کولو دپاره فرمائی.((یقول علی مثل هذا القول مع أنه قد لقی أیضاً عبدالوارث وسمع منه جملة أحادیث))(٦)

یعقوب بن شیبه رحمه الله فرمائی.((کان ثقة ثبتاً، صحیح الکتاب وکان یقول بالقدر....))(٧)

امام عجلی رحمه الله فرمائی.((أبو معمر ثقة، یری القدر))(٨)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.((صدوق متقن قوی الحدیث، غیر أنه لم یکن یحفظ، وکان له قدر عند أهل العلم))(٩) ابو زرعه رحمه الله فرمائی.((ثقة حافظ، یعنی أنه کان متقناً مصر راًلکتبه))(١٠)

ابن حبان رحمه الله دوی لره په ، ،کتاب الثقات،، کښې ذکرکړې دې.(١١)

ددې ټولو توثیقاتو سره تاسو دلته دا هم اوکتل چه دې قدری وو.ددې باوجود ددوی احادیث اصحابو داصول سته قبول کړل.او پخپلو کتابونو کښې ئې دا روایت هم کړل.خکه چه دې داعی الی البدعة نه وو.لکه چه امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی.((وکان لا یتکلم فیه))(١٢) یعنی هغه به د ، ،قدر،، په باره کښې کلام هم نه کولو.

---

(١) حاشیة ابن العجمی علی الکاشف(١١\٥٧٩) رقم(٢٨٧٨)_
(٢) د شیوخ او تلامذه د تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال(١٥\٣٥٣) وسیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٢)_
(٣) تهذیب الکمال(١٥\٣٥٤)و سیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٢)_
(٤) المصادر السابق)_
(٥)تهذیب الکمال(١٥\٣٥٥) وسیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٣)_
(٦)سیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٣)_
(٧)تهذیب الکمال(١٥\٣٥٥) وسیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٣)_
(٨)المصادر السابق)_
(٩)تهذیب الکمال(١٥\٣٥٦) وسیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٣، ٦٢٤)_
(١٠)المصادر السابق)_
(١١)الثقات لابن حبان( ٨\٣٥٣، ٣٥٤)_
(١٢)تهذیب الکمال(١٥\٣٥٥)وسیر أعلام النبلاء(١٠\٦٢٣)_

په ۲۲۴هـ كښې ددوى وفات اوشو.(١) ،،حفظه الله له،،_

② عبدالوارث رحمه الله: دا عبدالوارث بن سعيد بن ذكوان تميمى عنبرى تنورى بصرى رحمه الله دې.ابو عبيده ددوى كنيت دې.(٢)

دوى ديزيد الرشك،ايوب سختيانى،ايوب بن موسى، شعيب بن الحجاب ، عمرو بن عبيد ، داؤد بن ابى هند ، عبدالعزيز بن صهيب، عبدالله بن ابى نجيح، سليمان تيمى، ابو عمرو بن العلاء او سعيد بن ابى عروبه رحمهم الله وغيره حضراتو نه روايت د حديثو كوى.

ددوى نه په روايت كونكو كښې ددوى خوئې عبدالصمد بن عبدالوارث ،ابو معمر المقعد ((وهو راوية كتبه))، مسدد بن مسرهد ، قتيبه بن سعيد ، بشر بن هلال الصواف، عبيدالله بن عمر القواريرى، او على بن المدينى رحمهم الله وغيره حضرات دى.(٣)

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(٤)

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائى.((ثقة صدوق، ممن يعدّ مع ابن علية، وبشر بن المفضل، و وهيب، يعدّ من الثقات، هو أثبت من حماد بن سلمة))(٥)

امام نسائى رحمه الله فرمائى.((ثقة ثبت))(٦)

ابن سعد رحمه الله فرمائى.((كان ثقة حجة))(٧)

ابن حبان رحمه الله فرمائى.((كان قدرياً، متقناً فى الحديث، كان شعبة يقول: يعرف الإتقان فى قفاه))(٨)

ابن معين رحمه الله فرمائى.((هو مثل حماد بن زيد فى أيوب))(٩)

دابن معين رحمه الله چه كله تپوس اوكړې شو.((من أثبت شيوخ البصريين؟)) نو وې فرمائيل ((عبدالوارث، و سمى جماعة))(١٠)

---

(١) الكاشف(١\٥٧٩) رقم(٢٨٧٨)_

(٢) تهذيب الكمال(١٨\٤٧٨) وسير أعلام النبلاء(٨\٣٠٠)_

(٣) دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوگورئ: تهذيب الكمال(١٨\٤٧٨-٤٨١) وسير أعلام النبلاء(٨\٣٠٠، ٣٠١)_

(٤) تهذيب الكمال(١٨\٤٨٣)وسير أعلام النبلاء(٨\٣٠٤)_

(٥) تهذيب الكمال(١٨\٤٨٣)_

(٦) المصدر السابق)_

(٧) الطبقات الكبرى(٧\٢٨٩)_

(٨) الثقات لابن حبان(٧\١٤٠)_

(٩) تهذيب الكمال(١٨\٤٨٢) وسير أعلام النبلاء(٨\٣٠٤)_

(١٠) المصادر السابق)_

ددې تولو توثيقاتو باوجود په دوی باندې د قدری کيدو الزام هم دې. حافظ ذهبي رحمه الله ددوی قدری کيدل جزم سره نقل کړی دی.حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي.«واليه المنتهى في التثبت إلا أنه قدري متعصب لعمرو بن عبيد»(١)

او هم دوی فرمائي.«وكان عالماً مجوداً، من فصحاء أهل زمانه، ومن أهل الدين والورع، إلا أنه قدري مبتدع»(٢)او هم دوی فرمائي.«ثبت صالح لكنه قدري»(٣)

د حماد بن زيد رحمه الله نه منقول دی.چه هغه به د عبدالوراث نه د روايت کولو نه منع کول.(٤)

يزيد بن زريع رحمه الله به فرمائيل.«من أتى مجلس عبدالوارث فلا يقربني»(٥)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.«ثقة ثبت رمي بالقدر، ولم يثبت عنه»(٦)

ددې نفی بنياد په اصل کښې دعبدالوارث د خوئي عبدالصمد دا قول دې.چه هغه به قسم سره وئيل:«إنه لمكذوب على أبي، وما سمعت قط يعني القدر وكلام عمرو بن عبيد»(٧)

غالباً په دوی باندې د قدری کيدو الزام دې.دا په دې وجه لګيدلې وو.چه ده به دعمرو بن عبيد معتزلي تعريف کولو.او د هغه نه به ئې روايتونه اخستل.لکه چه هغه به وئيل:«لولا أنني أعلم أنه صدوق ما حدثت عنه»(٨)او هم دوی به فرمائيل:«أن يوماً من عمرو بن عبيد أكبر من عمر أيوب السختياني ويونس وابن عون»(٩)

که په دوی باندې د قدری کيدو الزام ثابت هم شي.بيا هم چونکه دې داعی نه وو.په دې وجه به ددوی احاديث مقبول وی.لکه چه جمهورو محدثينو او اصحابو داصول سته ددوی احاديث قبول کړی دی.او کله چه د حضرت عبدالله بن المبارك نه تپوس اوکړې شو: «كيف رويت عن عبدالوارث وتركت عمرو بن عبيد؟» نو دوی اوفرمائيل.«إن عمراً كان داعياً»(١٠)

په محرم ۱۸۰ھ کښې ددوی وفات اوشو.(١١)، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

---

(١)ميزان الإعتدال(٢\٦٧٧) رقم(٥٣٠٧)_
(٢)سير أعلام النبلاء(٨\٣٠١)_
(٣)الكاشف(١\٦٧٣) رقم(٣٥١٠)_
(٤) تهذيب الكمال(١٨\٤٨٣) وسير أعلام النبلاء(٨\٣٠٣)_
(٥)سير أعلام النبلاء(٨\٣٠٣)_
(٦)تقريب التهذيب( ص٣٦٧) رقم(٤٢٥١)_
(٧)هدى الساري(ص٤٢٢)_
(٨)المصدر السابق)_
(٩)سير أعلام النبلاء(٨\٣٠٢)_
(١٠)سير أعلام النبلاء(٨\٣٠٢)_
(١١) سير أعلام النبلاء(٨\٣٠٤)_

④ خالد رحمه الله: دا مشهور محدث ابو المنازل (بضم الميم و كسر الزاي، وقيل بفتح الميم أيضاً)[1] خالد بن مهران حذاء بصري رحمه الله دې.[2]

دوی د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه زيارت کړې دې.[3] دوی دانس بن سيرين، محمد بن سيرين، حفصه بنت سيرين، حسن بصري، ابو عثمان نهدي، ابوالعاليه رياحي، عطاء بن ابی رباح، عطاء بن ابی ميمونه، او ابو رجاء عطاردي رحمهم الله وغيره حضراتو نه روايت د حديث کوی.

او ددوی نه روايت کونکو حضراتو کښې ابو اسحاق فزاري، اسماعيل بن عليه، بشر بن المفضل، حفص بن غياث، حماد بن زيد، حماد بن سلمه، سفيان ثوري[4] سليمان الاعمش، شعبه بن الحجاج، عبدالله بن المبارك، عبدالوارث بن سعيد، محمد بن جعفر غندر، محمد بن سيرين (وهو شيخه) معتمر بن سليمان، منصور بن المعتمر او ابواسحاق سبيعي رحمهم الله وغيره دی.[5]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی: ،،ثبت،،[6]

امام نسائی او يحي بن معين رحمهما الله فرمائی: ،،ثقة،،[7]

حافظ ذهبي رحمه الله دوی لره «الإمام الحافظ الثقة»[8]، او «الحافظ أحد الأئمة»[9] او «ثقة إمام» ګرځولې دې.[10]

ابن سعد رحمه الله د فهد بن حيان قيسي نه نقل کوی: «وكان خالد ثقة، رجلاً مهيباً، لا يجترئ عليه أحد، وكان كثير الحديث»[11]

البته امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: «يكتب حديثه ولا يحتج به»[12]

---

[1] تقريب التهذيب(ص ۱۹۱) رقم(۱۶۸۰)_
[2] تهذيب الكمال(۱۷۷/۸)_
[3] المصدر السابق)_
[4] كذا في تهذيب الكمال(۱۷۹/۸) وليس فيه ذكر سفيان بن عيينة. وذكر الذهبي في السير ابن عيينة (۱۹۱/۶) ولم يذكر الثوري. فليحقق.)_
[5] دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۷۸/۸-۱۸۰) وسير أعلام النبلاء(۱۹۱/۶، ۱۹۲)
[6] تهذيب الكمال(۱۸۰/۸)_
[7] المصدر السابق)_
[8] سير أعلام النبلاء(۱۹۰/۶)_
[9] ميزان الإعتدال(۶۴۲/۱) رقم(۲۴۶۶)_
[10] الكاشف(۳۶۹/۱) رقم(۱۳۵۶)_
[11] الطبقات الكبرى لابن سعد(۲۵۹/۷، ۲۶۰)_
[12] تهذيب الكمال(۱۸۰/۸)_

دغه شان امام شعبه، ابن عليه او حماد بن زيد رحمهم الله هم دوى باندې لږ كلام كړى دى.[١]
خو حقيقت دا دې چه په دوى باندې كومه جرح شوې ده. جمهور نقادو د حديث دا رد كړې ده. لكه چه ابن العجمى رحمه الله فرمائى: «قال ابن الهادى فى، طبقاته،: ولم يقبل هذا القول منه فيه ولا فى حديثه من الأئمات»[٢]
ښكاره ده چه امام احمد، ابن معين او نسائي وغيره دوى لره ،،ثقه،، او ،،ثبت،، ګرځوى. نو د ابو حاتم مبهم جرح څنګه موثر كيدې شى؟ بيا تركومه پورې چه د شعبه د كلام تعلق دې نو حافظ ابن حجر رحمه الله د هغې وجه بيانوى ،او ليكى چه:
«وتكلم فيه شعبة وابن علية إما لكونه دخل فى شئ من عمل السلطان، أو لما قال حماد بن زيد: قدم علينا قدمة من الشام فكأنا أنكرنا حفظه»[٣]
حافظ ذهبى رحمه الله د ابو حاتم او شعبه رحمهما الله اقوال نقل كوى او فرمائى: «ما التفت أحد إلى هذا القول أبدا»[٤] او شعبه چه كله د خالد حذاء په باره كښې كلام اوكړو نو عباد بن عباد او حماد بن زيد دواړه دوى ته راغلل او وې وئيل: «مالك! أجننت! أنت أعلم، وتهددناه» نو شعبه بيا كلام كول پريخودل.[٥]
البته حماد بن زيد چه كوم دا وئيلى دى چه د شام نه د واپس راتلو نه پس ددوى په حافظه كښې څه تغير راغلې وو، ممكن ده چه دا بالكل د آخرى عمر خبره وى، ځكه چه ټولو اصحابو د اصول سته او نورو محدثينو ددوى د احاديثو نه احتجاج او استدلال كړې دې.[٦] والله اعلم.
**په ،،حذاء،، لقب سره د مشهور كيدو وجه:** دوى پخپله پيزار جوړونكې يا خرڅونكې نه وو، بلكه ① دوى چونكه د ،،حذائينو،، (پيزار جوړونكو او خرڅونكو) سره كيناستو پاسيدو، په دې وجه ددوى نوم ،،حذاء،، مشهور شو.
② بعضې حضرات دا وائى چه دوى به ،،حذائين،، سره كيناستلو او هغوى ته به ئې هدايت وركولو «احذ على هذا النحو» (په دې طريقه باندې ګنډل كوئ. داسې پيزار جوړوئ) په دې وجه د دوى نوم ،،حذاء،، شو. ③ يو قول دا هم دې. چه دوى د بنى مجاشع يوې ښځې سره نكاح اوكړله او خپل ځان سره بوتلله او په حذائين علاقه كښې ئې اوسيدل اختيار

---

[١] ميزان الإعتدال (٦٤٣\١) رقم (٢٤٦٦)_
[٢] حاشية ابن العجمى على الكاشف (٣٦٩\١)_
[٣] هدى السارى (ص ٤٠٠)_
[٤] ميزان الإعتدال (٦٤٣\١) رقم (٢٤٦٦)_
[٥] ميزان الإعتدال (٦٤٣\١) وسير أعلام النبلاء (١٩١\٦)_
[٦] هدى السارى (ص ٤٠٠)_

كړل په دې وجه ددوى نوم ،،حذاء،، مشهور شو.(١)

په ١٤١هـ يا ١٤٢هـ كښې ددوى وفات اوشو.(٢) ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

عكرمه رحمه الله: دا مشهور امام حديث او تفسير ابو عبدالله عكرمه ،،مولى د عبدالله بن عباس،، مدنى رحمه الله دې.دوى د مغرب بربرى خاندان سره تعلق لرى.د حصين بن ابى الحر العنبرى غلام وو.دوى حضرت ابن عباس رضى الله عنهما ته هبه كړو.(٣)

حضرت عكرمه رحمه الله د حضرت عبدالله بن عباس، حضرت جابر، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عمرو، عقبه بن عامر جهنى، معاويه بن ابى سفيان، يعلى بن اميه، حضرت ابوهريره، او حضرت ابو قتاده رضى الله عنهم نه روايت د حديث كړې دې.دوى د حضرت عائشه، حضرت على، حضرت ابوبكرصديق، حضرت سعد بن ابى وقاص رضى الله عنهم نه هم روايت كړې دې خو محدثينو تصريح كړې ده.چه دده ددې حضراتو نه كوم روايتونه دى.هغه مرسل دى.(٤)

ددوى نه روايت كونكو كښې ابراهيم نخعى، امام شعبى، عمرو بن دينار، ابو الزبير مكى، قتاده، مطر الوراق، موسى بن عقبه، ايوب سختيانى، اشعث بن سوار، حميد الطويل، خالدالحذاء، امام اعمش، سماك بن حرب، عاصم بن بهدله، عاصم الاحول، فطربن خليفه او ليث بن ابى سليم رحمهم الله وغيره حضرات دى.(٥)

جابر بن زيد رحمه الله فرمائى.((عكرمة مولى ابن عباس هذا أعلم الناس))(٦)

د سعيد بن جبير رحمه الله نه تپوس اوكړې شو.((تعلم أحداً أعلم منك؟))نو دوى اوفرمائيل:((نعم عكرمة))(٧)

امام قتاده رحمه الله فرمائى.((أعلم التابعين أربعة....وكان أعلمهم بالتفسير))(٨)

ايوب سختيانى رحمه الله فرمائى.((لولم يكن عندى ثقة لم أكتب عنه))(٩)

عمرو بن دينار رحمه الله فرمائى.((ما رأيت مثل عكرمة قط))(١٠)

---

١) سير أعلام النبلاء(١٩٢\٦)_

٢) تهذيب الكمال(١٨\١٨)_

٣) تهذيب الكمال(٢٦٤\٢٠، ٢٦٥)وسير أعلام النبلاء(١٢\٥، ١٣)_

٤) حاشيه ابن العجمى على الكاشف(٣٣\٢) رقم(٣٨٦٧)_

٥) دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(٢٦٥\٢٠-٢٦٩)وسير أعلام النبلاء(١٣\٥، ١٤)

٦) تهذيب الكمال(٢٧٢\٢٠) وسير أعلام النبلاء(١٦\٥) وهدى السارى(ص٤٢٨)_

٧) سير أعلام النبلاء(١٦\٥) و تهذيب الكمال(٢٧٢\٢٠) وهدى السارى(ص٤٢٩)

٨) تهذيب الكمال(٢٧٢\٢٠) وسير أعلام النبلاء(١٧\٥)وهدى السارى(ص٤٢٩)_

٩) سير أعلام النبلاء(١٨\٥) وهدى السارى(ص٤٢٩) و تهذيب الكمال(٢٧٥\٢٠)_

١٠) هدى السارى(ص٤٢٩)_

سلام بن مسكين رحمه الله فرمائى: «كان عكرمة من أعلم الناس بالتفسير»[1]

سفيان ثورى رحمه الله فرمائى: «خذوا التفسير من أربعة» او په دوى كښې ئې د عكرمه ذكر هم اوكړو.[2] امام بخارى رحمه الله فرمائى «ليس أحد من أصحابنا إلا احتج بعكرمة»[3]

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى: «إذا رأيت إنسانا يقع في عكرمة فاتهمه على الإسلام»[4]

امام نسائى رحمه الله فرمائى: ،،ثقة،،[5]

ابو حاتم رحمه الله فرمائى: ،،ثقة،،[6]

او هم دوى فرمائى: «أصحاب ابن عباس عيال على عكرمة»[7]

امام اسحاق بن راهويه رحمه الله فرمائى: «عكرمة عندنا إمام أهل الدنيا»[8]

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى: «كان عكرمة من أهل العلم، ولم يكن في موالى ابن عباس أغزر علماً منه»[9] ابو بكر بن ابى خيثمه رحمه الله فرمائى: «كان عكرمة من أثبت الناس فيما يروى ولم يحدث عمن هو دونه أو مثله، أكثر حديثه عن الصحابة رضي الله عنهم»[10]

دا ددوى تعديل او توثيق او د امامت شان سره متعلق يو څو اقوال دى. حالانكه ددوى د معدلينو او ثناخوانو فهرست كافي اوږد دې. ددې توثيقاتو او تعديلاتو سره په دوى باندې لويو لويو اكابرو حضراتو كلام هم كړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله په تهذيب التهذيب او هدى السارى كښې دغه ټول جروح رانقل كړى دى. او دهغې جواب ئې وركړې دې او ثابته كړې ئې ده. چه په دوى باندې هيڅ يوه جرح ثابت او منقول نه ده.

**په حضرت عكرمه باندې درې الزامات او دهغې تحقيق او ترديد** دحافظ ابن حجر رحمه الله د بيان مطابق چه په دوى باندې كوم كلام شوې دې. هغه درې قسمه الزامات دى:

① يو دا چه دوى لره بعضو حضراتو مثلاً حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دروغژن ګرځولې دې لكه چه ددوى نه منقول دى. چه دوى خپل مولى نافع ته خطاب كولو. او وې فرمائيل:

---

[1] تهذيب الكمال(۲۰\۲۷۲) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[2] تهذيب الكمال(۲۰\۲۷۴) وسير أعلام النبلاء(۵\۱۸) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[3] تهذيب الكمال(۲۰\۲۸۹) وسير أعلام النبلاء(۵\۳۱) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[4] تهذيب الكمال(۲۰\۲۸۸) وسير أعلام النبلاء(۵\۳۱) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[5] تهذيب الكمال(۲۰\۲۸۹) وسير أعلام النبلاء(۵\۳۱) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[6] المصادر السابق)_

[7] تهذيب الكمال(۲۰\۲۸۹) وسير أعلام النبلاء(۵\۳۲) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[8] هدى السارى(ص۴۲۹)_

[9] تهذيب الكمال(۲۰\۲۸۹) وسير أعلام النبلاء(۵\۳۱) وهدى السارى(ص۴۲۹)_

[10] هدي السارى(ص۴۲۹)_

«لاتكذب على كما كذب عكرمة على عبدالله بن عباس»(١)
دغه شان دا خبره د سعيد بن المسيب رحمه الله نه هم نقل کولې شی.چه دوی خپل مولی ،،برد،، ته هم دا خبره کړې ده (٢) دغه شان على بن عبدالله بن عباس نه چه کله تپوس اوکړې شو.چه عکرمه ولې تړلې شوې دې؟ نو دوی جواب ورکړو.«انه يكذب على أبي»(٣) دغه شان يو څو اقوال نور هم منقول دی.چه په هغې کښې عکرمه طرف ته د کذب نسبت شوې دې.(٤)
حافظ ابن حجر رحمه الله ددې ټولو اقوالو تفنيد (اوتحقيق) کړې دې.او ثابته کړې ئې ده.چه (دا قول) د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او د نورو حضراتو نه اول خو صحيح سند سره ثابت نه دې. دويمه دا چه ،،کذب،، کښې هم ډير احتمالات ممکن دی.مثلاً دا چه د ،،کذب،، معنی دلته دروغ نه دی.بلکه ،،خطاء،، ده.چه دا د اهل حجاز په نيز مستعمل دې.(٥)
پخپله عکرمه رحمه الله فرمائی.«أرأيت هؤلاء الذين يكذبوني من خلفي أفلا يكذبوني في وجهي»(٦) او حضرت عکرمه رحمه الله يوځل ابو امامه بن سهل بن حنيف ته اووئيل:«يا أبا أمامة، أذكرك الله، هل سمعت ابن عباس يقول: ماحدثكم عني عكرمة فصدقوه، فإنه لم يكذب علي؟ فقال أبو أمامة: نعم»(٧)
حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی:«فأما قولهم: كذاب، فليس مما يثبت به جرح حتى يتبين ما قاله»(٨)
② دويم الزام په دوی باندې دا دې.چه ددوی عقيده د خارجيانو پشان وه.لکه چه په دوی باندې امام مالك كوم نكير كړې دې.هغه هم په دې وجه دې.چه امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی. «والذي أنكر عليه مالك إنما هو بسبب رأيه»(٩)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ددوی نه قطعی طور باندې د خارجيانو عقيده ثابت نه ده. البته ممکن ده.چه په بعضو مسئلو کښې ئې موافقت وی.په دې وجه دوی طرف ته د خارجی کيدو نسبت کړې شوې وی.(١٠) حافظ عجلی رحمه الله فرمائی.«مكي تابعي ثقة، بريء مما

---

(١) نقله الذهبي في ميزان الإعتدال ثم ردّه. أنظر(٣\٩٧) رقم(٥٧١٦)_
(٢) ميزان الإعتدال(٣\٩٦) و تهذيب الكمال(٢٠\٢٨٠)_
(٣) تهذيب الكمال(٢٠\٢٨٠)_
(٤) هدى السارى(ص٤٢٥، ٤٢٦)_
(٥) هدى السارى(ص٤٢٧، ٤٢٨)_
(٦) هدى السارى(ص٤٢٨)_
(٧) تهذيب الكمال(٢٠\٢٧١)_
(٨) التمهيد(٢\٣٤)_
(٩) تهذيب الكمال(٢٠\٢٨٩)_
(١٠) هدى السارى(ص٤٢٨)_

یرمیه به الناس من الحروریة»(۱)

③ دریم الزام دا دې چه ده به د امراء ( حاکمانو) نه جوائز او هدایا قبلولې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه دا څه داسې جرح نه ده چه ددوی روایتونه رد کړې شي. هغه فرمائی.

«وهذا الزهری قد کان فی ذالك أشهر من عکرمة، ومع ذالك فلم یترك أحد الروایة عنه بسبب ذالك»(۲)

معلومه شوه چه په دوی باندې کوم کلام شوې دې د هغې هیڅ اعتبار نشته. هم دا وجه ده چه د اصول سته د اصحابو نه د امام مسلم رحمه الله نه سوا ټولو ددوی احادیث د احتجاج او استدلال په طور قبول کړی دی. او امام مسلم رحمه الله هم ددوی حدیثونه قبول کړی دی. خو مقروناً ئې ذکر کړی دی.(۳)

په آخر کښې د عکرمه رحمه الله په دفاع کښې یو څو جامع اقوال نقل کولې شي

① ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی: «عکرمة مولی ابن عباس: من جلة العلماء، لا یقدح فیه کلام من تکلم فیه، لأنه لا حجة مع أحد تکلم فیه»(۴)

② محمد بن نصر مروزی رحمه الله فرمائی. «اجمع عامة أهل العلم علی الإحتجاج بحدیث عکرمة، واتفق علی ذالك رؤساء أهل العلم للحدیث من أهل عصرنا، منهم أحمد بن حنبل وإسحاق بن راهویه، وأبوثور، ویحی بن معین.....»(۵)

③ امام ابن جریر طبری رحمه الله فرمائی. «ولم یکن أحد یدفع عکرمة عن التقدم فی العلم بالفقه والقرآن وتأویله، وکثرة الروایة للآثار، وأنه کان عالماً بمولاه، وفی تقریظ جلة أصحاب ابن عباس إیاه و وصفهم له بالتقدم فی العلم، وأمرهم الناس بالأخذ عنه ما بشهادة بعضهم تثبت عدالة الإنسان، ویستحق جواز الشهادة، ومن ثبتت عدالته، لم یقبل فیه الجرح، و ما تسقط العدالة بالظن، و بقول فلان، لمولاه: لا تکذب علی، وما أشبهه، من القول الذی له وجوه، وتصاریف ومعان، غیر الذی وجهه إلیه أهل الغباوة، ومن لا علم له لتصاریف کلام العرب»(۶) او هم دوی فرمائی. «لوکان کل من ادعی علیه مذهب من المذاهب الردیئة ثبت علیه ما ادعی به و سقطت عدالته و بطلت شهادته بذالك: للزم ترك أکثر محدثی الأمصار، لأنه ما منهم إلا وقد نسبه قوم إلی ما یرغب به عنه»(۷)

---

(۱) تهذیب الکمال(۲۰\۲۸۹)_
(۲) هدی الساری(ص۴۲۸)_
(۳) هدی الساری(ص۴۲۵)_
(۴) التمهید(۲\۲۷)_
(۵) التمهید(۲\۳۳) وهدی الساری(ص۴۲۹)_
(۶) هدی الساری(ص۴۲۹)_
(۷) هدی الساری(ص۴۲۸)_

④ ابن حبان رحمه الله فرمائي: «كان عكرمة من علماء الناس في زمانه بالقرآن والفقه.... ولا يجب على من شم رائحة العلم أن يعرج على قول يزيد بن أبي زياد، حيث يقول: دخلت على علي بن عبد الله بن عباس، وعكرمة مقيد على باب الحش، قلت: من هذا؟ قال: إن هذا يكذب على أبي، ومن أمحل المحال أن يجرح العدل بكلام المجروح، لأن يزيد بن أبي زياد ليس ممن يحتج بحديثه، ولا بشيء يقوله أيوب بن رزين، من نافع قال: سمعت ابن عمر يقول: يا نافع، لا تكذب علي كما يكذب عكرمة على ابن عباس، قلت: القائل ابن حبان، أما عكرمة فحمل أهل العلم عنه الحديث في الأقاليم كلها، وما أعلم أحداً ذمه بشيء إلا بدعابة كانت فيه»[1]

⑤ ابن عدى رحمه الله فرمائي: «وعكرمة مولى ابن عباس لم أخرج ههنا من حديثه شيئاً، لأن الثقات إذا رووا عنه، فهو مستقيم الحديث، إلا أن يروى عنه ضعيف، فيكون قد أتى من قبل ضعيف لا من قبله، ولم يمتنع الأئمة من الرواية عنه، وأصحاب الصحاح أدخلوا أحاديثه إذا روى عنه ثقة في صحاحهم، وهو أشهر من أن يحتاج أن أخرج حديثاً من حديثه، وهو لا بأس به»[2]

په ۱۰۴هـ، يا ۱۰۵هـ، يا ۱۰۶هـ ،يا ۱۰۷هـ كنبي ددوى وفات اوشو.[3] ،، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

⑤ ابن عباس رضي الله عنهما: د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات د بدءالوحى د خلورم حديث. او په كتاب الايمان كنبي د «باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې تيرشوى دى.[4]

**قوله** قَالَ ضَمَّنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم زه خپل خان سره اولگولم

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په مناقبو كنبې هم دا حديث ذكركړې شوې دې.په هغې كنبې اضافه ده.«قَالَ ضَمَّنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إلى صدره»[5]چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم زه خپلې سينې مباركې سره اولگولم.حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دغه وخت بالغ شوې خو نه وو.البته صبى مميز (او پوهه ماشوم) وو.ددې نه معلومه شوه.چه د شفقت په طور رشته دار ماشومان سينې سره لگول جائز دى.[6]

---

[1] الثقات لابن حبان(۲۲۹/۵، ۲۳۰)_
[2] الكامل لابن عدى(۲۷۱/۵، ۲۷۲)_
[3] تهذيب الكمال(۲۹۱/۲۰، ۲۹۲)_
[4] كشفا البارى(۴۳۵/۱) و(۲۰۵/۲)_
[5] صحيح البخارى(۵۳۱/۱) كتاب فضائل أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم (المناقب) باب ذكر ابن عباس رضى الله عنهما رقم(۳۷۵۶)_
[6] فتح البارى(۱۷۰/۱)_

**قوله** وَقَالَ اللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ: او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ای الله! ده ته د کتاب علم ورکړې.

**د علومو منتقل کولو یو صورت** نبی کریم ﷺ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما خپلې سینې مبارکې سره اولګولو او دا عظیمه د عا ئې اوکړله.چه ای الله! ده ته د کتاب علم ورکړې.په کتاب کښې دننه ټول دینی امور او احکام شرعیه راځی.ددې عمل نه دا معلومه شوه.چه د احکام شرعیه او د علوم دینیه سرچشمه د نبی ﷺ سینه مبارکه ده.چاته هم چه دا دولت ملاوشی.د نبی کریم ﷺ د سینې نه به ملاویږی.دچا سینه چه څومره هم د نبی کریم ﷺ سره اتصال او نیزدیکت لری.هغومره به هغه باندې د علومو فیضان کیږی.او نبی کریم ﷺ سره د اتصال او قرب دارومدار په اتباع سنت، د الله تعالی په احکامو پوره کولو باندې دې

دلته ئې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما خپلې سینې مبارکې سره ملاوکړو.او افاضه د علومو ئې اوفرمائیله.او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په طلب باندې ئې یو څیز راوبنکلو.دهغه په څادر کښې ئې کیخودو.او ارشاد ئې اوفرمائیلو.چه دا خپلې سینې سره اولګوه.چه په دې سره د حضرت ابوهریره رضی الله عنه سینه د نبوی علومو خزانه جوړه شوه.([1])

د علومو منتقل کولو هم دا طریقه د الله ﷻ په نیابت کښې حضرت جبرئیل علیه السلام د نبی کریم ﷺ سره اختیار کړې وه.([2]) د امت په صالحینو کښې د بعضو اهل الله عمل هم داسې قسمه پاتې شوې دې.

**په یو روایت کښې د،،علمه الکتاب،،په ځائې ،،علمه الحکمه،،وارد دې** ددې روایت په یو طریق کښې د،،الکتاب،، په ځائې د،،الحکمة،، ذکر راغلې دې.([3]) اګرچه د حکمت په تفسیر کښې عالمانو ډیر اقوال ذکر کړی دی.مثلاً قرآن، عمل بالقرآن، سنت، د قول صحیح والې، خشیت، فهم عن الله، عقل، ما یشهد العقل بصحته، نور یفرق بین الالهام والوسواس، سرعة الجواب مع الاصابة، وغیره خو په ظاهره دلته کښې ،،کتاب الله،، او ،،فهم د قرآن مراد دې.([4]) والله اعلم.

**د نبی کریم ﷺ د دعا سبب** نبی کریم ﷺ چه په حضرت ابن عباس رضی الله عنهما باندې دا مخصوص شفقت اوکړو.او خاص دعا ئې اوکړله.ددې سبب څه وو؟

په احادیثو کښې دوه واقعې ملاویږی.د یو تعلق خدمت سره دې.او د دویمې تعلق ادب او احترام سره دې.دواړه واقعات د دعا سبب کیدې شی:① یوه واقعه خو دا ده.چه نبی کریم ﷺ د قضاءحاجت د ضرورت دپاره تشریف یوړو.نو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د آرام په

---

[1] انظر الإصابة(٤\٢٠٧)_

[2] كما فی حديث عائشة (ما نقله) البخاری فی صحيحه(١\٢، ٣) كتاب بدءالوحی. الحديث الثالث. رقم(٣): فأخذنی فغطنی حتی بلغ منی الجهد. وقد فعل ذالک ثلاثاً.)_

[3] صحيح البخاری(١\٥٣١) كتاب المناقب. باب ذكر ابن عباس رضی الله عنهما رقم(٣٧٥٦)_

[4] فتح الباری(١\١٧٠)_

غرض سره لوځې د اوبو ډك كيخودو نبى كريم ﷺ چه تشريف راوړو.تپوس ئې اوكړو چه اوبه چا ايخودې دى؟ معلومه شوه چه ابن عباس رضي الله عنه ايخودې دى.نو نبى كريم ﷺ خوشحاله شو او دعا ئې اوكړله (۱)

**د نبى كريم ﷺ د دعا سبب** په دې عمل كښې د اصل دعا سبب دا خبره ده.چه كله نبى كريم ﷺ د قضاء حاجت دپاره بيت الخلاء ته تشريف يوړو.نو حضرت ابن عباس رضي الله عنهما سوچ اوكړو چه هركله زه دلته حاضر يم نو ما له څه خدمت كول پكار دى.په دې سلسله كښې درې صورتونه راوړاندې شو ① اوبه راخستل. او بيت الخلاء كښې حاضريدل.② د بيت الخلاء دروازې نه بهر نبى كريم ﷺ ته نيزدې اوبه ايخودل.③ يا د هغوى په غوښتلو باندې اوبه حاضرول نو په دې كښې ړومبې صورت د بې پردګۍ وو.په دريم صورت كښې د حكم په تعميل كښې د تاخير خطره وه البته په دويم صورت كښې د ستر (او پردې) رعايت هم وو.او فورى طور باندې د خلاء نه بهر ته تشريف راوړلو نه پس. اوبو سره استنجا كښې د هغوى اعانت هم كيدو.نو هم دا ئې اختيار كړو.په حقيقت كښې دا ددوى د ذكاوت او هوښيارتيا خبره وه.د ..جزاء من جنس العمل.. په اصول باندې نبى كريم ﷺ د ،،**اللهم علمه الكتاب**،، دعا اوفرمائيله.يعنى الله تعالى دې دوى ته نور هم زيات فهم سليم او هوښيار توب وركړى.(۲)

ددې نه معلومه شوه.چه د بزرګانو خدمت او ددې په صله كښې د دعاګانو حصول. د علم دپاره معاون دې.او په دې كښې مدد وركوى.

غالباً دا واقعه هغه وخت راپيښه شوه.كله چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه يوه شپه نبى كريم ﷺ سره د خپلې ترور حضرت ميمونه رضي الله عنها په نمبر كښې تيره كړې وه.چه د نبى كريم ﷺ د شپې معمولات اوګورى.چه د نبى كريم ﷺ د شپې عبادت څنګه دې؟ څومره ركعتونه ادا كوى.كوم وخت دې؟ وغيره وغيره.(۳)

② دويمه واقعه په مسند احمد كښې نقل ده.چه نبى كريم ﷺ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د تهجدو په مانځه كښې خپل خان سره برابر اودرولو حضرت ابن عباس رضي الله عنه شاته شو.او اودريدو.نبى كريم ﷺ بيا برابر كښې اودرولو.هغه بيا شاته شو.نبى كريم ﷺ د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چه هركله زه تا وړاندې كوم نو ته ولې شاته كيږې؟ حضرت ابن

---

(۱) عن ابن عباس أن النبى ﷺ دخل الخلاء. فوضعت له وضوءاً. قال: من وضع هذا؟ فأخبر. فقال: اللهم فقهه فى الدين. صحيح البخارى(۲۶\۱) كتاب الوضوء. باب وضع الماء عند الخلاء. رقم(۱۴۳)_

(۲) ايضاح البخارى(۷۱\۵)_

(۳) أنظر صحيح البخارى(۲۲\۱) كتاب العلم. باب السمر فى العلم. رقم(۱۱۷)..
دلته دا شبه اونكړې شى چه په داسې كمره كښې چه هلته كښې د دوو سرو خانې هم مشكل سره ملاويږى د يو دريم انسان د كور د معاملاتو جائزه اخستلو دپاره د شپې په وخت قيام كول. څنګه صحيح كيدې شى؟ وجه دا ده چه په يو روايت كښې دا تصريح موجود ده.چه حضرت ميمونه رضى الله عنها به دې موده كښې په حالت د حيض كښې وه.فتح البارى(۴۸۲\۲) كتاب الوتر._

عباس ﷺ جواب وركړو چه ((أوينبغي لأحد أن يصلي حذاءك وأنت رسول الله ﷺ؟)) (١) آيا د يوكس دپاره دا مناسب ده.چه ستاسو يعني د الله د رسول ﷺ په برابر كښې اودريږي.او مونځ اوكړي؟ په دې باندې نبى كريم ﷺ د علم او فهم د زياتوالى دعا وركړله.
حاصل دا چه د حديث نه دا خبره ثابته شوه.چه د فهم او ذكاوت (هوښيارتوب) او محنت نه علاوه د بزرګانو دعاګانې هم دعلم د حصول دپاره ډيرې زياتې ضرورى دى.او ددې دعاګانو د حاصلولو ذريعه دا ده.چه د بزرګانو خدمت اوكړې شى.او دهغوى د ادب او احترام پوره لحاظ اوكړې شى.لكه څنګه چه حضرت ابن عباس ﷺ د رسول اكرم ﷺ نه د ,,علم كتاب.، دعا حاصل كړله.او په صحابه كرامو كښې ئې علمى اعتبار سره يو امتيازى مقام حاصل كړو.په تفسير د قرآن كښې خو د حضرت ابن عباس ﷺ مقام واضح دې. په فقه د دين كښې چه كوم مقام دوى ته ملاو شو.هغه هم د چا نه پټ نه دې.نن خاص طور باندې د فقه شافعى مدار د حضرت ابن عباس ﷺ په مروياتو او اجتهاداتو باندې دې.
په حديث باب او ترجمة الباب كښې انطباق بالكل واضح دې.والله اعلم.

## ١٨- ((بَاب: مَتَى يَصِحُّ سَمَاعُ الصَّغِيرِ))

**تيرشوى باب سره ربط او مناسبت:** په تيرشوى باب كښې د حضرت ابن عباس ﷺ په حق كښې د نبى كريم ﷺ دعا مذكور وه.دغه وخت حضرت ابن عباس ﷺ صبى مميز (پوهه ماشوم) وو.او په دې باب كښې د سماع په سلسله كښې د هوښيار ماشوم حال مذكور دې.(٢) داسې هم وئيلې شى.چه په تيرشوى باب كښې حضرت ابن عباس ﷺ د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو.او دعاګانې ئې حاصلې كړې.او د بالغ كيدو نه پس ئې دغه دعاګانې نقل كړلې.او د هغوى په نقل باندې پوره پوره اعتماد اوكړې شو.حضرت ابن عباس ﷺ دغه وخت صغير وو.په دې وجه ئې ددې نه فوراً پس د((مَتَى يَصِحُّ سَمَاعُ الصَّغِيرِ)) باب قائم كړو.(٣)
**د ترجمة الباب مقصد:** دټولو نه وړاندې دلته كښې په دې پوهه شئ.چه وړاندې تاسو وئيلى دى.چه يو تحمل د حديث دې.او يو اداء د حديث ده.تحمل د حديث سماع ته وائى.او اداء د حديث.,روايت كولو اواسماع دحديث ته وائى.دلته د ,,سماع.، نه هم دا ,,تحمل.، مراد دې.
علامه سندهى ﷺ فرمائى.چه امام بخارى ﷺ دلته دوه جزئى واقعات ذكركړى دى.ددې د مجموعى نه معلوميږى.چه د تحمل د صحت او سماع دپاره هيڅ حد معين نه دې.بلكه مطلق سن تميز . تعقل سن صحت سماع، او تحمل دې.(٤)

---

(١) مسند احمد(٣٣٠/١)_
(٢) عمدة القارى(٦٧/٢، ٦٨)_
(٣) ايضاح البخارى(٧٢/٥، ٧٣)_
(٤) حاشية السندى على صحيح البخارى(٤٦/١)_

د حضرت شيخ الهند رحمه الله هم دا رائې ده.(۱)
حضرت شاه ولی الله رحمه الله هم دې ته نيزدې خبره کړې ده.هغه فرمائی.چه په دې کښې څو هيڅ اختلاف نشته.چه اداء حديث دپاره عاقل او بالغ کيدل ضروری دی.البته دتحمل دپاره بالغ کيدل ضروری نه دی.کوم صبی چه قريب البلوغ وی.او د خير او شر په مينځ کښې فرق کولې شی.د هغه تحمل صحيح دې.د مؤلف مقصد ددې اثبات دې.(۲)
**د تحمل حديث په عمر کښې د علماو اختلاف او د هغوی دلائل** اوس د حضرت شاه ولی الله رحمه الله په حوالې سره دا خبره تيره شوه.چه د اداء حديث دپاره دعاقل او بالغ کيدو شرط متفق عليه دې.په دې کښې د هيڅ چا اختلاف نشته.البته بعضې حضرات د بلوغ نه وړاندې د تحمل حديث نه هم منع کوی.او وائی.چه د بالغ کيدو نه وړاندې دتحمل حديث هيڅ اعتبار نشته.(۳) خو د جمهورو په نيز د بلوغ نه وړاندې تحمل صحيح دې.(۴)
بيا ددې عمر په تحديد کښې اختلاف دې.کوم چه د سماع مقبول کيدو دپاره ضروری يا مستحب دې.بعض حضرات، خاص طور باندې اهل کوفه څو ددې خبرې قائل دی.چه د شلو کالو نه وړاندې سماع او تحمل حديث کول پکار نه دی.(۵) امام ابو عبدالله زبيری رحمه الله دا عمر مستحب گرځوی.(۶) موسی بن هارون رحمه الله فرمائی.«أهل البصرة يكتبون لعشر سنين، وأهل الكوفة لعشرين، وأهل الشام لثلاثين»(۷) امام يحي بن معين رحمه الله فرمائی.چه عمر د تحمل حديث پنځلس کاله دې.(۸) امام يزيد بن هارون رحمه الله ديارلس کاله حد خودلې دې.(۹)
موسی بن هارون حمال رحمه الله فرمائی.چه کله ماشوم په غوا او نورو خاروو کښې فرق اوکړې شی.نو دا عمر د تحمل دې.(۱۰) قاضی عياض رحمه الله فرمائی.«وقد حدد أهل الصنعة فی ذالك أن أقله سن محمود بن الربيع»(۱۱)او د بخاری په روايت کښې دده پنځه کاله کيدل مذکور دی.نو گويا عمر د تحمل پنځه کاله دی.

---

(۱) الأبواب والتراجم(ص۴۹)_
(۲) شرح تراجم أبواب البخاری( ص۱۵)_
(۳) وعليه ابو منصور محمد بن المنذر بن محمد المراكشي الفقيه الشافعي. انظر فتح المغيث للسخاوی(۲\۱۳۴)_
(۴) انظر علوم الحديث لإبن الصلاح(ص۱۲۸) النوع الرابع والعشرون، معرفة كيفية سماع الحديث وتحمله وصفة ضبطه.)_
(۵) علوم الحديث(ص۱۲۸، ۱۲۹)_
(۶) علوم الحديث(۱۲۸) وفتح المغيث للسخاوی(۲\۱۳۷) والكفاية(ص۵۵)_
(۷) الكفاية(ص۵۵)_
(۸) الكفاية(ص۶۳)_
(۹) المصدر السابق)_
(۱۰) الكفاية(ص۶۵)_
(۱۱) الإلماع(ص۵۸)_

حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائى.«التحديد بخمس هو الذى استقر عليه عمل أهل الحديث المتأخرين»[1] او هم دوى فرمائى چه كوم ماشوم د پنځو كالو يا ددې نه زيات وى.نو هغه دپاره د ،،سمع،، لفظ استعماليږى.او كوم چه ددې نه وړوكې وى.هغه دپاره د ،،سمع،، لفظ نه استعماليږى.بلكه د ،،حضر،،يا د ،،احضر،، لفظ استعماليږى.[2]

حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائى.چه د تحديد كولو په ځائې دا اوكتلې شى.چه دا ماشوم خطاب باندې پوهيږى.او جواب وركولې شى.نوكوم ماشوم چه هغه د پنځو كالو هم نه وى.خو د خطاب او جواب صلاحيت لرى.نو د هغه سماع صحيح ده.او دا عين ممكن ده.چه يوكس د پنځو كالونه زيات وى.خو د خطاب او جواب اهليت نه لرى.نو د داسې كس د سماع اعتبار نشته.[3] دا امام احمد بن حنبل رحمه الله په ،،عقل او ضبط،، سره تعبير كړى دې.چه كوم ماشوم هوښيار شى.او د ضبط (حفظ) صلاحيت لرى.د هغه سماع صحيح ده.[4]

جمهور چه د بلوغ قيد نه لګوى.او نه د يو عمر تحديد كوى.د هغوى دليل هغه روايات دى.كوم چه د صغار صحابه مثلاً حضرات حسنين، عبدالله بن جعفر بن ابى طالب، عبدالله بن الزبير، عبدالله بن عباس، نعمان بن بشير، سائب بن يزيد، مسور بن مخرمه، انس بن مالك، مسلمه بن مخلد، عمر بن ابى سلمه، يوسف بن عبدالله بن سلام، ابو الطفيل او حضرت عائشه رضي الله عنها وغيره نه نقل دى.محدثينو ددوى په رواياتو كښې دا تفريق چرته هم نه دې كړې.چه دا روايات د بلوغ نه وړاندې دى.او دا روايات د بلوغ نه د روستو دى.[5]

امام ابن معين رحمه الله چه د پنځلسو كالو كوم تحديد كړې دې.د هغوى استدلال د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د واقعې نه دې.چه نبى كريم ﷺ هغوى لره په غزوهٔ بدر كښې د شركت نه منع كړې وو.او بيا كله چه د غزوهٔ احد موقعه راغله.نو په هغې كښې ئې د شركت اجازت وركړې وو.ځكه چه دغه وخت هغه د پنځلسو كالو شوې وو.[6]

خو امام احمد رحمه الله فرمائى.چه د پنځلسو كالو قيد قتال دپاره خو بالكل صحيح دې.ځكه چه په دې كښې د جسمانى قوت، او دجنګى مهارت ضرورت وى.او په تحمل د حديث كښې خو د عقل او ضبط ضرورت وى.كه په يوكس كښې عقل او ضبط موجود وى.نو هغه دپاره د سماع حديث اجازت دې.او دهغه سماع معتبر ده.[7]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه ابن معين رحمه الله كوم د پنځلسو كالو تحديد كړې دې.په هغې

---

[1] علوم الحديث(ص ۱۳۰)_
[2] المصدر السابق)_
[3] أنظر علوم الحديث لابن الصلاح(ص ۱۳۰)_
[4] الكفاية(ص ۶۳)_
[5] فتح المغيث للسخاوى(۲\۱۳۵، ۱۳۶)_
[6] فتح البارى(۱\۱۷۱) والكفاية(ص ۶۲)_
[7] فتح البارى((۱\۱۷۱) والكفاية(ص ۶۳)_

كښې دوه احتماله كيدې شى:

① يو دا چه هغه د پنځلسو كالو عمر د ابتداء طلب دپاره مناسب خيال كوى.چه په پنځلسو كالو كښې بچى ته طلب د حديثو كول پكار دى.دا معنى صحيح كيدې شى.

② دويم احتمال هغه دې.كوم چه متبادر(او ښكاره) دى.چه هغه د پنځلسو كالو عمر لازمى گرځوى.او وائى.چه كوم ماشوم د پنځلسو كالو نه وړاندې كوم يو حديث واوريدو.او هغه ئې ياد كړو.د هغې اعتبار نشته.نو دا معنى قابل قبول نه ده.(١)

حافظ رحمه الله فرمائى.چه ابن عبدالبر رحمه الله په دې خبره باندې د اهل علمو اتفاق نقل كړې دې.چه په ماشوم والى كښې اوريدلې شوې روايت،كه روستو اداكړې شى.نو هغه مقبول دى.په دې وجه د ابن معين رحمه الله د قول رومبئ معنى دلته مراد ده.دويمه معنى مراد نه ده.(٢) والله اعلم.

## حديث باب

٧٦-((حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ (٣) قَالَ أَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلَى حِمَارٍ أَتَانٍ وَأَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ الاِحْتِلاَمَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِمِنًى إِلَى غَيْرِ جِدَارٍ فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ وَأَرْسَلْتُ الأَتَانَ تَرْتَعُ فَدَخَلْتُ فِي الصَّفِّ فَلَمْ يُنْكِرْ ذَلِكَ عَلَيَّ)) [٣٧١، ٨٢٣، ١٧٥٧، ٤١٥٠]

## رجال الحديث

① اسماعيل بن ابى اويس رحمه الله: ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال» لاندې تيرشوى دى.(٤)

---

(١) فتح البارى(١\١٧١)_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) قوله:..عن عبدالله بن عباس...:الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى (١\٧١) كتاب الصلاة. فاتحة أبواب سترة المصلى. باب سترة الإمام سترة من خلفه. رقم(٤٩٣) و(١\١١٩) كتاب الأذان. باب وضوء الصبيان. ومتى يجب عليهم الغسل والطهور. وحضورهم الجمعة والعيدين والجنائز وصفوفهم. رقم(٨٦١) و(١\٢٥٠) كتاب جزاء الصيد.باب حج الصبيان. رقم(١٨٥٧) و(٢\٦٣٣) كتاب المغازى. باب حجة الوداع. رقم(٤٤١٢) ومسلم فى صحيحه. فى كتاب الصلاة. باب سترة المصلى....رقم(١١٢٤-١١٢٧) والنسائى فى سننه. فى كتاب القبلة. باب ذكر ما يقطع الصلاة وما لا يقطع إذا لم يكن بين يدى المصلى سترة. رقم(٧٥٥) وأبوداؤد فى سننه. فى كتاب الصلاة. باب من قال: الحمار لايقطع الصلاة.رقم(٧١٥-٧١٧) والترمذى فى جامعه. فى كتاب الصلاة. باب ماجاء لايقطع الصلاة شئ.رقم(٣٣٧)و ابن ماجه فى سننه. فى كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها. باب ما يقطع الصلاة. رقم(٩٤٧)_

(٤) كشف البارى(٢\١١٣)_

۲ مالك رحمه الله: دا مالك بن انس رحمه الله دې ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيرشوى دى.[1]

۳ ابن شهاب رحمه الله: دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دې.ددوى مختصر حالات د بدءالوحى د دريم حديث لاندې تير شوى دى.[2]

۴ عبيدالله بن عبدالله بن عتبه رحمه الله: دا دمدينې منورې د فقهاء سبعه نه يو مشهور فقيه عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود هذلى مدنى رحمه الله دې.ابوعبدالله ددوى كنيت دې.[3]

دوى دحضرت عائشه، حضرت ابوهريره، فاطمه بنت قيس، ابو واقد ليثى، زيد بن خالد جهنى، حضرت ابن عباس ( چه دوى سره ئې اوږد صحبت اختيار كړې دې) حضرت عبدالله بن عمر، حضرت ابوسعيد، حضرت نعمان بن بشير، حضرت ميمونه، حضرت ام سلمه رضي الله عنهم نه روايت كوى.

ددوى نه ددوى رور عون بن عبدالله بن عتبه، ضمره بن سعيد مازنى، عراك بن مالك، موسى بن ابى عائشه، ابوالزناد، صالح بن كيسان، خصيف جزرى، او سالم ابو النضر رحمهم الله وغيره روايت كوى.[4]

واقدى رحمه الله فرمائى.«....وكان ثقة فقيها كثيرالحديث والعلم شاعرا»[5]

امام عجلى رحمه الله فرمائى.«....تابعى، ثقة، رجل صالح، جامع للعلم، وهومعلم عمربن عبدالعزيز»[6]

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائى.«ثقة مامون امام»[7]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ،،كتاب الثقات،، كښې ذكركړې دې.او فرمائيلى ئې دى: «من سادات التابعين»[8]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.«....كان من بحور العلم»[9]

---

[1] كشف البارى(۲\۸۰)_
[2] كشف البارى(۱\۳۲۶)_
[3] تهذيب الكمال(۱۹\۷۳) وسير أعلام النبلاء( ۴\۴۷۵)_
[4] دشيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(۱۹\۷۳، ۷۴) وسير أعلام النبلاء( ۴\۴۷۵، ۴۷۶)
[5] الطبقات لابن سعد( ۵\۲۵۰)_
[6] تهذيب الكمال(۱۹\۷۵) وسير أعلام النبلاء( ۴\۴۷۶)_
[7] المصادر السابق)_
[8] الثقات لابن حبان((۵\۶۳)_
[9] الكاشف(۱\۶۸۲) رقم(۳۵۶۲)_

امام زهری رحمه الله فرمائی: «.... امام عبيدالله بن عبدالله، فكنت إذا لقيته أتفجر منه بحراً و كنت أظن أن قد علمت العلم، فلما جالسته رأيت أني كنت في شعاب من العلم» (١)

امام طبری رحمه الله فرمائی: «كان مقدماً في العلم والمعرفة بالأحكام و الحلال و الحرام وكان مع ذالك شاعراً مجيداً» (٢)

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی: «أحد الفقهاء العشرة ثم السبعة الذين تدور عليهم الفتوى، وكان عالماً فاضلاً مقدماً في الفقه، تقياً شاعراً محسناً لم يكن بعد الصحابة إلى يومنا فيما علمت فقيه أشعر منه ولا شاعر أفقه منه» (٣) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «ثقة فقيه ثبت» (٤)

**يوه د عبرت واقعه** اصحابو د سير ليكلى دى.چه دوى ته به څنګه نور حضرات اهل علم و فضل، كسب د فيض دپاره حاضريدل.دغه شان به حضرت على بن الحسين زين العابدين رحمه الله هم راتلو.هغه به كيناستلو.او عبيدالله بن عبدالله به په مانځه كښې مشغوليدو.او ددوى عادت وو.چه كله به په مانځه كښې مشغول شو.نو بيا به ئې هيڅ چا طرف ته توجه نه كوله.يو كس دوى ته اووئيل: «يأتيك ابن بنت رسول الله ﷺ فتحبسه هذا الحبس؟» نو دوى اوفرمائيل: «اللهم غفراً، لابد لمن طلب هذا الشأن أن يعنى» يعنى الله ﷻ دې ما معاف كړى.خو حقيقت دا دې.چه څوك هم علم پسې اولګى.هغه په مشقت كښې ضرور پريوځى.(٥)

ددوى وفات په ٩٣ھ يا ٩٥ھ يا ٩٨ھ يا ٩٩ھ كښې اوشو.(٦)، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،_

⑤ عبدالله بن عباس رضي الله عنهما: د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات د بدء الوحى د څلورم حديث لاندې (٧) او په كتاب الايمان كښې د «باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې تيرشوى دى.(٨)

**قوله**: قَالَ أَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلَى حِمَارٍ أَتَانٍ: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى.چه زه په يوې خرې باندې سور راغلم.

---

(١) تعليقات تهذيب الكمال(١٩\٧٦) نقلاً عن تاريخ أبي زرعة الدمشقي(٥٢١)_

(٢) تهذيب التهذيب(٧\٢٤)_

(٣) المصدر السابق)_

(٤) تقريب التهذيب(ص٣٧٢) رقم(٤٣٠٩)_

(٥) سير أعلام النبلاء(٤\٣٨٨) ترجمة على بن الحسن زين العابدين. و(٤\٤٧٨) ترجمة عبيدالله بن عبدالله بن عتبة بن مسعود.)_

(٦) تهذيب الكمال(١٩\٧٦)_

(٧) كشف البارى(١\٤٣٥)_

(٨) كشف البارى(٢\٢٠٥)_

د ،،حمار اتان،، تحقيق د ،،حمار،، اطلاق په جنس باندې كيږي.كه مذكر وي اوكه مؤنث وي (۱) د ،،أتان،، اطلاق ،،أنثى الحمار،، باندې كيږي.(۲) ،،حمار أتان،، دواړه مجرد دي.،،أتان،، ياخو ،،حمار،، نه بدل دې.يا ددې صفت دې.(۳)

بعضو حضراتو دا اضافت سره هم ونيلې دې.(۴) خو په دې باندې اشكال دا دې.چه په دې كښې ،،إضافة الشئ إلى نفسه،، راځي؟ ددې جواب دا كيدې شي.چه دا د كوفينود مسلك مطابق دې.چه هغوى دا واني.چه صرف د لفظ د اختلاف په صورت كښې هم اضافت صحيح دې.اگركه دواړه په يوه معنى كښې وي.(۵)

د ،،حمار،، نه پس ،،اتان،، راوړلو سره ئې دا اوښودل.چه دا حمار د ،،انثى،، دجنس خنې دې.،،حمارة،، بالتاء ئې اونه ونيل.علامه كرمانى رحمه الله فرمائي.چه ،،حمارة،، ئې ځكه اونه ونيل.چه كيدې شي.چه څوك احتمال پيدا كړي.او خيال اوكړي.چه دا تاء د وحدت ده.(۶)

خو علامه برماوى رحمه الله دا ردكړې دې.او ونيلي ئې دي.چه ،،حمار،، هغه اسم جنس نه دې.دكوم په واحد او جمع كښې چه د تاء په وجود او عدم وجود سره فرق كولې شي.بلكه ،،حمار،، اسم مفرد دې.(۷)

صحيح خبره دا ده.كومه چه علامه عيني رحمه الله ذكركړې ده.چه په اصل كښې د ،،حمارة،، اطلاق لكه څنګه چه د ،،انثى،، اتان دپاره كيږي.دغه شان د ،،فرس هجين،،(۸) دپاره هم كيږي.نو د ،،حمارة،، وئيلو په صورت كښې دا احتمال هم پيدا كيدو.چه دا ،،فرس هجين،، وي.حالانكه دا ،،اتان،، يعني د انثى د قبيل نه ،،حمار،، دې.(۹) بيا دا خبره هم ده.چه د ،،حمار،، اطلاق د ،،انثى الحمار،، دپاره شاذ هم دې.(۱۰)

**نكته:** ابن الاثير جزرى رحمه الله فرمائي.چه دلته د ،،حمار،، نه پس ،،اتان،، راوړلې شوې دې.

---

(۱) عمدة القارى(۲\۶۹)_
(۲) مختارالصحاح(ص ٤) وعمدة القارى(۲\۶۹)_
(۳) عمدة القارى(۲\۶۹) وفتح البارى(۱\۱۷۱)_
(۴) فتح البارى((۱\۱۷۱) وعمدة القارى(۲\۶۹)_
(۵) وشرط الكوفية في الجواز اختلاف اللفظ فقط من غير تاويل.... انظر جمع الجوامع وشرحه همع الهوامع (۲\۴۹) وانظر ايضاً الأشمونى مع حاشيته للصبيان(۲\۲۵۰)_
(۶) شرح الكرمانى(۲\۵۰)_
(۷) شرح القسطلانى(۱\۱۷۵)_
(۸) الهجين من الخيل: ما تلده برذونة من حصان عربى (يعنى مور ئې د عجمى نسل اسپه وي.او پلار ئې عربى النسل وي) انظر المعجم الوسيط(۲\۹۷۵)_
(۹) عمدة القارى(۲\۶۹)_
(۱۰) ذكره الجوهرى.انظر فتح البارى(۱\۱۷۱) وعمدة القارى(۲\۶۹)_

ددې نه دا خبره معلومېږي چه د انثی حمار مرور قاطع د صلاة نه دې.او هرکله چه د ..حمير انثی..مرور قاطع نه دې.نو انسان چه اشرف او اکمل دې.دده د انثی مرور به څنګه قاطع د صلاة کېدې شي؟[1]

ابن الاثير جزري رحمه الله دا خبره د يوې نکتې حيثيت خو لري.خو د نورو رواياتو معارض ده. نبکاره ده چه د رواياتو معارض دپاره قياس کافي نه دې.[2] بلکه ددې دپاره خو روايات پکاردي.کله چه روايت موجود وي.نو دهغې په تائيد کښې قياس پيش کولې شي.والله اعلم

**قوله** وَأَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ الِاحْتِلَامَ: په دغه ورځو کښې زه بلوغ ته نيزدې ووم.

**د نبی کريم ﷺ د وفات په وخت د ابن عباس رضي الله عنه عمر** د نبی کريم ﷺ د وفات په وخت د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څومره عمر وو؟ په دې کښې اختلاف دې.د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه يو روايت منقول دې.په هغې کښې دوی فرمائي.((توفي النبي ﷺ وأنا ابن عشر سنين))[3] دغه شان ددوی نه منقول دی.((جمعت المحكم في عهد رسول الله وقبض وأنا ابن عشر حجج))[4] او هم ددوی منقول په يو بل روايت کښې دی.((توفي رسول الله ﷺ وأنا ابن خمس عشرة سنة، وأنا ختين))[5]

او واقد او زبير بن بکار رحمهما الله فرمائي.چه د نبی کريم ﷺ د وفات په وخت د حضرت ابن عباس رضي الله عنه عمر ديارلس کاله وو.ددې وجه دا ده.چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه د هجرت نه درې کاله وړاندې په شعب ابی طالب کښې پيدا شوې وو.کوم وخت چه بنوهاشم سره قريشو مقاطعه کړې وه.دهجرت لس کاله اوددې نه وړاندې درې کاله، دا ټول ديارلس کاله شو.[6]

دغه شان مصعب الزبيری رحمه الله په نيز حضرت ابن عباس دغه وخت د څوارلسو کالو وو هم په دې باندې امام شافعي رحمه الله جزم کړې دې.[7] ديوقول مطابق دوی د شپاړسو کالو وو.[8]

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه يو روايت د ابو العاليه په طريق سره بيهقی نقل کړې دې.چه په هغې کښې دوی فرمائي.((قرأت المحكم على عهد رسول الله ﷺ وأنا ابن ثنتي عشرة))[9]

دغه شان دا ټول شپږ اقوال جوړيږي.① لس کاله، ② دولس کاله ③ ديارلس کاله، ④ څوارلس کاله، ⑤ پنځلس کاله. ⑥ شپاړس کاله.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه په دې

---

[1] النهاية لابن الأثير(۱\۷۱) مادة أتن.)_
[2] فتح الباري((۱\۱۷۱)_
[3] مسند احمد(۱\۲۵۳، ۲۸۷)_
[4] مسند احمد(۱\۳۳۷)_
[5] مسند ابی داؤد الطيالسی(ص۳۴۳) رقم(۲۶۴۰)_
[6] سير أعلام النبلاء(۳\۳۳۵، ۳۳۶)_
[7] فتح الباري(۹\۸۴) کتاب فضائل القرآن. باب تعليم الصبيان القرآن.)_
[8] المصدر السابق)_
[9] المصدر السابق)_

كښې د شپاړسو او دولسو كالو روايات سنداً ثابت نه دي.په باقي اقوالو كښې تطبيق كيدې شي.(١)

**راجح قول** خلاصه دا چه د اكثرو اهل سير او محققينو په نيز ددوى عمر د نبى كريم ﷺ د وفات په وخت دياړلس كاله وو.والله اعلم.

**قوله** وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِمِنًى إِلَى غَيْرِ جِدَارٍ: رسول الله ﷺ په منى كښې بغير د آړ (سترې) نه مونځ كولو.
دا د حجة الوداع واقعه ده.(٢)

د «الى غير جدار» مطلب د امام شافعي او دنورو ډيرو عالمانو رائې دا ده.چه د «إلى غير جدار» معنى «إلى غير سترة» ده.يعنى د هغوى مخې ته هيڅ ستره نه وه.(٣) ددې دوه قرينې دي:① عقلى قرينه، ② نقلى قرينه.

قرينه نقليه دا ده.چه بزار رحمه الله يو روايت نقل كړې دې.په هغې كښې دى «والنبى ﷺ يصلى المكتوبة ليس لشئ يستره»(٤) او عقلى قرينه دا ده.چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا بنودل غواړى. چه «مرور بين يدى المصلى» قاطع د مونځ نه دې.كه هلته ستره وې.نو د ابن عباس رضي الله عنه دا وينا «چه زه په حمار باندې سور د نبى كريم ﷺ په وړاندې تير شوم» ددې مقصد ته به مفيده نه وه.ځكه چه دا ونيلې كيدې شو.چه هلته مونځ قطع كول ځكه موجود نشو.چه نبى كريم ﷺ سترې طرف ته مونځ كولو.او «مرور بين المصلى والسترة» او نه موندې شو.
خو د امام بخاري، امام نووي او علامه عيني رحمه الله رائې دا ده.چه د «الى غيرجدار» معنى «إلى سترة غير جدار» ده.يعنى هلته ستره وه.خو دا ستره «جدار» نه وو.(٥) ځكه امام بخاري رحمه الله په دې حديث باندې په «ابواب السترة المصلى» كښې ترجمه منعقد كړې ده.«باب سترة الإمام سترة من خلفه»(٦) خو دلاتلوته په كتلوسره رومبۍ رائې راجح معلوميږى.والله اعلم.

---

(١) فتح البارى(ج...ص٨٤) كتاب فضائل القرآن، باب تعليم الصبيان القرآن. و(٩٠/١١) كتاب الإستئذان، باب الختان بعد الكبر ونتف الإبط.)_

(٢) والحق أن ذالک كان فى حجة الوداع. قاله الحافظ فى فتح البارى(٥٧٢/١) كتاب الصلاة، ابواب سترة المصلى، باب سترة الإمام سترة من خلفه.)_

(٣)ذكره البيهقى فى السنن الكبرى(٢٧٣/٢، ٢٧٧) كتاب الصلاة، باب من صلى إلى غيرسترة، وباب الدليل على أن مرورالحمار بين يديه لايفسد الصلاة، وانظر فتح البارى(١٧١/١)_

(٤)فتح البارى(١٧١/١)_

(٥)امام نووى رحمه الله د حديث باب د فوائدو لاندې ليكى: وفى هذا الحديث: أن صلاة الصبى صحيحة، وأن سترة الإمام سترة لمن خلفه...شرح النووى على صحيح مسلم(١٩٦/١) كتاب الصلاة، باب سترة المصلى. وانظر عمدة القارى(٢٧٦/٤) كتاب الصلاة، أبواب سترة المصلى، باب سترة الإمام سترة من خلفه.)

(٦)(ج١٧١/١)_

**قوله**: فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ: زه د يو صف په وړاندې تير شوم.
دلته ابهام دې او دكتاب الحج په روايت كښې د ..صف اول.. تصريح موجود ده.(١)

**قوله**: وَأَرْسَلْتُ الْأَتَانَ تَرْتَعُ فَدَخَلْتُ فِي الصَّفِّ فَلَمْ يُنْكِرْ ذَلِكَ عَلَيَّ: ما خره د څرلو دپاره پريخودله او پخپله صف كښې داخل شوم. ما باندې ددې عمل په وجه چا نكير اونكړو.
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه زه په حالت د سوريدو كښې د صف په وړاندې تيرشوم. يو طرف ته كوز شوم او په صف كښې شامل شوم او سوړلئ مې پريخودله چه څرن اوكړي. (گيا اوخري) چا په دې سلسله كښې ما باندې نكير اونكړو. نه د مونځ په حالت كښې او نه د مانځه نه پس، نه په اشارې سره او په صريح كلام سره. معلومه شوه چه د مونځ گزار مخې ته د خرې په تيريدو مونځ نه فاسديږي. او هركله چه خرې سره نه فاسديږي. نو د ښځې په تيريدو به په درجه اولى نه فاسديږي.

**د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما استدلال**: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما پخپل مقصد باندې د نكير نه كولو نه استدلال كړې دې. خو په دې باندې اشكال كيدې شي. چه خلق چونكه په مانځه كښې مشغول وو. په دې وجه ئې نكيراونكړې شو. نود عدم نكير نه څنگه استدلال كيدې شي؟
ددې جواب ① دا دې چه دلته حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مطلقاً د نكير نفى كوى. كه په مانځه كښې وى. اوكه روستو د مانځه نه وى. كه د مانځه نه روستو نكير موجود شوې وې. نو هغه مطلقاً نفى ولې فرمائيله.
② او په مانځه كښې نكير بالقول مشكل دى. ځكه چه خبره كول جائز نه دى. خو په اشارې سره خو نكير ممكن وو. هركله چه د مطلق نكير نفى ده. نو معلومه شوه چه په هيڅ شان هم نكير نه دې موجود شوې.(٢)

**ترجمة الباب سره انطباق**: وړاندې ذكر شوى دى. چه ددې باب قائمولو مقصد دا ښودل دى. چه دصحت تحمل او سماع دپاره هيڅ حد معين نه دې. بلكه په هوښيارتيا او پوهې باندې موقوف دې. چه كه ماشوم سن تميز (د هوښيار توب عمر) او تعقل ته اورسيږي. نو د هغه تحمل صحيح دې.
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دلته د خپل بلوغ نه وړاندې واقعه كومه چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم حال سره متعلق ده. نقل كړې ده. د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د نبى كريم صلى الله عليه وسلم فعل او حال نقل كول داسې دى. لكه قول نقل كول. لكه څنگه چه د قول نقل كول معتبر دى. دغه شان د فعل او حال نقل كول هم معتبر دى. ځكه چه په دريو واړو څيزونو كښې هيڅ فرق نشته.(٣)

---

(١)...حتى سرت بين يدى بعض الصف الأول. صحيح البخارى(١/٢٥٠) كتاب جزاء الصيد. باب حج الصبيان. رقم(١٨٥٧)_
(٢)فتح البارى(١/١٧٢)_
(٣)فتح البارى(١/١٧٢)_

بهرحال د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د كم عمره كيدو باوجود ددوى روايت واخستلې شو.او ددې نه د مسائلو استخراج اوكړې شو.نو ترجمه ثابته شوه.كه ماشوم هوښيار او عقلمند وى.او هغه د بلوغ نه وړاندې اوريدلې شوې خبره د بلوغ نه پس بيان كړى.نو د هغې اعتبار به كولې شى.(١) والله اعلم.

## حديث باب

٧٧-((حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنِي الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ (٢) قَالَ عَقَلْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَجَّةً مَجَّهَا فِي وَجْهِي وَأَنَا ابْنُ خَمْسِ سِنِينَ مِنْ دَلْوٍ))[١٨٦ ، ٥٩٩٣]

## رجال الحديث

① محمد بن يوسف رحمه الله: دا ابو احمد محمد بن يوسف بيكندى بخارى رحمه الله دې.(٣) محمد بن يوسف فريابى مراد نه دې.ځكه چه دلته د محمد بن يوسف شيخ ابو مسهر دې.حالانكه ابومسهرد بيكندى د شيوخو څنې دې.د فريابى په شيوخو كښې نه دې.(٤)
دوى دامام احمد بن حنبل، ابو اسامه حماد بن اسامه، حيوة بن شريح، سفيان بن عيينه، ابو جعفر عبدالله بن محمد نفيلى، ابو مسهر عبدالاعلى بن مسهر، عثمان بن ابى شيبه، نضر بن شميل، او كيع بن جراح رحمهم الله نه حديثونه روايت كړى دى.ددوى نه امام بخارى، احمد بن سيار مروزى، حريث بن عبدالرحمن بخارى، او عبيدالله بن واصل بخارى رحمهم الله روايت كړې دې.(٥)
حافظ خليلى رحمه الله فرمائى.((ثقة متفق عليه))(٦)

---

(١)ايضاح البخارى(٧٤\٥)_
(٢)قوله:عن محمود بن الربيع..الحديث أخرجه البخارى ايضاً فى(٣١\١)كتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس، رقم(١٨٩) وفى(١١٦\١)كتاب الأذان، باب من لم يردّالسلام على الإمام، و اكتفى بتسليم الصلاة، رقم(٨٣٩) وفى(١٥٨\١)كتاب التهجد، باب صلاة النوافل جماعة، رقم(١١٨٥) وفى(٩٤٠\١٢)كتاب الدعوات، باب الدعاء للصبيان بالبركة ومسح رؤوسهم، رقم(٦٣٥٤) وفى(٩٥٠\١٢)كتاب الرقاق، باب العمل الذى يبتغى به وجه الله، رقم(٦٤٢٢)، ومسلم فى صحيحه فى كتاب المساجد، باب الرخصة فى التخلف عن الجماعة لعذر، رقم(١٤٩٨)، وابن ماجة فى سننه، فى كتاب الطهارة، باب المج فى الإناء، رقم(٦٦٠) وفى كتاب المساجد والجماعات، باب المساجد فى الدور، رقم(٧٥٤)_
(٣)تهذيب الكمال(٦٣\٢٧، ٦٤)_
(٤)جزم بذالک البيهقى وغيره، فتح البارى(١٧٢\١) وعمدة القارى(٧١\٢)_
(٥)د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(٦٤\٢٧)_
(٦)تهذيب التهذيب(٥٣٨\٩)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «ثقة»[1]

صاحب د خلاصة الخزرجي فرمائی: ،،موثق،،[2]

په کتب د رجالو کښې ددوی حالات ډير کم دی.،، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

④ ابومسهر رحمه الله: دا د اهل شام شيخ امام ابومسهر عبدالاعلى بن مسهر بن عبدالاعلى بن مسهر غساني دمشقي رحمه الله دي.[3]

دوی د سعيد بن عبدالعزيز، عبدالله بن العلاء، سعيد بن بشر، معاويه بن سلام، مالك بن انس، اسماعيل بن عياش، محمد بن مهاجر، او سفيان بن عيينه رحمهم الله نه روايت دحديثو کړې دې.

ددوی نه په روايت کونکو کښې مروان بن محمد طاطری، يحي بن معين، احمد بن حنبل، محمد بن عائذ، عبدالرحمن بن ابراهيم دحيم، احمد بن آبى الحواری، محمد بن يحي ذهلي، امام بخاری، ابو حاتم رازي او ابراهيم بن ديزيل رحمهم الله وغيره دی.[4]

خليفه مامون الرشيد دوی د ،،خلق قرآن،، په سلسله کښې بغداد ته راوغوښتلو او جلاد ته ئې حواله هم کړو.خو ددوی د استقامت په قدم کښې لغزش(اوړچ) رانغې.خليفه دوی لره قتل خو نکړو.خو په جيل کښې ئې محبوس (قيد) کړو.ترديې چه په جيل کښې ددوی وفات اوشو.[5]

امام احمد بن حنبل رحمه الله به ددوی ډير تعريف کولو.او فرمائيل به يې: «رحم الله أبا مسهر، ما كان أثبته!»[6]

ددوی استاذ سعيد بن عبدالعزيز رحمه الله فرمائی: «ما شبهتك في الحفظ إلا بجدك أبي ذرامة، ما كان يسمع شيئاً إلا حفظه»[7]

د امام ابو داؤد رحمه الله په وړاندې چه کله يوکس د ابومسهر په باره کښې اووئيل: «كان متكبرا في نفسه» نو امام ابو داؤد اوفرمائيل.

---

[1] تقريب التهذيب( ص٥١٥) رقم(٦٤١٧)_

[2] خلاصة تذهيب تهذيب الكمال(ص٣٦٥)_

[3] تهذيب الكمال(١٦\٣٦٩)_

[4] د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئ: تهذيب الكمال(١٦\٣٧٠- ٣٧٣) وسير أعلام النبلاء (١٠\٢٢٨، ٢٢٩)_

[5] طبقات ابن سعد( ٧\٤٧٣)_

[6] تهذيب الكمال(١٦\٣٧٣) وسير أعلام النبلاء(١٠\٢٣١)_

[7] تهذيب الكمال(١٦\٣٧٤)وسير أعلام النبلاء(١٠\٢٣٢)_

«كان من ثقات الناس، رحم الله أبا مسهر، لقد كان من الإسلام بمكان....» [۱]

امام يحي بن معين، ابو حاتم، او عجلی رحمهم الله فرمائی «ثقة» [۲]

حافظ خلیلی رحمه الله فرمائی: «ثقة حافظ إمام متفق عليه» [۳]

امام حاکم رحمه الله فرمائی: «إمام ثقة» [۴]

ابن وضاح رحمه الله فرمائی: «كان ثقة فاضلا» [۵]

ابن حبان رحمه الله فرمائی: «كان من الحفاظ المتقنين وأهل الورع في الدين» [۶] او هم دوی فرمائی: «وكان إمام أهل الشام في الحفظ والإتقان، ممن عني بأنساب أهل بلده وأنبائهم، وإليه كان يرجع أهل الشام في الجرح والتعديل لشيوخهم» [۷]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «ثقة فاضل» [۸]

په ۲۱۸ھ کښې وفات شوی وو. [۹] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ محمد بن حرب: دا ابوعبدالله بن حرب خولانی حمصی الابرش کاتب الزبیدی رحمه الله دی. [۱۰]

دوی محمدبن زیاد الهانی بحیربن سعد، عمرین وربه، محمد بن الولید الزبیدی. صفوان بن عمرو، امام اوزاعی، حفص بن سلیمان، شعیب بن ابی حمزه، عبدالملك بن جریج. او عبیدالله بن عمرالعمری رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

د دوی نه روایت کونکو کښې ابومسهر، عبدالاعلی بن مسهر، محمدبن وهب بن عطیه، اسحاق بن راهویه، کثیربن عبید، محمدبن مصفی، خالدبن خلی الکلاعی، حیوة بن شریح اوهشام بن عمار رحمهم الله وغیره حضرات دی. [۱۱]

---

[۱] تاریخ بغداد(۱۱\۷۵) وتهذیب الكمال(۱۶\۳۷۵)_

[۲] تهذیب الكمال(۱۶\۳۷۳)_

[۳] تهذیب التهذیب(۶\۱۰۰)_

[۴] المصدر السابق)_

[۵] المصدر السابق)_

[۶] قاله ابن حبان فی کتاب الضعفاء له فی ترجمة عمرو بن واقد. تهذیب التهذیب(۶\۱۰۰)_

[۷] الثقات لابن حبان(۸\۴۰۸)_

[۸] تقریب التهذیب (ص،۲۳۲) رقم ۳۷۳۸)_

[۹] الكاشف (۱۱\۶۱) رقم ۳۰۸۲)_

[۱۰] تهذیب الكمال(۲۵\۴۴)_

[۱۱] دشیوخو او شاگردانو دپاره اوگورئ. تهذیب الكمال(۲۵\۴۴و۴۶) وسیر أعلام النبلاء(۹\۵۷و۵۸)_

امام احمد رحمه الله فرمائي: «ليس به بأس»[1]
امام يحيى بن معين، امام نسائي، امام عجلي، محمدبن عوف الطائي اوعثمان بن سعيد دارمي رحمهم الله فرمائي: «ثقة»[2]
امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي: «صالح الحديث»[3]
خشنام بن صديق رحمه الله فرمائي: «وكان من خيار الناس»[4]
ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى.[5]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: «ثقة»[6]
په ۱۹۳ھ كښې دوى وفات شوى وو.[7] رحمه الله رحمة واسعة.

④ الزبيدي: دوى قاضي ابوالهذيل محمدبن الوليد بن عامر الزبيدي الحمصي رحمه الله دى.[8]
دوى د نافع مولى ابن عمر، مكحول، عمروبن شعيب، امام زهري، سعيد مقبري، عبدالرحمن بن القاسم او سعدبن ابراهيم رحمهم الله وغيره نه دحديثو رويت كړې دې.
د دوى نه چه چا روايت كړې دې په هغو كښې امام اوزاعي، شعيب بن ابى حمزه، فرج بن فضاله، بقية بن الوليد، محمدبن حرب، عبدالله بن سالم او عتبه به حماد رحمهم الله وغيره حضرات دى.[9]
امام يحي بن معين رحمه الله د دوى توثيق كړې دې. اودزهري رحمه الله په احاديثو كښې ئې دوى ته سفيان بن عيينه په مقابله كښې ترجيح وركړې ده.[10]
امام اوزاعي رحمه الله دوى د زهري رحمه الله په ټولو شاګردانو كښې فائق ګرځولې دې.[11]
امام ابوزرعه، اما عجلي، اوامام نسائي رحمهم الله فرمائي: «ثقة»[12]

---

[1] تهذيب الكمال(۲۵\٤٦)۔
[2] تاريخ عثمان بن سعيدالدارمي(ص۸۰) رقم ۹۱و۹۲) وتهذيب الكمال(۲۵\٤٦)_
[3] تهذيب الكمال(۲۵\٤٧)_
[4] المصدرالسابق)_
[5] الثقات لابن حبان(۹\۵۰)_
[6] تقريب التهذيب(٤٧۳) رقم ۵۸۰۵)_
[7] الكاشف(۲\۱٦۳) رقم ٤٧۸٦)_
[8] تهذيب الكمال(۲٦\۵۸٦و ۵۸۷)_
[9] د دوى د شيوخو اوتلامذو دپاره اوګورئ (۲٦\۵۸٧و ۵۸۸) وسير أعلام النبلاء(٦\۲۸۱)_
[10] تهذيب الكمال(۲٦\۵۸۸) وسير أعلام النبلاء(٦\۲۸۱)_
[11] تهذيب الكمال(۲٦\۵۸۹) وسير أعلام النبلاء(٦\۲۸۱)_
[12] تهذيب الكمال(۲٦\۵۸۹) وسير أعلام النبلاء(٦\۲۸۲)_

امام على بن مدينى رحمه الله فرمائى «ثقة ثبت» (۱)

دُحيم رحمه الله فرمائى «شعيب بن أبي حمزة الثقة ثبت يشبه حديثه حديث عقيل والزبيدى فوقه» (۲)

ابن سعد رحمه الله فرمائى «وكان ثقة إن شاء الله وكان أعلم أهل الشام بالفتوى والحديث..» (۳)

ابن حبان رحمه الله فرمائى «وكان من الحفاظ المتقنين والفقهاء في الدين أقام مع الزهرى عشر سنين حتى احتوى أكثر علمه وهو من الطبقة الأولى من أصحاب الزهرى» (۴)

محمد بن عوف رحمه الله فرمائى «الزبيدى من ثقات المسلمين وإذا جاءك الزبيدى عن الزهرى فاستمسك به» (۵) امام ابوداود رحمه الله فرمائى «ليس في حديثه خطأ» (۶)

امام احمد رحمه الله فرمائى «كان لا يأخذ إلا عن الثقات» (۷)

امام خليلى رحمه الله فرمائى «ثقة حجة إذا كان الراوى عنه ثقة» (۸)

امام ذهبى رحمه الله فرمائى «ثبت» (۹)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «ثقة ثبت» (۱۰)

په کال ۱۴۹ھ کښې دوى وفات شوى وو (۱۱)

⑤ <u>الزهـري:</u> دوى ابوبكر مسلم بن عبيد بن عبد الله بن شهاب زهرى رحمه الله دى ددوى مختصر حالات په بدء الوحى كښې د دريم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى. (۱۲)

⑥ <u>محمود بن الربيع رضي الله عنه:</u> دوى حضرت محمود بن الربيع بن سراقه بن عمرو خزرجى انصارى رضي الله عنه دى. ددوى كنيت ابونعيم اوابومحمد خودلى شوې دې. راجح دا ده چه ددوى

---

(۱) المصادر السابقة)_

(۲) تهذيب الكمال (۱۲۶\۵۹۰)_

(۳) الطبقات لابن سعد (۴۶۵\۷) -

(۴) الثقات لابن حبان (۳۷۳\۷)_

(۵) تهذيب الكمال (۱۲۶\۵۹۰)_

(۶) المصدر السابق)_

(۷) تهذيب التهذيب (۵۰۳\۹)_

(۸) المصدر السابق)_

(۹) الكاشف (۲۲۸\۱۲) رقم ۵۱۹۹)_

(۱۰) تقريب التهذيب (ص. ۵۱۱) رقم ۶۳۷۲)_

(۱۱) الكاشف (۲۲۸\۱۲) رقم ۵۱۹۹)_

(۱۲) كشف البارى (۳۲۶\۱)_

كنيت ابومحمد دې.اوابونعيم د محمودبن لبيد كنيت دې.(١)
بعضې حضراتودوى په بنوعبدالاشهل كښې گرخولى دى.(٢) خودا صحيح نه ده.ځكه چه دعبدالاشهل تعلق دقبيله اوس سره وو.اودې خزرجى دې.(٣)
دوى دنبى ﷺ په زمانه كښې ډير ماشوم وو.په كوم كال چه نبى ﷺ وفات شوې وو.نوهغه وخت دوى د پنځوكالو وو.(٤)
په مدينه منوره كښې اوسيدل.اود بيت المقدس سفر ئې كړې وو.دوى دحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه خوم وو.(٥)
دوى مداعبة يا تبركاً ددوى په مخ باندې دخولې نه اوبه چړكاؤ كړې.دا خبره به هغوى په حديث مبارك كښې بيانوله.

چونكه دوى صغيرالسن وو.ځكه ددوى اكثرروايات د صحابه كرام رضي الله عنهم نه دى.(٦)
دوى د نبى ﷺ نه علاوه دحضرت عباده بن صامت،حضرت عتبان بن مالك او حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنهم نه هم روايت كوى.
د دوى نه حضرت انس بن رضي الله عنه ابوبكربن انس بن مالك،رجاء بن حيوة ،ابن شهاب زهرى ،مكحول شامى،او هانى بن كلثوم رحمهم الله روايت كړې دې.(٧)
په كال ٩٩هـ كښې وفات شوى وو.(٨) رضى الله عنه وأرضاه.

**قوله**: قال عقلت من النبى ﷺ مجة مجها فى وجهى وأنا ابن خمس سنين من دلو: حضرت محمودبن ربيع رحمه الله فرمائى.چه ماته د نبى ﷺ هغه د خولې اوبه ياد دې.كومې چه نبى ﷺ ديوډول نه راخستې وې.اوزما په مخ ئې راشيندلې وې .په هغه وخت كښې زه د پنځو كالو ووم.

«مجة» خوله كښې اوبه اچول،
اهل لغت فرمائى.چه «المج :إرسال الماء من الفم مع نفخ»(٩)

---

(١)الإصابة(٣٨٦\٣)_
(٢)قاله ابن عبدالبر رحمه الله فى الإستيعاب (بهامش الإصابة (٤٢١\٣)_
(٣)الإصابة(٣٨٦\٣)_
(٤)أخرجه الطبرانى من طريق محمود بن الربيع قال توفى النبى ﷺ وأنا إبن خمس سنين أنظر الإصابة (٣٨٦\٣)
(٥)تهذيب الكمال(٣٠١\٢٧)_
(٦)تقريب التهذيب(ص.٥٢٢) رقم (٦٥١٢)_
(٧) د دوى دشيوخو اوتلامذو دپاره اوگورئ تهذيب الكمال(٣٠١\٢٧)_
(٨) الكاشف(٢٤٦\٢) رقم ٥٣٢٠)_
(٩)عمدة القارى(٧٢\٢)_

بعضې حضرات فرمائی چه د «مج» دپاره «ارسال الماء من بعيد» شرط دې.(1)

په دې جمله كښې «فى وجهى» د «مجة» نه حال دې.«أى ملقت مجة مجها حال كونها فى وجهى»(2)

نبى كريم ﷺ دمحمودبن ربيع رضي الله عنه په مخ باندې دخولې نه اوبه يا خود تبريك دپاره پرش كړې وې.څكه چه نبى ﷺ به دصحابو رضي الله عنهم بچوسره تبريك كولو اودبركت په غرض به ئې دهغوى په مخونو باندې لاس راښكل.اوكله به ئې تحنيك كولو.(يعنى په خوله كښې به ئې قجوره پسته كړه.اوبيا به ئې هغ ماشوم ته په خوله كښې وركړه) اويا نبى ﷺ د دوى په مخ باندې دخولې خوبه د لوبو په طورباندې شيندلې وې.يعنى دلوبواوټوقوپه غرض نبى ﷺ دوى سره داسې كاركړې وو.(3)

**قوله** وأنا ابن خمس سنين:زه د پنځو كالو ووم.

دا دوفات نبوى دكال واقعه ده.امام بخارى رحمه الله په تاريخ صغيركښې اوامام طبرانى په خپل سند سره روايت نقل كړې دې.«توفى النبى ﷺ وأنا ابن خمس سنين»(4)

ابن حبان رحمه الله ليكلى دى.چه د دوى وفات په ۹۹ھ كښې شوې وو.اوددوى عمر څلورنوى كاله وو.(5) په دې سره هم ددې تائيد كيږى.

**قوله**: من دلو: د نسائى په روايت كښې «من دلو» معلق دې.(6)

د ابن حبان رحمه الله په روايت كښې د «معلقة» لفظ دې.(7)

په يو روايت كښې د «من دلو» په ځائې «من بئر» الفاظ راغلى دى.(8).په دواړوكښې تطبيق دادې.چه اوبه دډول په ذريعه دكوهى نه راوويستې شوې.اونبى ﷺ دډول نه اوبه اوڅكلې.(9)

**يواعتراض اودهغې جواب** دلته علامه مهلب بن ابى صفره رحمه الله په امام بخارى رحمه الله باندې اعتراض كړې دې.چه دامام بخارى رحمه الله دپاره پكار وو.چه ددې حديث په ځائې دحضرت ابن الزبير رضي الله عنهما واقعه نقل كړې وه.په كومه كښې چه هغوى دخپل پلار په باره كښې دا نقل كړې دى.چه كله هغوى په خپل اس باندې د بنوقريظه د طرف نه راتلو.نوماته هغه وخت ياد

---

(1)القائل هوخالدبن جنبة: كما ذكر الهروى انظر النهاية لابن الأثير وتعليقاته (٢٩٧\٤)_

(2)عمدة القارى(٧٢\٢)_

(3)عمدة القارى(٧٢\٢) وفتح البارى(١٧٢\١)_

(4)التاريخ الصغير(ص.٧٤) وتهذيب التهذيب(٦٣\١٠) والإصاة(٣٨٦\٣)_

(5)الثقات لابن حبان(٣٩٨\٣)_

(6)السنن الكبرى للسنائى(٤٣٨\٣) كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير) رقم ٥٨٦٥)_

(7)فتح البارى(١٧٣\١)_

(8)صحيح البخارى(١٥٨\١) كتاب التهجدباب صلاة النوافل جماعة رقم ١١٨٥)_

(9)فتح البارى(١٧٣\١)_

دي.(۱) په هغه وخت کښې د ابن الزبیر رضي الله عنه عمر دري یا څلور کاله وو.(۲)

علامه بدرالدین زرکشي رحمه الله ددې جواب ورکړې دې.کیدې چه دا روایت دامام بخاري رحمه الله د شرط مطابق نه وو.څکه ئې دا روایت نه دې ذکرکړې.(۳)

خودا جواب صحیح نه دې.څکه چه دا قصه په بخاري کښې په کتاب المناقب کښې ذکرده.(۴)

ددې صحیح جواب علامه ابن المنیر رحمه الله ورکړې دې.چه په اصل کښې دامام بخاري رحمه الله مقصد دسنن نبویه نقل کول وو.که په حدیث باب کښې د دخولې نه د اوبو شیدنلوذکرنه وو.صرف دومره وه.«رأیت النبي ﷺ» یا داسې قسم بل څه مضمون وو.نودا به د مطلب دپاره مفید نه وو.دهغې نه به زیات نه زیات دا ثابتیدل.چه راوی صحابی دې. او هغوی نبي ﷺ لیدلې وو.احوال واقعیه وجودیه دامام بخاري رحمه الله په مقاصدوکښې نه دی. داسې نه ده چه واقعه په دنیاکښې پیښه شوې وی.اوامام بخاري رحمه الله هغه ذکرکوی. بلکه دوی خودنبي ﷺ د سنتو ذکرکول غواړی.

چونکه دابن الزبیر رضي الله عنه په واقعه کښې صرف دخپل پلار دتلو راتلو .لیدو او یاد ساتلو ذکر وو.په هغې کښې د نبي ﷺ د سنتو څه ذکر نه وو.ددې وجې دهغه ذکرپه دې مقام کښې صحیح نه وو.حالانکه دمحمود بن ربیع رضي الله عنه په روایت کښې د نبي ﷺ یوعمل منقول دې.ددې نه فقهاؤ اومحدثینو رحمهم الله ډیراحکام مستنبط کړی دی.نوپه دې باب کښې د محمودبن ربیع رضي الله عنه روایت نقل کولو مفید وو.دحضرت عبدالله بن الزبیر رضي الله عنهما روایت مفید نه وو والله أعلم.(۵)

**فائده** ابن الرشید دابن المرابط رحمه الله نه نقل کړی دی.چه ابومسهر عبدالاعلی بن مسهر محمدبن حرب په دې روایت کښې متفرد دې.

خودا خبره صحیح نه ده.څکه چه امام نسائی په ،،سنن کبری،، کښې د ،،محمدبن المصفی عن محمدبن حرب،، په طریق سره امام بیهقی په ،،المدخل،، کښې د محمدبن جوصاعن سلمة بن الخلیل عن محمدبن حرب،، په طریق سره،دغه شان ابوالتقی ،،وهوبفتح المثناة وکسرالقاف،، هشام بن

---

(۱)عن عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما قال کنت یوم الأحزاب جعلت أنا وعمربن أبی سلمة فی النساء فنظرت فإذا أنا بالزبیرعلی فرسه یختلف بنی قریظة مرتین أوثلاثاً فلما رجعت قلت یا أبت رأیتک تختلف وقال:أوهل رأیتنی ؟ قلت نعم... صحیح البخاری (۵۲۷\۱) کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ (المناقب) باب مناقب الزبیربن العوام رضي الله عنه رقم ۳۷۲۰)_

(۲)فتح الباری(۱۷۳\۱) وانظر أیضاً فتح الباری (۸۱\۷) کتاب فضائل الصحابة رضي الله عنهم باب مناقب الزبیربن العوام)

(۳)عمدة القاری(۷۳\۲) وفتح الباری(۱۷۳\۱)_

(۴)صحیح البخاری(۵۲۷\۱) کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ (المناقب) باب مناقب الزبیربن العوام رضي الله عنه رقم ۳۷۲۰)

(۵)فتح الباری(۱۷۳\۱) وعمدة القاری(۷۲\۲و ۷۳)_

عبدالملك يزلى من محمدبن حرب،، په طريق سره روايت كړې دې.لكه چه ابومسهرپه دې روايت كښې متفرد نه دې.بلكه كم نه كم درې حضرات ددوى متابعين دى.

البته دا ونيلى شى چه د زبيدى نه روايت كونكوكښې محدبن حرب متفرد دې.(۱)

**ترجمة الباب سره دحديث مطابقت** مذكوره روايت دترجمة الباب سره بيخى منطبق دې.ځكه چه په دې كښې محمودبن ربيع دخپل ماشومتوب واقعه بيانوى.په كوم سره چه دنبى ﷺ دحال علم ورته شوې وو.دغه شان ددې روايت نه عالمانو ﷺ ډيرمسائل مستنبط كړى دى.

خوددې روايت نه دې دا نشى ګنړلې.چه د سماع اوتحمل دپاره د پنځوكالوتحديد دې.لكه ځنګه چه بعضې حضراتوپه دې روايت سره د پنځوكالوپه تحديدباندې استدلال كړې دې.په حديث كښې يا دبخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې چرته هم دا نشته.چه دصحت تحمل اوسماع دپاره دپنځوكالوتحديددې.(۲)البته ددې روايت په رڼا كښې دا ونيلى شى چه د پنځوكالوپه عمركښې ماشوم ضبط كولې شى.اوپه مطالبوباندې پوهيږى.دا عين ممكن ده. چه يوماشوم دپنځوكالونه وى.خوپه هغه كښې عقل وى.اودتميزصلاحيت په كښې وى. دداسې ماشوم سماع دجمهوررو په نيزصحيح ده.دغه شان دا هم ممكن ده.چه يوماشوم د پنځوكالونه د زيات عمروى.خوپه هغه كښې عقل.تميزاوضبط موجود نه وى.په دې صورت كښې دهغه دتحمل څه اعتبار نشته.((كما سبق تفصيل ذلك فى فاتحة هذا الباب))والله أعلم بالصواب.

**فائده** دبخارى په عامونسخوكښې دلته ((متى يصح سماع الصغير))الفاظ دى.اود كشمينى رحمه الله په نسخه كښې ((الصبى الصغير)) الفاظ راغلى دى.(۳)

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دوه روايتونه ذكركړى دى. يو د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دهغې نه د((سماع الصبى)) ثبوت كيږى.اوبل د حضرت محمود بن الربيع رضي الله عنه.ددې نه د ((سماع الصغير)) ثبوت كيږى.ځكه چه ((صبى)) نابالغه ماشوم ته وائى.چه وركوټې بچې وى

دا هم ممكن ده.چه دا اوونيلى شى.چه دلته دصغيرنه مراد نابالغه دې.په دې صورت كښې به دواړه روايتود ((صغير)) لفظ سره متعلق شى.

كه دا دويم احتمال مراد واخستې شى.نوبخارى په ټولونسخوكښې چه كومه ترجمه موجود ده. يعنى ((سماع الصغير)) دا به راجح وى.اوكه دا احتمال وانه اخستې شى.نوبيا به د كشمينى رحمه الله نسخه ((الصبى الصغير)) ترجمه مناسب وى.(۴)

---

۱)عمدة القارى(۷۱\۲) وفتح البارى(۱۷۲\۱)_
۲)فتح البارى(۱۷۳\۱)_
۳)فتح البارى(۱۷۱\۱)_
۴)فتح البارى(۱۷۲\۱)_

## ١٩- بَاب الْخُرُوجِ فِي طَلَبِ الْعِلْمِ وَرَحَلَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ مَسِيرَةَ شَهْرٍ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ فِي حَدِيثٍ وَاحِدٍ

**د مخکنی باب سره مناسبت** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دلته «طلب العلم» مطلقاً ذکرکړی دی. دی دپاره چه بری اوبحری دواړو سفرونو ته شامل شی.[1]
اوپه دواړو روایتونوکښې مناسبت دادې چه په مخکښې باب کښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خاروی باندې سوریدل اوراتلل اوپه مونځ کښې شرکت کول اوبیا خپل شاګردته ددې واقعه خبر ورکول ذکردی. په کوم کښې چه د طلب العلم او«خروج فی طلب العلم» معنی بنکاره وه. په دې طریقه په دواړو بابونوکښې مناسبت پیدا شو.[2]
البته علامه عینی رحمه الله دلته په امام بخاری رحمه الله باندې دا اعتراض کړې دې. که دا ترجمه د «باب ما ذکر فی ذهاب موسی علیه السلام فی البحر إلی الخضر» سره متصل وه. نوزیات مناسب به وو. دې دپاره چه دعلم دطلب دبحری اوبری سفرونومسئله په یوځائې کښې راغلې وه. په مینځ کښې امام بخاری رحمه الله دوه بابونوذکرکړی دی. اوبیا ئې وریسې دا باب راوړې دې. دامناسب نه وه.[3]
خودا اشکال په هغه وخت کښې صحیح وو. که د «باب ما ذکر فی ذهاب موسی علیه السلام فی البحر إلی الخضر» مقصد دعلم دطلب دپاره د بحری سفرجواز بیانول وو.
اوکه ددوی مقصد هغه وی. کوم چه مونږ دحضرت شیخ الهند رحمه الله نه نقل کړې دې. چه د ترجمې مقصد دا «تعلم بعد السیادة» اثبات وی. نوپه دې صورت کښې دا اشکال نه واردیږی.
خوحضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی. چه په اصل کښې امام بخاری ددې باب نه وړاندې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوحر بن قیس رضي الله عنه مناظره ذکرکړې ده. په هغې کښې دا وو. چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د ،،حر،، په مقابله کښې اوګټله. نوامام بخاری رحمه الله ددې ګټلووجې ته په باریکه طریقه باندې اشارې کولودپاره «باب قول النبی صلی الله علیه وسلم اللهم علمه الکتاب» ترجمه قائمه کړه. اودحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت ئې ذکرکړو. اودا ئې اوخودله. چه چونکه نبی صلی الله علیه وسلم دوی دپاره دعلم کتاب دعا کړې وه. څکه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوګټله.
بیا چونکه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا دعا دنبی صلی الله علیه وسلم نه په صغرسنی کښې اوریدلې وه. ددې وجې دامام بخاری رحمه الله ذهن یوې بلې مسئلې ته منتقل شو. اوهغه مسئله د «سماع الصغیر» ده. ددې وجې امام بخاری رحمه الله دهغې نه پس دادویمه مسئله شروع کړه اوکله چه د دواړو نه فارغ شو. نوبیا ئې هم هغه «رحلة فی طلب العلم» مسئله بیان کړه. چه اول ده «رحلة بحریة» ذکر

---

[1] عمدة القاری (۷۳/۲)_
[2] المصدر السابق)_
[3] المصدر السابق)_

وو اواوس د ((رحلة بحرية)) مسئله راوړه.لکه چه دا دواړه ابواب اجنبي نه دي.بلکه د ((باب ما ذكر...)) د توابع اولواحقوځني دي.نود دواړو مسئلوپه مينځ کښي څه اجنبي فاصل نشته.(۱)
**د ترجمة الباب مقصد** دترجمة الباب مقصدا بيانوي.چه دطلب علم دپاره سفرکول جائز دي. اويا دي استحباب بيانول مقصود دي.ددي وضاحت دا دي.چه وړاندي امام بخاري رحمه الله دعلم اهميت اوددي دتحصيل مختلفي طريقي بيان کړي.دکومونه چه دعلم ضرورت محسوس شو.اودا واضحه شوه.چه ددين اودنيا هيڅ يوکاردعلم نه بغيرممکن نه دي.تردي چه دنياوى كارونه تجارت اوزراعت هم دعلم محتاج دي.نود دين معامله خوددي زياته اهمه اوواضحه ده.
هرکله چه علم دومره ضروري دي.نوکه تاته په خپل خاني کښي علم نه حاصليږي.نوبهرته تلل به ضروري وي.چه هلته ته دعالمانو رحمهم الله نه خپل علمي ضروريات پوره کړي شي.
خوددي باوجود د سفر معامله چه مختلفو رواياتو کښي کتلى شى.څه ممنوع غوندي ښکاريده.نبي ﷺ فرمائيلي دي.((السفر قطعة من العذاب يمنع أحدكم طعامه وشرابه ونومه فإذا قضى نهمته فليعجل إلى أهله)) (۲)
دغه شان د نبي ﷺ ارشاد دي.((لا يركب البحر إلا حاجا أو معتمرا أو غازيا في سبيل الله)) (۳)
دغه شان نبي ﷺ فرمائيلي دي.((لا تشد الرحال إلا إلى ثلاثة مساجد)) (۴)
ددينه مراد اگرچه خاص مواقع دي.ليکن دالفاظو داطلاق نه ممانعت معلوميږي.
ددي رواتوپه رڼا کښي دتحصيل علم سفرمشتبه وو.دلته بيا دا هم دسوچ خبره ده.چه بيا دلته دا خبره هم د غورده.چه د نبي ﷺ په زمانه کښي اودصحابه کرامو رضي الله عنهم په زمانه کښي دتحصيل علم دپاره سفرشوي وو که نه؟که نه وو شوي .بلکه صحابه کرامو رضي الله عنهم هم په خپل خپل خايونوکښي دعلم تحصيل کولو.نوبيا زمونږ دپاره دا خبره نورهم گرانيږي.څکه چه سوال پيدا کيږي.چه دتحصيل علم دپاره بهرته تلل جائزدي که نه؟بيا د وچي دسفراجازت دي که د درياب دسفر هم،دغه شان نزدي مقاماتو ته تلى شي.اوکه لرو ته هم.ددي مقصد دپاره امام بخاري د((الخروج في طلب العلم)) ترجمه قائمه کړه.چه سفرکه د نزدي وي اوکه د لري.دوچي وي اوکه د سمندر،دعلم دضرورت تقاضا دا ده.چه کوم خاني پوري ضرورت

---

۱)الكنز المتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى (تعليقات لامع الدرارى(۱۲ / ۳۰۰)_
۲)صحيح بخارى(۱ / ۲۴۲و ۲۴۳) كتاب العمرة باب السفر قطعة من العذاب رقم ۱۸۰۴)_
۳)السنن لابي داود كتاب الجهاد باب فى ركوب البحر فى الغزو رقم ۲۴۸۹)-
۴)الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه(۱ / ۱۵۸) كتاب التطوع (التهجد) باب فضل الصلاة فى مسجد مكة والمدينة رقم ۱۱۸۹) ومسلم فى صحيحه فى كتاب الحج باب فضل المساجد الثلاثة رقم ۳۳۸۴ والنسائى فى سننه فى كتاب المساجد باب ما تشد الرحال إليه من المساجد رقم۷۰۱) وأبوداود فى كتاب المناسك باب فى إتيان المدينة رقم ۲۰۳۳)_

پوره كيږى.هغه خاني پوري دي خي
ددي دپاره امام بخاري رحمه الله په دوو ځيزونواستدلال کړي دي.يوخوني د عهدصحابو رضي الله عنهم نه نظيرپيش کړو.چه حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه د حضرت عبدالله بن انيس رضي الله عنه نه د يو داسي حديث اوريدو دپاره تلي وو.کوم چه هغه ته په واسطه سره رسيدلي وو.د يوي مياشتي سفر کړي وو.دي دپاره چه دهغوى سند عالى شى.«وسيأتى تفصيل ذلك قريباً»
دامام بخاري رحمه الله دويم استدلال دحديث باب نه دي.چه خلاصه ني دا ده.چه علم داسي ناشنا دولت دي.چه انسان ډيرعلم زده کړي.خوبيا هم دبې احتياجۍ اظهارنشي کولي. حضرت موسى عليه السلام ددي باوجود چه کمال علمي ورته حاصل وو.دا ورته معلوم شوه.چه دالله تعالى يو بنده سره زما نه زيات علم دي. نوهغه سره دملاويدو دپاره د لارې تپوس کوى.اودملاقات نه پس دهغوى شرطونه قبلوى.دا دواړه واقعات ني پيش کړل.اوامام بخاري رحمه الله دا اوخودل.چه دعلم دطلب دپاره سفر صرف مطلوب نه بلکه ضروري دي.(١)
خوپه دي قصه باندي استدلال په دي خبره باندي مبني دي.چه داپخوانو پيغمبرانوعليهم السلام شريعت د دي امت په حق کښي شريعت دي.دا مسئله مختلف فيها ده.
جمهورعالمان رحمهم الله فرمائي.چه «ما قص الله تعالى علينا من غير انكار ، أوقصه رسول الله ﷺ من غيرانكار فيه فإنه يلزمنا على أنه شريعة رسولنا ﷺ» (٢) يعنى کوم ځيز چه الله تعالى يا نبى ﷺ بغيرد انکار نه نقل کړى وى.هغه په مونږ باندي په دي حيثيت باندي لازم دي.چه هغه زمونږ د پيغمبر ﷺ شريعت دي.
بيا په دوو صحابو رضي الله عنهم کښي صرف يوحضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه واقعه نه ده.بلکه داسي ډيرمثالونه ملاويږى.
حضرت ابوايوب انصارى،دحضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه نه صرف ديوحديث اوريدودپاره دمديني نه مصر ته سفرکړي وو.کوم چه د يوي مياشتي مزل وو.(٣)
حضرت عبيدالله بن عدى رحمه الله دحضرت على رضي الله عنه نه دحديث اوريدو دپاره د مديني طيبي نه دعراق سفر کړي وو.کوم چه د يوي مياشتي مسافت وو.(٤)
حضرت ضمام بن ثعلبه رضي الله عنه ته چه د نبى ﷺ کوم تعليمات او احاديث رسيدلي وو.هغوى د خپلي علاقي نه سفرکړي وو.اودنبى ﷺ په خدمت کښي حاضرشوي وو.اود نبى ﷺ نه براه

---

(١) لامع الدراري (٢٩٩/٢و ٣٠٠) وإيضاح البخاري(٧٧/٥و ٧٨)_
(٢) دتفصيل دپاره وګورئ(أصول بزدوى مع كشف الأسرار(٢١٢/٣و ٢١٧) باب شرائع من قبلنا)_
(٣) الحديث أخرجه الحميدى فى مسنده (١٨٩/١و ١٩٠) أحاديث أبى ايوب أنصارى وأحمد فى مسنده (١٥٣/٤) والحاكم فى معرفة علوم الحديث (٧و٨) وابن عبدالبر فى جامع بيان العلم وفضله (٣٩٢/١) باب ذكرالرحلة فى طلب العلم رقم ٥٦٧) ونص الحديث من ستر مؤمناً فى الدنيا على هزية ستره الله يوم القيامة (اللفظ للحميدى)_
(٤) رواه الخطيب كذا فى فتح البارى (١٧٥/١)_

راست معلومات كړى وو. دحضرت ضمام رضي الله عنه قصه وړاندې تيره شوې ده.(١) ددې نه چه څنګه د قرات على الشيخ ثبوت كيږى. دغه شان د رحلة فى العلم ثبوت هم كيږى.
امام بخارى رحمه الله د طلب علم دپاره دسفرپه باره كښې دحضرت جابر رضي الله عنه قصې ته اشاره كړې ده. فرمائى.

**قوله** رحل جابر بن عبدالله مسيرة شهر إلى عبدالله بن أنيس في حديث واحد: حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه حضرت عبدالله بن انس رضي الله عنه طرف ته د يوحديث دپاره د يوې مياشتې سفر كړې وو.

**دذكرشوى حديث تخريج اونص دحديث** داحديث امام بخارى رحمه الله په «الأدب المفرد» كښې او«خلق أفعال العباد» كښې (٢)امام احمدبن حنبل رحمه الله په خپل مسند كښې (٣)اوطبرانى رحمه الله په معجم اوسط كښې (٤)ابويعلى فى خپل مسندكښې (٥)خطيب بغدادى پ.. رحلة.. كښې (٦)ابن ابى عاصم په كتاب السنة كښې (٧)حاكم په مستدرك كښې (٨)امام بيهقى په ،،كتاب الاسماء والصفات،، كښې (٩)اوابن عبدالبر رحمه الله په جامع بيان العلم وفضله كښې (١٠) تخريج كړې دې.

«عن جابر بن عبدالله رضي الله عنه قال: بلغني حديث عن رجل من أصحاب النبي ﷺ سمعه من رسول الله ﷺ في القصاص ولم أسمعه فابتعت بعيراً فشددت رحلي عليه ثم سرت شهراً حتى قدمت مصر فأتيت عبدالله بن أنيس فقلت للبواب قل له جابر على الباب فقال ابن عبدالله؟ قلت نعم فأتاه فأخبره فقام يطأ ثوبه حتى خرج إلى فاعتنقني واعتنقته فقلت له حديث بلغني عنك سمعته من رسول الله ﷺ ولم أسمعه في القصاص فخشيت أن أموت أوتموت قبل أن أسمعه، فقال عبدالله: سمعت رسول الله ﷺ يقول يحشر الله العباد أو قال الناس عراة غرلاً بهماً قال قلنا مابهماً؟ قال ليس معهم شئ ثم يناديهم بصوت يسمعه من بعد كما يسمعه من قرب أنا

---

(١)كتاب العلم باب القراءة والعرض على المحدث)_
(٢)الأدب المفرد رقم ٩٧٠) وخلق أفعال العباد (ص.٩) تعليقات جامع العلم وفضله (٣٨٩\١) باب ذكرالرحلة فى طلب العلم)_
(٣)مسندأحمدبن حنبل(٤٩٥\٣)_
(٤)مجمع الزوائد(٣٤٥\١٠و ٣٤٦) كتاب البعث باب ماجاء فى الحساب)_
(٥)تعليقات جامع بيان العلم وفضله (٣٨٩\١)_
(٦)كتاب الرحلة للخطيب(ص.١٠٩) تعليقات جامع بيان العلم وفضله (٣٨٩\١)_
(٧)تعليقات جامع بيان العلم وفضله (٣٨٩\١)_
(٨)المستدرك للحاكم (٤٣٧\٢و ٤٣٨) كتاب التفسير.سورة حم المومن و(٥٧٤\٤و ٥٧٥) كتاب الأهوال)_
(٩)الأسماء والصفات للبيهقى (ص.٧٨و ٧٩) تعليقات جامع بيان العلم وفضله (٣٩٠\١)_
(١٠)جامع بيان العلم وفضله (٣٨٩\١و ٣٩٢) باب ذكرالرحلة فى طلب العلم رقم ٥٦٥و ٥٦٦)_

الملك أنا الديان لا ينبغي لأحد من أهل الجنة أن يدخل الجنة ولا ينبغي لأحد من أهل النار أن يدخل النار، وعنده مظلمة حتى أقصه منه، حتى اللطمة قال قلنا كيف ذا وإنما نأتي الله غرلاً بهماً؟ قال بالحسنات والسيئات، قال وتلى رسول الله ﷺ ﴿ الْيَوْمَ تُجْزَى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ﴾ (اللفظ للحاكم فى مستدركه)

امام حاكم رحمه الله فرمائى: «صحيح الإسناد ولم يخرجاه»[1]

حافظ ذهبى رحمه الله ددوى تصديق كړى دى.اوفرمائى: «صحيح»[2]

حافظ نورالدين هيثمى رحمه الله فرمائى: «رواه أحمد ورجاله وثقوا ورواه الطبرانى فى الأوسط بنحوه»[3]

حافظ منذرى رحمه الله فرمائى: «رواه أحمد بإسناد حسن»[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: «وإسناده صالح»[5]

**دابن بطال رحمه الله يووهم:** دلته دامام ابن بطال رحمه الله نه يو وهم شوى دى.هغوى فرمائى.چه ددى نه مراد «حديث المستعلى مسلم» دى.دا خبره صحيح نه ده.بلكه هغه يوبل حديث دى.په كوم كښى چه سفركونكى حضرت ابوايوب انصارى رضى الله عنه دى.اوچاته چه ئې سفركړى وو.هغه حضرت عقبه بن عامر رضى الله عنه وو.[6]

**دمعلقات بخارى رحمه الله متعلق يوه قاعده اوپه هغې اعتراض:** علامه بدرالدين زركشى رحمه الله دلته اعتراض كړى دى.چه دا معلومه ده.چه امام بخارى رحمه الله كوم روايت معلقه په صيغه دجزم يعنى معروف سره راوړى.هغه صحيح وى.اوكوم روايتونه چه په صيغه د تمريض يعنى مجهول راوړى.هغه ضعيف وى.[7]

داقاعده دلته ماتيږى.ځكه چه دحضرت جابر رضى الله عنه په دې واقعه باندې دلته په صيغه د جزم «ورحل جابر بن عبدالله ..» ذكركړې دى.حالانكه ددې يوه بله حصه «يحشر الله العباد، فيناديهم

---

[1] المستدرك للحاكم(٤٣٨\٢)_

[2] تلخيص المستدرك للذهبى المطبوع بذيل المستدرك(٤٣٨\٢)_

[3] مجمع الزوائد(٣٤٦\١٠) كتاب البعث باب ماء فى الحساب )_

[4] الترغيب والترهيب (٤٠٤\٤) كتاب البعث وأهوال القيامة)_

[5] فتح البارى(١٧٤\١)_

[6] قدذكرنا هذا الحديث ومن أخرجه بالتفصيل فى هذا الباب فارجع إليه إن شئت)_

[7] قال ابن الصلاح وينبغى أن نقول ما كان ذلك ونحوه بلفظ فيه جزم وحكم به على من علقه عنه فقد حكم بصحته عنه.مثاله ... فكل ذلك حكم منه على من ذكره عنه بأنه قدقال ذلك ورواه فلن يستجير إطلاق ذلك إلا إذا صح عنده ذكره عنه لأن مثل هذه العبارات تستعمل فى الحديث الضعيف أيضاً علوم الحديث (ص.٢٤و ٢٥)_

بصوت يسمعه من بعد كما يسمعه من قرب، أنا الملك أنا الديان» امام بخاری رحمه الله په كتاب التوحيد کښې ذکرکړې ده.(١) چه دا ئې نقل کړې دې نووی دتمریض صیغه استعمال کړې ده.
«ويذكر عن جابر رضي الله عنه عن عبدالله بن أنيس قال....» نوپه دې طريقه دا قاعده ماتيږى.(٢)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې ددې حدیث دوه مضمونونه دی.دیوتعلق درحلة فی طلب العلم سره دې.اودبل تعلق د کلام الباری بصوت سره دې.ددې حدیث شواهد موجود دی.په مختلفو اسنادو سره دا ثابت دې.نوددې حدیث درجه دحسن ده.خکه چه دا خبرواحد دې.نوددې نه په صیغه د جزم سره رحلة فی طلب العلم ثابتوی.اوپه مسئله دکلام کښې چونکه د قطعی حدیث ضرورت وو.په هغې کښې خبرواحد کافی نه وی.نوکله چه ئې د صوت مسئله ذکرکوله.نوهلته ئې د تمریض صیغه استعمال کړه.«وهذا من دقة نظره رحمة الله عليه» (٣)
خوپه دې باندې اشکال کیږی.چه دامام بخاری رحمه الله خپل رجحان دې ته دې.چه الله تعالى د صوت سره کلام کوی.دوی په کتاب خلق افعال العباد او په صحیح بخاری کښې په کتاب التوحید کښې دا مسئله واضحه کړې ده.نودا خبره صحیح نه معلومیږی.چه هغوی دصوت په مسئله کښې عدم صلاحیت احتجاج طرف ته اشارې کولودپاره د تمریض صیغه استعمال کړې وی.
ددې صحیح جواب دا دې.چه امام بخاری رحمه الله په کوم ځائې کښې چه د تمریض صیغه استعمال کړی.نوهلته دهغوی منشاء صرف د سند ضعف نه وی.بلکه دهغې يوسبب اختصار هم وی.اوامام بخاری رحمه الله چه کله روایت بالمعنی کوی.یا د حدیث په الفاظوکښې اختصارکوی.نوپه داسې موقع باندې هم کله «يروى» او «يذكر» په صیغه د تمریض سره ذکرکوی.(٤)
په کتاب التوحید کښې امام بخاری رحمه الله چونکه اختصارفی الحدیث کړې دې.نوځکه ئې هلته په «يذكر» سره ددې حدیث ذکرکړې دې.والله اعلم.

[٧٨] حَدَّثَنَا أَبُو الْقَاسِمِ خَالِدُ بْنُ خَلِيٍّ قَاضِي حِمْصَ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ (٥) أَنَّهُ تَمَارَى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسِ بْنِ حِصْنٍ الْفَزَارِيُّ فِي صَاحِبِ مُوسَى فَمَرَّ بِهِمَا أُبَيُّ

---

١) صحيح البخارى (١١١٤/٢) كتاب التوحيدباب قول الله تعالى ﴿ ولاتنفع الشفاعة عنده إلا من أذن له ﴾_
٢) فتح البارى (١٧٤/١) وشرح القسطلانى (١٧٧/١)_
٣) فتح البارى (١٧٤/١)_
٤) النكت على ابن الصلاح (التقييد ولاإيضاح لما أطلق وأغلق من كتاب إبن الصلاح) للعراقى (٣٦) وتعليقات نورالدين عر على علوم الحديث لابن الصلاح (٢٥)_
٥) سبق تخريج هذا الحديث قبل بابين باب ما ذكر فى ذهاب موسى فى البحر إلى الخضر)_

بْنُ كَعْبٍ فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ إِنِّي تَمَارَيْتُ أَنَا وَصَاحِبِي هَذَا فِي صَاحِبِ مُوسَى الَّذِي سَأَلَ السَّبِيلَ إِلَى لُقِيِّهِ هَلْ سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَأْنَهُ فَقَالَ أُبَيٌّ نَعَمْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَأْنَهُ يَقُولُ بَيْنَمَا مُوسَى فِي مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ أَتَعْلَمُ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْكَ قَالَ مُوسَى لَا فَأَوْحَى اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى مُوسَى بَلَى عَبْدُنَا خَضِرٌ فَسَأَلَ السَّبِيلَ إِلَى لُقِيِّهِ فَجَعَلَ اللَّهُ لَهُ الْحُوتَ آيَةً وَقِيلَ لَهُ إِذَا فَقَدْتَ الْحُوتَ فَارْجِعْ فَإِنَّكَ سَتَلْقَاهُ فَكَانَ مُوسَى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ يَتَّبِعُ أَثَرَ الْحُوتِ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ فَتَى مُوسَى لِمُوسَى أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ قَالَ مُوسَى ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِي فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خَضِرًا فَكَانَ مِنْ شَأْنِهِمَا مَا قَصَّ اللَّهُ فِي كِتَابِهِ [ر: ٧٤]

## رجال الحديث

① ابوالقاسم خالدبن خلی: دا قاضی ابوالقاسم خالدبن خلی (١) الکلاعی الحمصی رحمه الله دی.(٢)

دوی د محمدبن حرب خولانی، محمدبن حمیر، سلمه بن عبدالملک العوصی، حارث بن عبیده کلاعی، جراح بن ملیح بهرانی اوبقیة بن الولید رحمهم الله وغیره دحدیث روایت کوی.

ددوی نه روایت کونکوکښې امام بخاری، امام ابوزرعه دمشقی، ابراهیم بن مسلم طرطوسی، محمدبن مسلم بن داره رازی، محمدبن عوف طائی، او خپله ددوی خوئی محمدبن خالد خلی رحمهم الله وغیره حضرات دی.(٣)

امام بخاری رحمه الله فرمائی. ((صدوق)) (٤)

امام نسائی رحمه الله فرمائی. ((لیس به بأس))(٥)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی. ((لیس شئ ینکر))(٦)

خلیلی رحمه الله فرمائی. ((ثقة))(٧)

---

(١)((خلی)) په ددو طریقو سره ضبط شوی دی. بفتح الخاء وکسر اللام المخففة وسکون الیاء بدون التشدید کما فی الکاشف للذهبی (٣٦٣/١) رقم ١٣١٢ وانظر الإستدراک فی آخر الکاشف (٥٨٣/٢) وبفتح الخاء وکسر اللام المخففة وتشدید الیاء بوزن علی کما فی التقریب (٨٧) رقم ١٦٢٤)_

(٢)تهذیب الکمال(٥٠/٨ و ٥١) وسیر أعلام النبلاء (٦٤٠/١١)_

(٣)داستاذانو اوشاگردانو تفصیل دپاره اوگورئ ((تهذیب الکمال (٥١/٨) وسیر أعلام النبلاء(٦٤٠/١١)_

(٤)تهذیب الکمال(٥١/٨)_

(٥)المصدر السابق وسیر أعلام النبلاء (٦٤٠/١١)_

(٦)تهذیب الکمال(٥١/٨ و ٥٢)_

(٧)تهذیب التهذیب (٨٦/٣)_

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي «كان من نبلاء العلماء»(١)

دغه شان دوی فرمائي «ثقة»(٢)

ابن حبان رحمه الله دوی په كتاب الثقات كښې ذكر كړی دی.(٣)
دوی د وفات كال يقيني طور باندې معلوم نه دې.حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي. غالباً په ٢٢٠ﻫ نه پس دوی وفات شوی دی.(٤)

دوی په ٢١٨ﻫ كښې وفات شوی وو.(٥) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

② محمدبن حرب: دوی محمدبن حرب خولاني حمصي ابرش رحمه الله دی.ددوی حالات اوس په مخكښې باب كښې تيرشو.

③ اوزاعي: دوی د شام مشهور عالم،فقيه او امام عبدالرحمن بن عمرو بن ابی عمرو يُحمد اوزاعي شامي رحمه الله دی.ددوی كنيت ابوعمرو دې.(٦)
امام اوزاعي رحمه الله مستقل د يومكتب فكرياني وو.دائمه اربعه پشان خلق ددوی په مذهب باندې عمل كونكی وو.روسته د نوررو مذاهبوپشان ددوی مذهب هم ختم شو.(٧)

دوی په تبع تابعينوكښې وو.(٨)
دوی په تابعينوكښې د عطاء بن ابی رباح،قتادة،نافع مولی ابن عمر،امام زهری،اومحمدبن المنكدر رحمهم الله نه استفاده كړې ده.
دغه شان ئې د حسان بن عطيه،امام اعمش،عبدالملك بن عبدالعزيزبن جريج،عبده بن ابی لبابه،علقمه بن مرثد،عمروبن شعيب،محمدبن الوليد الزبيدی.مكحول شامي،يحيی بن سعيدانصاری،اويحيی بن ابی كثير رحمهم الله وغيره ډيروحضراتونه هم د حديث روايت كړې دې.
ددوی نه په روايت كونكوكښې ابواسحاق فزاری،اسماعيل بن عياش،ابوضمره انس بن عياض،بشربن بكر تنيسي،بقية بن الوليد،خارجه بن مصعب،سفيان ثوری،امام شعبه، عبدالله بن المبارك،عبدالرحمن بن ابی الزناد،عبدالرزاق بن همام،عبيدالله بن موسی

---

(١)سير أعلام النبلاء (١٠\٦٤٠)_
(٢)الكاشف (١\٣٦٣) رقم ١٣١٢)_
(٣)الثقات لابن حبان (٨\٢٢٥)_
(٤)سير أعلام النبلاء (١٠\٦٤١)_
(٥)الكاشف (١\٦١١) رقم ٣٠٨٢)_
(٦)تهذيب الكمال(١٧\٣٠٧و ٣٠٨)_
(٧)كان له مذهب مستقل مشهورعمل به فقهاء الشام مدة وفقهاء الأندلس ثم فنى .سير أعلام النبلاء(٧\١١٧) وتهذيب الأسماء واللغات(١\٢٩٩)_
(٨)التهذيب للنووی(١\٢٩٩)_

عبسى. عيسى بن يونس، قتاده .((وهو من شيوخه)) مالك بن انس. محمدبن حرب خولانى. امام زهرى((وهو من شيوخه)) معافى بن عمران موصلى الهقل بن زياد((وهو أثبت الناس فيه))وكيع بن الجراح. يحى بن سعيد القطان. يحيى بن ابى كثير .((وهو من شيوخه)) اويونس بن يزيد ايلى رحمهم الله وغيره دى(۱)

امام عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله فرمائى.((الأئمة فى الحديث أربعة الأوزاعى، ومالك وسفيان الثورى، وحمادبن زيد رحمهم الله))(۲)

دغه شان دوى فرمائى.((ماكان بالشام أحد أعلم بالسنة من الأوزاعى))(۳)

سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى.((كان الأوزاعى إمام أهل زمانه))(۴)

امام بخارى رحمه الله د عيسى بن يونس رحمه الله نه نقل كوى.((كان الأوزاعى حافظاً))(۵)

امام عجلى رحمه الله فرمائى.((ثقة من خيار الناس))(۶)

امام مالك رحمه الله فرمائى.((كان إماماً يقتدى به))(۷)

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائى.((والأوزاعى ثقة ثبت))(۸)

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى.((ثقة ما أقل ما روى عن الزهرى))(۹)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((إمام متبع لما سمع))(۱۰)

ابن سعد رحمه الله فرمائى.((وكان ثقة مأموناً صدوقاً فاضلاً خيراً كثير الحديث والعلم والفقه حجة))(۱۱)

ابن حبان رحمه الله فرمائى.((وكان من فقهاء الشام وقرائهم زهادهم ومرابطيهم))(۱۲)

---

(۱) ددوى د شيوخواوتلامذو د تفصيل دپاره اوگورئ تهذيب الكمال(۳۰۸\۱۷و ۳۱۲) وتهذيب النووى(۲۹۹\۱) وسير أعلام النبلاء(۱۰۸\۷و ۱۰۹)_

(۲)تهذيب الكمال(۳۱۳\۱۷) وتهذيب النووى(۳۰۰\۱)_

(۳)المصادر السابقة)_

(۴)تهايب الكمال(۳۱٤\۱۷) وتهذيب الكمال(۲٤۰\٦)_

(۵)التاريخ الصغير(۱۱۷)_

(٦)تعليقات تهذيب الكمال(۳۱٦\۱۷) نقلاً عن ثقات العجلى(الورقة:۳۳) وانظر تهذيب التهذيب(۲٤۱\٦)-

(۷)سير أعلام النبلاء(۱۱۲\۷)_

(۸)تهذيب الكمال(۲٤۱\٦)_

(۹)تهذيب الكمال(۳۱۳\۱۷)_

(۱۰)تهذيب الكمال۳۱٤\۱۷)_

(۱۱)طبقات ابن سعد(٤۸۸\۷)_

(۱۲)الثقات لابن حبان(٦۳\۷)_

فلاس رحمه الله فرمائي «الأوزاعي ثبت»[1]
امام ذهبي رحمه الله فرمائي «الأوزاعي إمام ثقة وليس هو في الزهري كمالك وعقيل»[2]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي «ثقة جليل»[3]
دامام اوزاعي رحمه الله وفات د راجح قول مطابق په ١٥٧ھ كښې شوې وو.[4] رحمه الله تعالى رحمة واسعة، د دوى د تفصيلي حالاتو دپاره د .. سير اعلام النبلاء.. مراجعت اوكړئ.[5]
④ الزهري: دوى امام محمد بن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب زهري رحمه الله دى. ددوى حالات په «بدء الوحي» كښې د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.[6]
⑤ عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود: د دوى حالات د «باب متى يصح سماع الصغير» باندې لاندې تيرشوى دى.
⑥ ابن عباس رضي الله عنهما: دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات په «بدء الوحي» كښې د څلورم حديث لاندې تيرشوى دى.[7] اوپه «كتاب الإيمان» كښې د «باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې تيرشوى دى.[8] څه حالات اوس د «باب متى يصح سماع الصغير» لاندې تيرشو.
امام بخاري رحمه الله په دې باب كښې هم هغه حديث ذكركړې دې. كوم چه ئې په «باب ما ذكر في ذهاب موسى عليه السلام في البحر إلى الخضر عليه السلام» لاندې راوړې وو. دحديث پوره تشريح هلته تيره شوې ده.

## ٢٠=بَاب فَضْلِ مَنْ عَلِمَ وَعَلَّمَ

**دمخكنى باب سره ربط:** مخكښې باب «باب الخروج في طلب العلم» كښې دمتعلم اومعلم حال ذكروو. په دې باب كښې امام بخاري رحمه الله ددوى فضيلت بيانوى.[9]
**د ترجمة الباب مقصد:** ترجمة الباب دهغه كس په فضيلت كښې دې. چه هغه دتعليم اوتعلم يعنى په خپله دزده كولواوبل ته د خودلوفضيلتونو لره جمع كونكې وى. په دې تمثيل كښې

---

[1] تهذيب التهذيب(٢٤١/٦)_
[2] ميزان الإعتدال(٥٨٠/٢)_
[3] تقريب التهذيب(٣٤٧) رقم ٣٩٦٧)_
[4] تهذيب الكمال(٣١٥/١٧) وسير أعلام النبلاء(١٢٧/٧و ١٢٨)_
[5] ددوى د تفصيلي حالاتودپاره اوګورئ سير أعلام النبلاء(١٠٧/٧و ١٣٤)_
[6] كشف الباري(٣٢٦/١)_
[7] كشف الباري(٤٣٥/١)_
[8] كشف الباري(٢٠٥/٢)_
[9] عمدة القاري(٧٦/٢)_

«فعلم وعلم» په سياق دمدح كښې بيانولوسره دا خبره ښكاره كوى.چه عالم متعلم د مجرد عالم نه په فضيلت كښې غوره دې.اوهم دا د ترجمې مقصد دې.

دلته دې دا خبره واضحه وى.چه دترجمة الباب مقصد دمجموعة امرينو فضيلت دې. د احدُ الامرين فضيلت نه دې.يعنى د«باب فضل من علم وعلم» مطلب دې.«فضل من علم فضل من علم» نه دې بلكه مطلب دا «فضل من علم ثم علم» دې.(١)

[٧٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى (٢) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ مِنَ الْهُدَى وَالْعِلْمِ كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيرِ أَصَابَ أَرْضًا فَكَانَ مِنْهَا نَقِيَّةٌ قَبِلَتِ الْمَاءَ فَأَنْبَتَتِ الْكَلَأَ وَالْعُشْبَ الْكَثِيرَ وَكَانَتْ مِنْهَا أَجَادِبُ أَمْسَكَتِ الْمَاءَ فَنَفَعَ اللَّهُ بِهَا النَّاسَ فَشَرِبُوا وَسَقَوْا وَزَرَعُوا وَأَصَابَتْ مِنْهَا طَائِفَةً أُخْرَى إِنَّمَا هِيَ قِيعَانٌ لَا تُمْسِكُ مَاءً وَلَا تُنْبِتُ كَلَأً فَذَلِكَ مَثَلُ مَنْ فَقُهَ فِي دِينِ اللَّهِ وَنَفَعَهُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ فَعَلِمَ وَعَلَّمَ وَمَثَلُ مَنْ لَمْ يَرْفَعْ بِذَلِكَ رَأْسًا وَلَمْ يَقْبَلْ هُدَى اللَّهِ الَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ إِسْحَاقُ وَكَانَ مِنْهَا طَائِفَةٌ قَيَّلَتِ الْمَاءَ قَاعٌ يَعْلُوهُ الْمَاءُ وَالصَّفْصَفُ الْمُسْتَوِي مِنَ الْأَرْضِ

## رجال الحديث

① محمد بن علاء: ابوكريب محمد بن العلاء بن كريب همدانى كوفى رحمه الله دى.(٣)

په ١٦١ھ كښې پيدا شوې وو.(٤)

دوى دهشيم، ابوبكربن عياش، يحيى بن ابى زائده، عبدالله بن المبارك ، اسماعيل بن عليه، سفيان بن عيينه، حفص بن غياث، ابواسامه بن حمادبن اسامه ابومعاويه ضرير، يونس بن بكير، محمدبن فضيل بن غزوان ،وكيع بن الجراح اويحى بن يمان رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.

ددوى نه په روايت كونكوكښې اصحاب اصول سته، محمدبن يحيى ذهلى، ابوزرعه، ابوحاتم رازى، ابن ابى الدنيا ،بقى بن مخلداندلسى، ابو عروبه، محمدبن هارون رويانى، ابويعلى موصلى اوجعفربن محمدفريابى رحمهم الله وغيره ډير حضرات دى.(٥)

---

(١) الأبواب والتراجم ازشيخ الهندقدس سره (ص.٤٩)_

(٢) قوله : عن أبى موسى رضى الله عنه الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الفضائل باب بيان مثل ما بعث النبى صلى الله عليه وسلم من الهدى والعلم رقم (٥٩٥٣)_

(٣) تهذيب الكمال(٢٦\٢٤٣)_

(٤) سيرأعلام النبلاء(١١\٣٩٤)_

(٥) دشيوخ اوشاګردانو دپاره اوګورئى .تهذيب الكمال(٢٦\٢٤٣و ٢٤٦) وسيرأعلام النبلاء (١١\٣٩٤و ٣٩٥)

امام نسائى فرمائى. «لابأس به»[1]
دغه شان دوى فرمائى. «ثقة»[2]
ابو عمرو الخفاف رحمه الله فرمائى. «ما رأيت من المشائخ بعد إسحاق بن ابراهيم أحفظ من أبي كريب»[3]
ابراهيم بن ابى طالب رحمه الله فرمائى. «لم أر بعد أحمد بن حنبل رحمه الله أحفظ من أبي كريب»[4]
ابوحاتم رحمه الله فرمائى. «صدوق»[5]
مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائى. «كوفي ثقة»[6]
ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړى دى.[7]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «ثقة حافظ»[8]
په كال ۲۴۸هـ كښې وفات شوى وو.[9] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ حماد بن اسامه: دوى ابواسامه حماد بن اسامه بن زيد قرشى كوفى دى.[10]
دوى د هشام بن عروه، امام اعمش، سعيد بن ابى عروبه، شعبه، سفيان ثورى، سليمان بن المغيره، مالك بن مغول، مجالد بن سعيد، شريك بن عبدالله نخعى، ابوبرده بريد بن عبدالله بن ابى برده، عبدالرزاق بن همام، عبيدالله بن عمر، فضيل بن غزوان، وليد بن كثير، يحيى بن المهلب رحمهم الله وغيرنه روايت حديث كړې دې.
او دوى نه روايت كونكوكښې عبدالرحمن بن مهدى، امام شافعى، قتيبه بن سعيد، امام احمد، امام اسحاق، ابوخيثمه، ابراهيم بن سعيد جوهرى، احمد بن الفرات، محمود بن غيلان، ابوبكر بن ابى شيبه، عثمان بن ابى شيبه، على بن المدينى، محمد بن عبدالله بن نمير، ابو كريب، محمد بن العلاء، امام يحى بن معين، محمد بن المثنى، او محمد بن يوسف بيكندى رحمهم الله وغيره د ير حضرات دى.[11]

---

[1] تهذيب الكمال (۲۶\۲۴۷)_
[2] المصدر السابق)_
[3] المصدر السابق)_
[4] المصدر السابق)_
[5] سير أعلام النبلاء (۱۱\۳۹۵)_
[6] تهذيب الكمال (۱۹\۳۸۶)_
[7] الثقات (۹\۱۰۵)_
[8] تقريب التهذيب (۵۰۰) رقم ۶۲۰۴)_
[9] الكاشف (۲\۲۰۸) وسير أعلام النبلاء (۹\۲۷۷)_
[10] تهذيب الكمال (۷\۲۱۷و۲۱۸) وسير أعلام النبلاء (۹\۲۷۷)-
[11] د شيوخ او ملامذو د پاره اوګورئ، تهذيب الكمال (۷\۲۱۸و ۲۲۲) وسير أعلام النبلاء (۹\۲۷۷و ۲۷۸)_

امام احمد رحمه الله فرمائى: «أبو أسامة ثقة كان أعلم الناس بأمور الناس وأخبار أهل الكوفة وما كان أرواه عن هشام بن عروة»[1]

دغه شان دوى فرمائى: «كان ثبتاً ما كان أثبته لا يكاد يخطئ»[2]

دغه شان دوى فرمائى: «أبو أسامة أثبت من مائة مثل أبي عاصم كان أبو أسامه صحيح الكتاب ضابطاً للحديث كيساً صدوقاً»[3] امام يحيى بن معين رحمه الله دوى «ثقة» گرځولى دى.[4]

سفيان رحمه الله فرمائى: «ما بالكوفة شاب أعقل من أبي أسامة»[5]

ابن سعد رحمه الله فرمائى رحمه الله: «كان ثقة مأموناً كثير الحديث يدلس ويبين تدليسه وكان صاحب سنة وجماعة»[6] امام عجلى رحمه الله فرمائى: «كان ثقة وكان يعد من حكماء أصحاب الحديث»[7] ابن قانع رحمه الله فرمائى: «كوفي صالح الحديث»[8]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړى دى.[9]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «حجة عالم أخبارى»[10] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: «ثقة ثبت ربما دلس وكان بأخرة يحدث من كتب غيره»[11]

خنګه چه د علماء جرح وتعديل اقوال ستاسو وړاندې دى. ټولو ددوى توثيق كړې دې. البته په دوى باندې دوه الزامات دى. يو دا چه دوى به تدليس كول. دويمه دا چه سرقه د حديث ئې كولو دابن سعد قول ذكرشو. دوى فرمائى رحمه الله «يدلس ويبين تدليسه» دغه شان دحافظ ابن حجر رحمه الله قول وړاندې نقل شو. «ربما دلس»

دغه شان ازدى د سفيان بن وكيع نه نقل كړى دى. «إني لأعجب كيف جاز حديث أبي أسامة كان أمره

---

[1] تهذيب الكمال(۷\۲۲۲) وسير أعلام النبلاء(۹\۲۷۸)_
[2] المصادر السابقة)-
[3] المصادر السابقة)_
[4] تارخ الدارمى(۹۲) رقم ۲٤۲)_
[5] تهذيب الكمال(۷\۲۲۳) وسير أعلام النبلاء(۹\۲۷۸)_
[6] الطبقات لابن سعد(۶\۳۹۵)_
[7] تهذيب التهذيب(۳\۳)_
[8] تهذيب التهذيب(۳\۳)_
[9] الثقات لابن حبان(۶\۲۲۲)_
[10] الكاشف(۱\۳٤۸) رقم ۱۲۱۲)_
[11] تقريب التهذيب(۱۷۷) رقم ۱٤۸۷)_

بيناً وكان من أسرق الناس لحديث جيد»(١)
ددې الزاماتودا جواب دې چه ترځو پورې د تدليس تعلق دې نوورسره دابن سعد رحمه الله قول تيرشو چه «وهو يدلس تدليسه» يعنى هغوى به ځيل تدليس بيانولو. نو په داسې صورت كښې څه عيب نشته.
تركومې پورې چه د سفيان بن وكيع رحمه الله دقول تعلق دې نوسفيان پخپله ضعيف دې (٢) اود دوى نه نقل كونكې ازدى هم ضعيف دې.(٣)
حافظ ذهبى رحمه الله ددوى تذكره په «ميزان الإعتدال» كښې كړې ده اود «إني لأعجب..» ددې قول نسبت ئې سفيان ثورى ته كړې دې.(٤) حالانكه د دې قائل سفيان ثورى رحمه الله نه دې بلكه سفيان بن وكيع دې.(٥)
ددې باوجودحافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «أبوأسامة لم أورد لشيء فيه ولكن ليعرف أن هذا القول باطل»(٦)
خلاصه دا چه ابواسامه ثقه اوثبت راوى داصول سته اصحابو ددوى احاديث په اتفاق قبول كړى دى.(٧) په ٢٠١هـ كښې وفات شوې وو.(٨)
④ بريدبن عبدالله: ددوى مختصره تذكره په «كتاب الإيمان» كښې د «باب أى الإسلام أفضل؟» لاندې تيره شوې ده.(٩)
دوى ابوبرده بريدبن عبدالله بن ابى بردة بن ابى موسى الاشعرى كوفى رحمه الله دى.(١٠)

---

(١) تهذيب التهذيب(٣\٣)_
(٢) الكاشف(٢٢٩\١) رقم ٢٠٠٥)_
(٣) الأزدى:هو ابوالفتح محمدبن الحسين الأزدى الموصلى.له ترجمة فى ميزان الإعتدال(٥٢٣\٣)..
قال الحافظ فى هدى السارى (ص.٤٠٠) فى ترجمة خثيم بن عراك الغفارى .. وشذ الأزدى فقال منكر الحديث . وغفل أبومحمد بن حزم فاتبع الأزدى وأفرط فقال لا تجوز الرواية عنه وما درى أن الأزدى ضعيف فكيف يقبل منه تضعيف الثقات)..
وانظر الرفع والتكميل للإمام اللكنوى وتعليقات شبخنا الفاضل العلامة عبدالفتاح أبوغدة رحمهما الله تعالى (ص.٢١٧و ٢٧٤)_
(٤) ميزان الإعتدال(٥٨٨\١) رقم ٢٢٣٥)_
(٥) هدى السارى(٣٩٩) وتهذيب التهذيب(٣\٣)_
(٦) ميزان الإعتدال(٥٨٨\١) رقم ٢٢٣٥)_
(٧) هدى السارى(ص.٣٩٩)_
(٨) الكاشف(٣٤٨\١) رقم ١٢١٢)_
(٩) كشف البارى(٦٩٠\١)_
(١٠) تهذيب الكمال(٥٠\١٤)_

دوی دخپل نیکه حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه دخپل پلار عبدالله بن ابی برده، حسن بصری، عطاء بن ابی رباح، ابوایوب صاحب انس رحمهم الله نه روایت کړې دې.
اوددوی نه روایت کونکی ابواسامه حمادبن اسامه، سفیان ثوری، سفیان بن عیینه، عبدالله بن المبارك، حفص بن غیاث، علی بن مسهر، ابونعیم، ابومعاویه، ضریر، یحی بن سعید اموی رحمهم الله وغیره حضرات دی.(۱)

ابن معین اوعجلی رحمهما الله فرمائی.((ثقة))(۲)

امام ابوداوداوامام ترمذی رحمهما الله هم دوی لره ثقه ګرخولې دی.(۳)

امام نسائی رحمه الله فرمائی.((لیس به بأس))(۴)

خودامام نسائی رحمه الله نه دا هم منقول دی.((لیس بذاك القوی))(۵)

امام احمد رحمه الله فرمائی.((برید یروی أحادیث مناکیر))(۶)

ابن حماد رحمه الله فرمائی.((لیس بذاك القوی))(۷)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.((لیس بالمتین یکتب حدیثه))(۸)

خلاصه دا چه بعضې امامانو رجالو مثلاً امام یحیی بن معین، امام ترمذی، امام عجلی، اوامام ابوداود رحمهم الله مطلقاً ددوی توثیق کړې دې. حالانکه نورو عالمانو رحمهم الله ددوی لږ غوندې تضعیف کړې دې.

دامام نسائی نه چه((لیس بذاك القوی))تضعیف منقول دې نوورسره ((لیس به بأس)) توثیق هم مروی دې.

بیاحافظ رحمه الله دا تصریح کړې ده چه امام نسائی په((لیس بذاك القوی))سره د راوی غیرحافظ ته اشاره کوی.(۹)

---

(۱) دشیوخ اوتلامذه دپاره اوګورئ تهذیب الکمال(۵۰/۱٤)_
(۲) تهذیب الکمال(۵۱/۱٤)_
(۳) تهذیب التهذیب(٤۳۲/۱)_
(٤) تهذیب الکمال(۵۱/۱٤)_
(۵) الضعفاء والمتروکین للنسائی(ص.۲۸۶)_
(۶) الضعفاء للعقیلی(۱۵۸/۱)_
(۷) الکامل لابن عدی(۶۲/۲)_
(۸) تهذیب الکمال(۵۱/۱٤)_
(۹) قال الحافظ فی هدی الساری(ص.۳۸۶) ترجمة أحمدبن بشیرالکوفی. فأما تضعیف النسائی له فمشعربأنه غیر حافظ)

امام احمد رحمه الله بعضې وخت د ((مناكير)) اطلاق په .. افراد .. اوغرائب .. باندې هم كوى.[1]
دلته كښې هم دا خبره ده ځكه چه ددوى احاديث اصحاب اصول ستة قبول كړى دى.[2]
حافظ ابن عدى رحمه الله فرمائى: ((روى عنه الأئمة والثقات ولم يرو عنه أحد أكثرمما رواه ابوأسامة وأحاديثه عنه مستقيمة وهوصدوق وقد أدخله أصحاب الصحاح فيها .. وأرجوأن لايكون به بأس))[3]
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ((وهوصدوق موثق))[4]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: ((احتج به الأئمة كلهم وأحمد وغيره يطلقون المناكيرعلى الأفراد المطلقة))[5]
دوى د ۱۴۰ھ نه پس وفات شوى وو.[6] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ ابوبُردة: ددوى نوم عامريا حارث دې.دوى دحضرت ابوموسى اشعرى رضى الله عنه خوئې دې او بريدبن عبدالله چه ددوى راوى دې ددوى نيكه دې.
ددوى حالات په ((كتاب الإيمان باب أى الإسلام أفضل)) لاندې تيرشوى دى.[7]

⑤ حضرت ابوموسى اشعرى رضى الله عنه: ددوى حالات هم په مذكوره باب كښې تيرشوى دى.

**قوله**: مَثَلُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ مِنَ الْهُدَى وَالْعِلْمِ كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيرِ أَصَابَ أَرْضًا: الله تعالى چه دهدايت اوعلم خبرې راكړې دى.اوزه ئې راليږلې يم ددې مثال د تيزباران دې چه په زمكه باندې اووريږى.
((مثل)) دصفت عجيبه دپاره راځى.دلته هم دا معنى مراد ده.[8]
اوكله ((مثل)) د ((قول سائر)) دپاره استعمالوى يعنى هغه كلام كوم چه د يوې خاص واقعه سره تعلق ساتى.اوهغې طرف ته په كښې اشاره وى.[9] لكه ((تابط شرا))

**قوله**: الْهُدَى: دهدايت لفظ مشترك طورباندې د ارشاد يعنى ((إراءة الطريق)) اوتوفيق

---

[1] الرفع والتكميل فى الجرح والتعديل(ص.۲۰۱و ۲۰۲)_
[2] هدى السارى(ص.۳۹۲)_
[3] الكمال لابن عدى(۲\۶۳و ۶۴)_
[4] تعليقات تهذيب الكمال (۱۴\۵۴) نقلاً عن تاريخ الإسلام للذهبى)_
[5] هدى السارى(۳۹۲)_
[6] سيرأعلام النبلاء(۶\۲۵۲)_
[7] كشف البارى(۱\۶۹۰)_
[8] فتح البارى(۱\۱۷۶)_
[9] المصدرالسابق)_

اوتائيد اوحفظ اوعصمت يعنى ((ايصال الى المطلوب)) دپاره استعماليږى.(١)
كله چه نبى كريم ﷺ يا قرآن يا عاموخلقو ته نسبت اوشى.نومراد ترې اولنئ معنى وى.يعنى ((اراءة الطريق)) لكه ﴿وَاِنَّكَ لَتَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ (٢)او﴿اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ هِيَ اَقْوَمُ﴾ (٣)
﴿ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيْهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ﴾ (٤)
اوكه الله تعالى طرف ته منسوب وى.نوكله خو هم دا ((اراءة الطريق)) معنى مراد وى.لكه ﴿وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ﴾ (٥) وأما ثمود فهديناهم فاستحبوا العمى على الهدى(٦) اوكله دتوفيق اوتائيد په معنى كښې يعنى دويمه معنى (ايصال الى المطلوب) كښې استعماليږى.لكه آيت كريمه دې.﴿اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ﴾ (٧)

**قوله:** الْعِلْمِ: ددې نه مرادهغه علم دين دې.كوم چه الله تعالى د نبى ﷺ په قلب باندې نازل كړې وو.يعنى قران عظيم.كوم ته چه وحى متلو وائى.دغه شان داحاديثو په صورت كښې چه ئې د نبى ﷺ په زړه باندې القاء كړې ده.كوم ته چه وحى غيرمتلو وائى.

**قوله:** الْغَيْثِ الْكَثِيْرِ: غيث هغه باران ته وائى.كوم چه ډيرد فائدې وى.(٨)
نبى كريم ﷺ خپل علوم ربانيه كوم چه دوى ته وركړې شوى وو.اوهغه هدايت كوم چه دوى ته وركړې شوې وو.دهغه باران سره تشبيه وركړه.كوم چه د قحط سالئ په زمانه كښې راځى.اوپه ښه شان سره خلق هډوبوى.نولكه څنګه چه دغه باران په مړه زمكه كښې ژوند پيدا كوى.دغه شان كله چه نبى ﷺ پيغمبرجوړشو.نوپه دنياكښې دجهالت تيرې خورې شوې وې.خلق دهدايت تږى وو.خوهغوى ته دهدايت چينه معلومه نه وه.الله تعالى د نبى كريم ﷺ په ذريعه د هدايت باران اوكړو.په كوم سره چه مړه زړونه ژوندى شول.

**قوله:** أَصَابَ أَرْضًا فَكَانَ مِنْهَا نَقِيَّةٌ قَبِلَتْ الْمَاءَ فَأَنْبَتَتْ الْكَلَأَ وَالْعُشْبَ الْكَثِيْرَ: هغه باران كله چه په زمكه باندې اوشو.نوبعضې زمكې ښې وې.اوبه ئې جذب كړې.اوپه هغې كښې ښه ګياه او شينكئ پيدا شوه.
باران چه كله په زمكه اوشو.نو دزمكې د مختلفوحصو په اعتبار سره مختلف ثمرات او

---

(١) د تفصيل دپاره اوګورئ روح المعانى(١١/٩١و ٩٢)_
(٢) سورة الشورى:٥٢)_
(٣) الإسراء:٩)_
(٤) سورة البقرة:٢)_
(٥) البلد:١٠)_
(٦) فصلت:١٨)_
(٧) القصص:٥٦)_
(٨) الغيث:المطر.. وقيل هو المطر الخاص بالخير الكثير النافع .. تاج العروس(١١/٩٣٧)_

آثار مرتب شول. يوه حصه د داسې زمکې وه. کومه چه «نقية» يعنى زرخيزه وه.

«نقية» دبخارى په ټولونسخوکښې هم دغه شان «نقية» په نون اوقاف سره ده.[1] مراد زرخيزه زمکه ده. اوپه مسلم شريف کښې د«نقية» په ځائې «طيبة» واقع شوې ده.[2] دغې معنى هم زرخيزه زمکه ده.

دامام خطابى، حميى رحمهما الله وغيره په روايت کښې دى. «ثغبة (بالثاء المثلثة المفتوحة والغين المعجمة المكسورة بعدها باء موحدة خفيفة مفتوحة» ضبط کړې ده.[3]

خطابى رحمه الله فرمائى. «ثغبة» هغه کندوته وائى. کوم چه په غرونو او کانړو کښې وى. په کوموکښې چه د باران اوبه جمع کيږى.[4]

قاضى عياض رحمه الله فرمائى. چه دا «رواية» هم غلط دې. اومعناً هم غلط دې. ځکه چه دلته نې «نقية» وئيلى دى. دطائفه اولى صفت کول مقصود دى. او که «ثغبة» اوګرځولې شى. نودا به د دويمې ډلې صفت شى.[5]

په يوروايت کښې «بقعة» هم راغلى دى. دکوم معنى چه «طائفة» ده.[6]

ابن رجب رحمه الله فرمائى. چه په يو روايت کښې «بقية»، بالباء الموحدة مكان النون،، راغلى دى.[7]

ابن رجب رحمه الله فرمائى. چه ددې معنى «القطعة الطيبة» ده. اودا معنى صحيح ده. لکه څنګه چه وئيلې شى. «فلان بقية الناس» يعنى په نيکانوکښې خواوس بس فلانې پاتې شوې دې.[8] والله أعلم.

**قوله: الْكَلَأَ وَالْعُشْبَ الْكَثِيرَ:** «كلاء» مطلقاً ګياه ته وائى. برابره ده که شنه ګياه وى اوکه وچه. او«عشب» شنې ګياه ته وائى.[9] لکه چه دا «من قبيل عطف الخاص على العام» دې.[10]

---

[1] فتح البارى (١\١٧۶)_
[2] صحيح مسلم كتاب الفضائل باب بيان مثل ما بعث النبى ﷺ من الهدى والعلم رقم ۵۹۵۳)_
[3] فتح البارى (١\١٧۶) وأعلام الحديث للخطابى (١\١٩٧)_
[4] أعلام الحديث (١\١٩٨)_
[5] فتح البارى (١\١٧۶)_
[6] المصدر السابق)_
[7] فتح البارى (١\١٧۶)_
[8] المصدر السابق)_
[9] مختار الصحاح (ص. ۵٧۵) ماده ک.ل. و(ص. ۴٣٣) ماده ع. ش. ب)_
[10] فتح البارى (١\١٧۶)_

**قوله** وَكَانَتْ مِنْهَا أَجَادِبُ أَمْسَكَتِ الْمَاءَ فَنَفَعَ اللّٰهُ بِهَا النَّاسَ فَشَرِبُوا وَسَقَوْا وَزَرَعُوا: او بعضې زمکې سخته کانړيچنه وه چه اوبه ايسارې کړې. الله تعالى په هغې سره هغه خلقو ته فائده ورکړه. چاچه پخپله اوڅکلې او(څاروباندې نې) اوڅکولې. اوکرکونده نې پرې اوکړه.

«أجادب» دا خلاف القياس «جدب» (بفتح الدال المهملة) جمع ده. «وهي الأرض الصلبة التي لا ينصب منها الماء» يعنى جندب داسې زمکې ته وائي. کومه چه کلکه او سخته وي. اوبه هغې کښې دننه اوبه نشي تلې.(۱)

ذا ذکرشوې روايت د اکثرو حضراتود روايت مطابق دې. اوداېوذر رضي الله عنه په روايت کښې «إخاذات» (بکسر الهمزة وبالخاء والذال المعجمتين بينهما ألف وآخره مثناة من فوق قبلها ألف)، راغلي دې.(۲) دا د «إخاذة» جمع ده. حوض ته وائي.(۳)

بيا اسماعيلي دابوکريب نه «أحارب» نقل کړې دی.(۴) خوخطابی رحمه الله فرمائي. «ليست هذه الرواية بشيء»(۵)

بعضودا «أجارد» لوستې دې. کوم چه د «جرداء» جمع ده. «جرداء» داسې اوچتې زمکې ته وائي. په کومه کښې چه څه نه رازغونيږي.(۶)

امام خطابی رحمه الله فرمائي. که دا لفظ روايةً ثابت شي. نومعنى نې صحيح کيدې شي.

صاحب دمطالع دا ټول اختلافات روايةً ثابت کړې دی.(۷) حالانکه په صحيحينوکښې صرف دوه قسم روايات ثابت دی. يعنى «أجادب» او «إخاذات»(۸)

**قولــه**: زَرَعُـوا: دلتـه دا لفظ د «زرع» نـه مـشتق دې. حالانکـه دمـسلم پـه روايت کښـې «رعوا» راغلي دې.(۹)

---

(۱) فتح الباري (۱۱/۱۷۶) وتاج العروس (۱۱/۱۷۷)_

(۲) فتح الباري (۱۱/۱۷۶)_

(۳) تاج العروس (۱۱/۱۷۷)_

(۴) فتح الباري (۱۱/۱۷۶) وأعلام الحديث (۱۱/۱۹۸)_

(۵) المصادر السابقة)_

(۶) المصادر السابقة)_

(۷) فتح الباري (۱۱/۱۷۶)_

(۸) المصدر السابق)_

(۹) صحيح مسلم كتاب الفضائل باب بيان مثل ما بعث النبي ﷺ من الهدى والعلم رقم ۵۹۵۳)_

کوم چه د ((رعى)) يعنى څرولونه مشتق دي.امام نووى رحمه الله فرمائي.دواړه معانى صحيح دى.(١)

**قوله** وَأَصَابَتْ مِنْهَا طَائِفَةً أُخْرَى إِنَّمَا هِيَ قِيعَانٌ لَا تُمْسِكُ مَاءً وَلَا تُنْبِتُ كَلَأً:

اوپه بعضې داسې زمکه باندې باران اووريږى.کوم چه صفا ميدان وى.چه نه اوبه اوبساروى.اونه په هغې کښې گياه راټوکيږى.

**قوله** قِيعَانٌ: دا ((قاع)) جمع ده.د ((قاع)) معنى ده ((الأرض المتسعة المستوية)) او بعضې وائى ((الأرضة الملساء)) اوبعضې وائى ((الأرض التي لا تنبت))(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله دلته دا درې واړه معانى جمع کړى دى.اوليکلى دى ((الأرض الملساء التي لاتنبت))(٣) يعنى هغه سخت ميدان په کوم کښې چه څه نه راټوکيږى.

**قوله** فَذَلِكَ مَثَلُ مَنْ فَقُهَ فِي دِينِ اللَّهِ وَنَفَعَهُ مَا بَعَثَنِي اللَّهُ بِهِ فَعَلِمَ وَعَلَّمَ: دا دهغه کس مثال دې.چا چه دالله تعالى په دين کښې پوهه پيدا کړه.اوالله تعالى چه په کوم څيزونه راليږلې يم.هغه ته ئې په دې سره فائده اورسوله.نوهغه پخپله زده کړو اونورو ته ئې اوخودل.

د ((فقه)) معنى په لغت کښې د فهم راځى.

((فقه يفقه فقها)) پوهيدل.((فقه يفقه فقاهة)) فقيه جوړيدل.((فقه فقها وفقها)) پيژندل.(٤)

بيا صاحب العين اوعلامه هروى رحمهما الله فرمائى.چه دفقه شرعى اوفقه فى الدين دپاره ((فقه)) بضم القاف، استعماليږى.اوابن دريد رحمه الله فرمائى.چه ((فقه)) بكسر الفاء، استعماليږى.(٥)

ابن التين رحمه الله فرمائى.چه دلته روايت بالكسر دې.مگر مناسب ضمه ده.(٦)

امام نووى رحمه الله فرمائى.روايت دواړه قسمه دې.خوضمه مشهوره ده.(٧)

اوس که دا ،،فقه،، بالضمه وى.نوبيا خو څه اشكال نشته.ځکه چه روايت بضم القاف دې.اودلته

---

(١)شرح النووى على صحيح مسلم(٢\٢٤٧)_

(٢)عمدة القارى(٢\٧٨)_

(٣)فتح البارى(١\١٧٧)_

(٤)دتفصيل دپاره اوگورئ لسان العرب(١٣\٥٢٢)_

(٥)عمدة القارى(٢\٧٨) وشرح نووى لمسلم(٢\٢٤٧) كتاب الفضائل باب بيان مثل ما بعث النبى ﷺ من الهدى والعلم رقم ٥٩٥٣)_

(٦)فتح البارى(١\١٧٧)_

(٧)شرح نووى لصحيح مسلم(٢\٢٤٧)_

چه کومه معنی مراد ده. یعنی ((فقه فی الدین)) د دې د پاره هم بضم القاف استعمالیږی. نو روایت دلغت مطابق دې.

اوکه بالفرض د ابن التین رحمه الله خبره معتبره اوګنړلې شی. چه روایت بکسر القاف دې. نو بیا چونکه د ابن درید د تصریح مطابق ((فقه)) بکسر القاف، د ((فقاهت فی الدین)) د پاره راځی. نو په روایت اولغت کښې به مطابقت اوشی. (۱) والله أعلم.

**قوله: وَمَثَلُ مَنْ لَمْ يَرْفَعْ بِذَلِكَ رَأْسًا وَلَمْ يَقْبَلْ هُدَى اللَّهِ الَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ:**
اودهغه کس مثال چه سرئې اوچت نکړو. اوتوجه ئې اونکړه، اونه ئې دالله تعالی دا هدایت قبول کړو. کوم چه ما راوړې دې.

**په مثال اوممثل له کښې مطابقت:** دلته یواشکال دا کیږی. چه دلته په مثال اوممثل له په مینځ کښې مطابقت نشته. ځکه چه په مثال کښې درې څیزونه ذکر دی. یعنی ((① أرض نقیة طیبة قبلت الماء وأنبت الکلأ والعشب الکثیر ② ارض جدباء أمسکت الماء ③ قیعان لاتمسک ماء ولا تنبت کلاء))

اوپه ممثل له کښې صرف دوه څیزونه ذکر دی. ((① من فقه فی دین الله ونفعه مابعثنی الله به فعلم وعلم ② ومن لم یرفع بذلك رأسا ولم یقبل هدی الله الذی أرسلت به))

ددې اشکال یوجواب خودا ورکولې شی. چه دلته ځنګه په مثال کښې درې څیزونه مذکور دی. په ممثل له کښې هم درې څیزونه مذکور دی.

په دې تفصیل ددرې قسمونو پشان به په ممثل له کښې درې قسمونه داسې جوړیږی. چه یو خو ((من فقه فی دین الله)) دې. دویم قسم ((من نفعه مابعثنی الله به فعلم وعلم)) اودریم قسم ((من لم یرفع بذلك رأسا ولم یقبل هدی الله الذی أرسلت به)) دې.

دغه شان چه درې قسمونه اوګرځولی شی. نود ((نفعه)) نه به وړاندې یو ((من)) موصوله مقدر ګنړلې شی. اوداسې په کلام دعربوکښې وی. دحضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه شعر دې.

**قوله: أمن یهجو رسول الله منکم ویمدحه وینصره سواء:** آیا په تاسوکښې چه څوك د نبی صلی الله علیه وسلم هجو کوی. هغه اوهغه کس څوك چه ستاسوتعریف اومدح کوی. دواړه برابریدې شی؟!

په دې شعرکښې د ((یمدحه)) نه وړاندې ((من)) موصوله مقدر دې. لکه چه اصل عبارت داسې دې. ((أمن یهجو رسول الله منکم ومن یمدحه وینصره سواء)) ددې تفصیل نه به تاسو پوهه شوې ئې.

---

(۱) شرح نووی (۲۴۷/۲) وعمدة القاری (۷۸/۲)_

چه په مثال اوممثل له كښې مطابقت موجود دې.
لكه چه په مثال اوممثل له كښې به د تطبيق صورت دا وى.

①((من فقه فى دين الله)) په مقابله د ((أجادب أمسكت الماء فنفع الله بها الناس))

②((من نفعه بما بعثنى الله به فعلم وعلم)) په مقابله د ((أرض نقية قبلت الماء فأنبتت الكلأ والعشب))

③((من لم يرفع بذالك رأسا ولم يقبل هدى الله)) په مقابله د ((قيعان لاتمسك ماءً ولاتنبت كلأ))[1]

البته دلته دا سوال كيدې شى.چه ((نفعه)) نه وړاندې ئې ((من)) ولې حذف كړو.اودا ئې په ((فقه)) باندې ولې عطف كړو؟

ددې جواب دا دې.چه په دې حذف كښې يوه باريكه اشاره ده.چه دعلم په دې دواړو صورتونوكښې د نفعې رسولووصف مشترك دې.اګرچه نوعيت د انتفاع مختلف دې.

داصل اشكال دويم جواب دا وركولې شى.چه تقسيم ثنائى اوګرځولې شى.هغه داسې چه لكه څنګه په ممثل له كښې دوه څيزونه دى.((من فقه فى دين الله ونفعه ما بعثنى الله به فعلم وعلم)) او ((من لم يرفع بذلك رأسا ولم يقبل هدى الله الذى أرسلت به))

دغه شان په مثال كښې هم ددوو څيزونو اعتبار اوكړې شى.[2]

علامه طيبى رحمه الله فرمائى.چه په حديث كښې صرف ددو طرفونو ذكر دې.يود ((أعلى فى الهداية)) اوبل د ((أعلى فى الضلال)) ددې په مينځ كښې چه كومې دوه درجې دى.يعنى ((من انتفع بالعلم ولم ينفع به غيره)) او((من نفع به غيره ولم ينتفع بنفسه)) هغه متروك دې.د((أعلى فى الهداية)) درجه ئې د((من فقه فى دين الله)) عنوان سره او((أعلى فى الضلال)) ئې په ((من لم يرفع بذلك رأسا)) په عنوان سره ذكركړو.اود عطف تفسيرى پشان ئې د ((فقه)) نه پس ((ونفعه بما بعثنى الله به)) اود ((لم يرفع بذلك رأسا)) نه پس ئې ((ولم يقبل هدى الله الذى أرسلت به)) ذكركړو.په كوم سره چه دجانبيوواضح اوپوره تصور مخامخ راغلو.چه اعلى درجه هدايت يافته هغه كس دې.چاچه علم حاصل كړو.اوبيا ئې پخپله په هغې باندې عمل اوكړو.اونوروته ئې دهدايت لاره اوخودله. دغه شان ((أعلى فى الضلال)) هغه كس دې.چا چه د پيغمبراسلام ﷺ د راوړى اسلام قبلول خولويه خبره.ده.دتكبرپه وجه ئې سر پورته هم نكړو.چه هغې ته اوګورى.

نوڅنګه چه په ممثل له كښې دوه څيزونه دى.دغه شان په مثال كښې هم دوه څيزونه دى.يوه دفائدې زمكه اوبله د هغه زمكه چه فائده نه وركوى.بيا لكه څنګه چه د فائدې د زمكې دوه صورتونه دى.يوه هغه چه پخپله هم فائده اخلى.اونورو ته هم فائده وركوى.اوبله

[1] شرح الكرمانى(۵۸\۲)_
[2] شرح الكرمانى(۵۸\۲)_

هغه چه صرف نورو ته فائده ورکوی او پخپله فائده نه اخلی.(۱)

علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې د «كمثل الغيث الكثير أصاب أرضا..» نه «ارض مقيد» مراد ده یعنی «ارض هی محل الانتفاع» او دا قید ئې د سامع په فهم باندې پریخودې دې ځکه چه په تفصیل کښې چه د کومو دوو صورتونو ذکر دې.هغه هم د قابل انتفاع صورتونه دی.دغه شان چه کومې زمکې سره مقابله شوې ده.هغه ناقابل انتفاع ده.لکه چه دلته هم دوه قسمونه ذکر دی.یو «أرضا هی محل الانتفاع» او دویمه «قيعان لاتمسك ماء ولاتنبت كلأ» ددې تشریح مطابق «أصابت منها طائفة أخرى» مرجع «أصاب أرضا» ده.کوم چه په ابتداء دکلام کښې ذکر دې.او په «أصابت منها» کښې د «منها» د ضمیر مرجع «مطلق أرض» ده «ارض نقية» مجموعه،«كما هو الظاهر»

خلاصه دا شوه.چه د باران کوم مثال چه ئې ورکړې دې.او د زمکې تقسیم ئې کړې دې.دا دوو قسمونو ته شامل ده.یوه قابل انتفاع او بله ناقابل انتفاع،او بیا ئې قابل انتفاع او محل انتفاع په دوو قسمونو کښې تقسیم کړې ده.یوهغه قسم دې.چه په هغې کښې کوم باران وریږی.دهغې د فوائدو او ثمراتو نه فائده اخستې شی.او بل قسم هغه دې.چه بعینه هم دهغه اوبو نه فائده اخستې شی.لکه چه دا په دې خبره باندې تنبیه ده.چه دکومو خلقو دعلم نه فائده اخستې شی.هغه په دوه قسمه دی.یوقسم خلق هغه دی.چه دهغوی دعلم د فوائدو او ثمراتو نه فائده اخستې شی.لکه علماء مجتهدین، او یوقسم هغه خلق دی.چه بعینه دهغوی دعلم نه فائده اخستې شی.لکه اصحاب حفظ روایت،ځکه چه دوی بعینه علوم منتقل کوی.دعلومو فوائد او ثمرات نه منتقل کوی.(۲) والله أعلم.

دغه شان په مثال او ممثل له کښې تطبیق کیږی.او هیڅ قسم اشکال باقی نه پاتې کیږی.

**قوله: قَالَ أَبُوعَبْدِاللهِ قَالَ إِسْحَاقُ**: ابوعبدالله یعنی امام بخاری رحمه الله فرمائی چه امام اسحاق بن راهویه رحمه الله فرمائیلی دی.

**قوله: اسحاق بن راهویه رحمه الله**: دا مشهور دفقة او حدیث امام اسحقاق بن ابراهیم بن مخلد حنظلی مروزی نزیل نیسابور دې ابویعقوب ددوی کنیت دې.او دابن راهویه په نوم باندې مشهور دې.(۳)

کله چه ددوی نه تپوس او شو.چه دوی ته ولې ابن راهویه وئیلې شی.نو دوی او فرمائیل.چه زما پلار د مکې معظمې په لارکښې پیدا شوې وو.د سفرملګرو ورته راهویه وئیل شروع کړو.ددوی پلار به ځپل دا لقب بد ګڼړلو.او ابن اسحاق رحمه الله ته په دې کښې څه بدیت نه ښکاریدل.(۴)

---

(۱)شرح الطیبی (۱\۳۱۱) کتاب الإیمان باب الإعتصام بالکتاب والسنة،الفصل الأول)_
(۲)حاشیة السندی علی الصحیح البخاری(۱\۲۶و ۲۸)_
(۳)تهذیب الکمال(۲\۳۷۳) وفتح الباری(۱\۱۷۷)_
(۴)تهذیب الکمال(۲\۳۷۹)_

د راهويه رحمه الله تلفظ ((راهويه)) څنګه چه د ((اسامى)) په لفظ کښې د اهل عربيت او محدثينو اختلاف دې.اهل عربيت ددې آخرى جزء ((وَيْه)) لولى. يعنى ((بفتح الواو وسكون الياء التحتانية وبعدها هاء مكسورة)) او((واو)) نه وړاندې حرف باندې فتحه وائى.يعنى ((راهَوَيه))([1])

حالانکه محدثين رحمهم الله ((راهُويه)) وائى.يعنى په ((هاء)) باندې ضمه وائى.اوددې نه پس په واو باندې سکون.ددې نه پس په ((ياء)) باندې فتحه، او په آخرکښې ((هاء)) باندې سکون وائى.([2])

په ۱۶۱ه کښې ولادت شوې وو.([3])

دوى د فضل بن موسى سينانى،فضيل بن عياض،معتمربن سليمان، ابوخالد الاحمر. جريربن عبدالحميد،سفيان بن عيينه،ابومعاويه الضرير، محمدبن جعفرغندر،اسماعيل بن عليه،وكيع بن الجراح،نضربن شميل، يحيى بن سعيد القطان،عبدالرحمن بن مهدى. اوعبدالرزاق بن همام صنعانى رحمهم الله نه علاوه د نورو ډيروحضراتونه دحديث روايت کړې دې.

اوددوى نه دحديث روايت کونکوکښې،ددوى خپل شيخ،يحى بن آدم او بقية بن الوليد دى دغه شان ددوى اقران امام احمد،امام ابن معين،هم ددوى نه روايت کوى.ددوى نه علاوه امام بخارى،امام مسلم،امام ابوداود،امام نسائى،امام ترمذى،احمدبن سلمه،محمدبن نصرمروزى، جعفر فريابى، او ابوالعباس السراج رحمهم الله وغيره حضراتوددوى نه د حديث روايت کړې دې.([4])

دامام احمد رحمه الله نه چه کله دامام اسحاق بن راهويه رحمه الله په باره کښې تپوس اوشو نو وې فرمائيل.((مثل إسحاق يسأل عنه؟إسحاق عندنا إمام))([5])

دغه شان دوى به فرمائيل.((لاأعرف لإسحاق في الدنيا نظيرا))([6])

امام نسائى رحمه الله فرمائى.((ابن راهويه أحد الأئمة ثقة مأمون))([7])

---

[1])وسيبويه:بكسرالسين المهملة وسكون الياء المثناة من تحتها وفتح الباء الموحدة والواو وسكون الياء الثانية وبعدها هاء ساكنة .. هكذا يضبط أهل العربية هذا الإسم ونظائره مثل نفطويه عمرويه وغيرهما.... وفيات الأعيان لابن خلكان (۴۶۵\۳) ترجمة سيبويه:ولكن ابن خلكان قد ضبط ..راهويه.. بسكون الهاء بعدالألف انظر وفيات الأعيان (۲۰۰\۱) وهويخالف ما ذكر من ضبط سيبويه ونظائره فتنبه)_

[2])تاج العروس للزبيدى(۳۰۵\۱) مادة ..سيب..)_

[3])سيرأعلام النبلاء (۳۵۹\۱۱)_

[4])دشيوخ اوتلامذو دپاره اوګورئ ((تهذيب الكمال (۳۷۳\۲و ۳۷۷) وسيرأعلام النبلاء(۳۵۹\۱۱و ۳۶۰)_

[5])تهذيب الكمال(۳۸۲\۲) وسيرأعلام النبلاء(۳۷۲\۱۱)_

[6])المصادرالسابقة)_

[7])سيرأعلام النبلاء(۳۷۲\۱۱) وتهذيب الكمال(۳۸۳\۲)_

سعید بن ذویب رحمه الله فرمائی.«ما أعلم علی وجه الأرض مثل إسحاق»(۱)
ابن خزیمه رحمه الله فرمائی.«والله لو کان إسحاق فی التابعین لأقروا له بحفظه وعلمه وفقهه»(۲)
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«أحد الأئمة الأعلام ثقة حجة»(۳)
دغه شان دوی فرمائی.«قد کان مع حفظه إماما فی التفسیر رأسا فی الفقه، من أئمة الإجتهاد»(۴)
ابن حبان فرمائی«وکان إسحاق من سادات زمانه فقها وعلما وحفظا ونظرا ممن صنف الکتب وفرع السنن وذب عنها وقمع من خالفها»(۵)
خلاصه دا چه دامام اسحاق بن راهویه په ثقاهت، عدالت اوحجیت باندې اتفاق دې.
خو امام ابوداود رحمه الله فرمائی.«إسحاق بن راهویه، تغیر قبل أن یموت بخمسة أشهر سمعت منه فی تلك الأیام فرمیت به»(۶)
حافظ ذهبی رحمه الله ددې ډیر سخت تردید کړې دې.هغوی فرمائی.«هذه حکایة منکرة فإن الجهلة فکل أحد یتعلل قبل موته غالبا ویمرض فیبقی أیام مرضه متغیر القوة الحافظة ویموت إلی رحمة الله علی تغیره ثم قبل موته یسیر یختلط ذهنه ویتلاشی علمه فإذا قضی زال بالموت حفظه فکان ماذا؟ أیمثل هذا یلین عالم قط؟ کلا والله ولاسیما مثل هذا الجبل فی حفظه وإتقانه»(۷)
ددې نه پس هغوی دوه منکر حدیثونه ذکر کړی دی.په کوموکښې چه احتمال شته.چه نکارت دامام اسحاق بن راهویه رحمه الله په وجه نه وی.بلکه دبل یو راوی په وجه وی.(۸) اوکه د امام اسحاق بن راهویه رحمه الله په وجه نکارت تسلیم کړې شی.نوبیا هم دهغوی ثقاهت، حفظ او اتقان ته څه نقصان نه رسوی.ددې وجې حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«ومع حال إسحاق وبراعته فی الحفظ ویمکن أنه لکونه کان لایحدث إلا من حفظه جری علیه الوهم فی حدیثین من سبعین ألف حدیث، فلو أخطأ منها فی ثلاثین حدیثا لما حط ذلك رتبته عن الإحتجاج به أبدا، بل کون إسحاق تتبع حدیثه، فلم یوجد له خطأ قط سوی حدیثین یدل علی أنه أحفظ أهل زمانه»(۹)

---

(۱)المصادر السابقة)_
(۲)المصادر السابقة)-
(۳)میزان الإعتدال(۱\۱۸۲و ۱۸۳)_
(۴)سیر أعلام النبلاء(۱۱\۳۷۵)_
(۵)الثقات لإبن حبان(۸\۱۱۶)_
(۶)میزان الإعتدال(۱\۱۸۳)_
(۷)سیر أعلام النبلاء(۱۱\۳۷۷و ۳۷۸)_
(۸)سیر أعلام النبلاء(۱۱\۳۷۸و ۳۷۹)_
(۹)سیر أعلام النبلاء(۱۱\۳۷۹)_

دامام اسحاق بن راهويه رحمه الله وفات په ۲۳۸ھ كښې شوې وو.(۱) «رحمه الله رحمة واسعة»

**قوله كَانَ مِنْهَا طَائِفَةٌ قَيَّلَتِ الْمَاءَ:** يعنى امام اسحاق بن راهويه رحمه الله د «قبلت» په ځائې «قيلت» روايت كړې دې.

ابن بطال، اصيلى، اوقرطبى رحمهم الله فرمائى چه دا تصحيف دې.صحيح روايت «قبلت» دې.(۲)

چونكه نورو عالمانو رحمهم الله د «قيلت» روايت هم صحيح كړې دې. او توجيه ئې كړې ده.چه ددې معنى «شربت» ده.ځكه چه «قيل» «شرب نصف النهار» وائى.وئيلى شى.«قيلت الإبل، أى شربت فى القائلة».(۳)

خوامام قرطبى رحمه الله په دې باندې اعتراض كړې دې.چه دلته خو د مطلق شرب معنى صحيح كيدې شى.خو د «نصف النهار» په قيد سره دمقيد كولوڅه معنى ده؟(۴)

خوددې جواب دا وركولې شى.چه د «قيل» معنى اګرچه «شرب نصف النهار» سره مختص ده.خومجازاً كه دمطلق شرب دپاره استعمال شى.په دې كښې څه حرج نشته.(۵) لكه څنګه چه د «مشفر» لفظ په اصل كښې د اوښ د شونډې دپاره استعماليږى.خومجازاً دانسان د شونډې دپاره هم استعماليږى.(۶)

ابن دريد رحمه الله فرمائى.چه دلته د «قيلت» معنى صحيح ده.ځكه چه كله په يوځائې كښې اوبه جمع شى.نو وئيلى شى.«قيل الماء فى المكان المنخفض».(۷)

خوعلامه قرطبى رحمه الله ددې ترديد كړې دې.اوفرمائيلى ئې دى.چه په دې صورت كښې به د تمثيل معنى فاسده شى.ځكه چه «اجتماع الماء» چه په كومه زمكه كښې وى.هغه د دويمې ډلې مثال دې.حالانكه دلته كلام د اولنى قسم سره متعلق دې.چه اوبه جذب كړى.اوګياه راوټوكوى.(۸)

علامه قطب الدين اوعلامه كرمانى رحمهما الله فرمائى.چه دامام اسحاق بن راهويه رحمه الله

---

(۱) تهذيب الكمال(۲/۳۸۸)_
(۲) شرح صحيح البخارى لإبن بطال(۱/۱٦٤) وفتح البارى(۱/۱۷۷)_
(۳) تاج العروس(۸/۹۲) وفتح البارى(۱/۱۷۷)_
(۴) فتح البارى(۱/۱۷۷)_
(۵) فتح البارى(۱/۱۷۷)_
(۶) تاج العروس(۳/۳۰۸)_
(۷) فتح البارى(۱/۱۷۷)_
(۸) المصدر السابق)_

روايت دلته د «تهلت» او «قبلت» اختلاف سره متعلق نه دې بلکه مقصود دا دې چه نورو راويانو «وكان منها نقية تهلت الماء» نقل كړې دې حالانكه امام اسحاق رحمه الله د «نقية» په ځاى د «طائفة» لفظ نقل كړې دې.[1]

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه په بعضې نسخوكښې دلته د «قال إسحاق» په ځاى «عن أبي أسامة» زيادت هم شته.دصغانى په نسخ كښې داسې ده.[2] نوګويا چه مطلب به دا شى چه محمدبن العلاء شيخ بخارى رحمه الله د خپل استاذ ابواسامه حمادبن اسامه نه «وكان منها نقية تهلت الماء» نقل كړې دې.حالانكه اسحاق بن راهويه رحمه الله شيخ دامام بخارى رحمه الله هم دخپل شيخ ابواسامه حمادبن سلمه نه «وكان منها طائفة تهلت الماء» نقل كړې دې.[3] «والله أعلم»

**قوله**: قَاعٌ يَعْلُوهُ الْمَاءُ: «قاع» هغه زمكې ته وائى چه اوبه پرې اوخيژى.ايساريږى نه.
امام بخارى رحمه الله په دې سره دوو خبروته اشاره كول غواړى.يوه دا چه حديث شريف كښې دقيعان كوم لفظ راغلې دې.هغه جمع دې.دهغې مفرد «قاع» دې.
امام بخارى رحمه الله د «قاع» تفسيربيانول غواړى.چه دا هغه زمكه ده.په كومه باندې چه اوبه پورته ورخيژى او تيريږى.[4]

**قوله**: وَالصَّفْصَفُ الْمُسْتَوِي مِنَ الْأَرْضِ: «صفصف» همواره زمكې ته وائى.
امام بخارى رحمه الله چه په حديث كښې كوم د «قيعان» لفظ تشريح اوكړه.نوسمدستى دهغوى ذهن دقرآن پاك آيت ﴿فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا﴾ طرف ته منقل شو.اوددوى عادت دا دې چه كله : حديث شريف تشريح كوى. نو ورسره ورسره د قرآن كريم دالفاظ تشريح هم كوى.ددې وجې نې د «قاع» دتفسير سره سره «إستطراداً» د «صفصف» تفسيرهم اوكړو.[5]

## ٢١=((بَاب رَفْعِ الْعِلْمِ وَظُهُورِ الْجَهْلِ))

**د مخكنى باب سره ربط اومناسبت**. ددې باب نه په مخكنى باب كښې دعالم اومتعلم د فضيلت ذكروو.په كوم كښې چه دتحصيل علم فضيلت اوبيا دعلم فضيلت ته اشاره وه.اوپه دې باب كښې د علم د پورته كيدو ذكردې.كوم چه جهل لره مستلزم دې په دې باب كښې

---

[1] عمدة القارى(٨٠١٢)_
[2] فتح البارى(١٧٧١١)_
[3] شرح كرمانى(٥٨١٢)_
[4] عمدة القارى(٨١١٢) وفتح البارى(١٧٧١١)_
[5] عمدة القارى(٨١١٢)_

تحذير او تنبيه سره دجهل مذمت ذكر دي «وبالضد تتبين الأشياء»[1]

**د ترجمة الباب مقصد** حافظ ابن حجر فرمائي چه دامام بخاري رحمه الله مقصد دعلم زده كولو ترغيب وركول دي. خكه چه علم به په هغه وخت كښې پورته كيږي چه عالمان رحمهم الله ختم شي اوچه ترخو پورې عالمان باقي وي علم به باقي وي اودعلم پورته كيدل دقيامت دعلاماتوخني ده.[2] نوسړي لره پكار دي چه ددې نه خان اوساتي. خكه چه قيامت به په داسې وخت كښې راخي. چه په دنيا كښې به دالله تعالى ذكرياتې نه وي اوالله تعالى به دخپلو بندگانونه خفه وي.

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي. چه دمؤلف غرض تعليم اوتبليغ دې. خكه چه دعلم پورته كيدل اودجهل ظهورد قيامت د علاماتوخني دي. لكه څنگه چه په باب كښې ذكر شوو دوارو احاديثوكښې تصريح موجود ده. اود اشراط الساعة انسداد اودهغې نه پرهيزكول ضروري دي. نود علم پورته كيدواوجهل انسداد هم په دې صورت كښې كيدې شي چه په تعليم او تبيلغ كښې كوشش اوكړې شي. خكه چه دظهورجهل به هم دا صورت وي چه عالمان ختم شي اوجاهلان باقي پاتې وي. «كما ورد في الحديث» اوددې تدارك دعلم داشاعت نه بغيرنشي كيدې.[3]

**قوله**: وَقَالَ رَبِيعَةُ لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ عِنْدَهُ شَيْءٌ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ يُضَيِّعَ نَفْسَهُ: امام ربيع رائي رحمه الله فرمائي. ديوداسې كس دپاره چه هغه سره دعلم هيڅ څه حصه نه وي دا صحيح نه دي. چه خپل خان ضائع كړي.

ربيعه رائي: دوى د مدينې منورې مفتي. اودخپلې زمانې عالم. امام. ربيعه بن ابي عبدالرحمن فروخ قرشي تميمي مدني رحمه الله دي. چه د ربيعة الرائي په نوم باندې مشهور دي.[4]

دوى دحضرت انس. حضرت سائب بن يزيد. رضي الله عنهما نه علاوه دسعيدبن المسيب. حرث بن بلال بن الحارث. يزيدمولي خنظله بن قيس زرقي. عطاء بن يسار. قاسم بن محمد. سليمان بن يسار. سالم بن عبدالله. عبدالرحمن بن الاعرج. مكحول شامي. عبدالله بن دينار رحمهم الله وغيره نه د حديثو روايت كوي.

ددوى نه يحي بن سعيدانصاري. سليمان تميمي. سهيل بن ابي صالح. اسماعيل بن اميه. اوزاعي. شعبه. سفيان ثوري. حمادبن سلمه. فليح بن سليمان. ليث بن سعد. مسعربن كدام. عبدالله بن المبارك اوسفيان بن عيينه رحمهم الله وغيره حضرات روايت كوي امام مالك رحمه الله ددوى په خصوصي شاگردانو كښې وو.[5]

---

[1] عمدة القاري(۲\۸۱)_

[2] المصادر السابقة)_

[3] الأبواب والتراجم ازحضرت شيخ الهند (۴۹و ۵۰)_

[4] تهذيب الكمال(۹\۱۲۳) وسير أعلام النبلاء(۶\۸۹)_

[5] دشيوخ اوتلامذو دپاره اوگورئ ((تهذيب الكمال(۹\۱۲۴و ۱۲۵)وسير أعلام النبلاء(۶\۸۹-۹۰)

امام احمد، امام عجلى، ابوحاتم، اوامام نسائى رحمهم الله فرمائى.«ثقة» (١)

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائى.«ثقة ثبت أحد مفتي المدينة» (٢)

سوار بن عبدالله عنبرى رحمه الله فرمائى.«ما رأيت أحداً أعلم من ربيعة الرأي قلت ولا الحسن وابن سيرين، قال ولا الحسن وابن سيرين» (٣)

ابن سعد رحمه الله فرمائى.«وكان ثقة كثير الحديث وكانوا يتقونه لموضع الرأي» (٤)

حافظ خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى.«كان فقيهاً عالماً حافظاً للفقه والحديث» (٥)

حافظ ذهبى رحمه الله نقل كړى دى چه حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائيلى دى«انه تغير في الآخر» (٦)

دغه شان دوى نقل كړى دى چه ابوحاتم بن حبان رحمه الله دوى لره په «ذيل كتاب الضعفاء» كښې ذكر كړى دى. (٧)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه په دوى كښې هيڅ قسم جرح عالمانونه ده قبوله كړې بلكه ددې په خلاف ټولو عالمانو رحمهم الله د دوى په رواياتو استدلال او احتجاج كړې دې. (٨)

تركومې پورې چه دابن سعد رحمه الله دقول تعلق دې چه «كانوا يتقونه لموضع الرأي» نودا قابل قبول نه ده. ځكه چه په كومه رائې سره هغه مطعون كولې شى هغه..فقه.. ده. دكومې په باره كښې چه امام مالك رحمه الله فرمائيلى دى.«ذهبت حلاوة الفقه منذ مات ربيعة بن أبي عبدالرحمن» (٩)

دغه شان عبدالعزيز بن ابى سلمه رحمه الله فرمائى.«يا أهل العراق تقولون: ربيعة الرأي والله ما رأيت أحداً أحفظ لسنة منه» (١٠)

تنبيه: مؤرخينو دامام ربيعه رحمه الله په باره كښې يوه خوندوره واقعه ليكلې ده چه ددوى پلار عبدالرحمن بن فروخ هغه وخت دجهاد دپاره تلې وو. كوم وخت كښې چه دوى دمور په خيټه كښې وو. كله چه دوى تلل. نو دخپلې بى بى سره ئې ديرش زره اشرفئ پريخودې وې. اوويش

---

١)تهذيب الكمال(٩\١٢٥) وسير أعلام النبلاء(٦\٩١)_

٢)المصدر السابق)_

٣)تهذيب الكمال(٩\١٢٩) وسير أعلام النبلاء(٦\٩١)_

٤)تهذيب الكمال(٩\١٣٠)_

٥)تاريخ بغداد(٨\٤٢١)_

٦)ميزان الإعتدال(٢\٤٤)_

٧)المصدر السابق)_

٨)ميزان الإعتدال(٢\٤٤)_

٩)تهذيب الكمال(٩\١٣٠)_

١٠)تهذيب الكمال(٩\١٢٩)-

كاله پس دوى دغازى په حيثيت واپس راغلو.نوپه خپل كوركښې ئې داوويشتوكالو يوخوان اوليدو.په غصه شو.اوخپل خوى ته هم غصه شو.چه دا كس زما كور ته ننوخى. تردې چه د ګاونډخلق راجمع شول.امام مالك رحمه الله ته چه خبر اوشو نوهغه هم خان سره مشائخ اوتلامذه راوستل. او دخپل استاد مدد ته راوريسدلو په دې دوران كښې ددوى بى بى دې اوپيژندل. اوپه دې طريقه صلح اوشوه.

ابوعبدالرحمن بن فروخ دخپلې بى بى نه هغه اوويش زره درهم طلب كړې كومې چه ئې ورته وركړې وې.هغوى ورته اوونيل.هغه پيسې محفوظ دى.تاسو مسجد نبوى ته لاړ شئ اومونځ اوكړئ.هغوى چه جماته لاړو.نومونځ ئې اوكړو.اودمانځه نه پس ئې ډيره لويه حلقه اوليده.چه دهغې استاذ ربيعه وو.هغوى سرښكته كړې وو.اوناست وو.دوى دخلقونه تپوس اوكړو.دا څوك دې؟خلقو ورته اوونيل.دا ربيعه بن ابى عبدالرحمن دې.دوى ډيرخوشحاله شو. اوچه واپس كورته راغلو.نوخپلې بى بى ته ئې دخپلې خوشحالئ اظهار اوكړو. د دوى بى بى ترې تپوس اوكړه.چه اوس ښائې.ستاسو هغه ديرش زره روپئ زياتې خوښې دى كه دخپل خوى دا مرتبه.دوى ورته اوونيل.چه زمادا درجه زياته خوښه ده.بى بى ورته اوونيل.ما هغه ټول مال دخپل خوى دعلم په خرچ كولوباندې خرچ كړې دې.دوى ورته اوونيل.چه دا خبره ده.نوتا مال نه دې ضائع كړې.(١)

خوحافظ ذهبى رحمه الله دا قصه په څو وجوهاتوسره موضوع اودخان نه جوړه شوې ګرخولې ده.(٢) ((والله أعلم))

دامام ربيعة الرأى وفات په ١٣٦هـ كښې شوې وو.((رحمه الله تعالى رحمة واسعة))

**دامام ربيعة الراى د ذكرشوى اثر تخريج** دامام ربيعة الراى دا اثرامام بخارى رحمه الله پخپله په تاريخ كبير(٣) امام بيهقى په ((المدخل)) كښې(٤) اوخطيب بغدادى په ((الجامع لأخلاق الراوى وآداب السامع)) كښې موصولاً تخريج كړې دې.(٥)

**د ذكرشوى اثرمطلب اود ترجمة الباب سره مناسبت** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى.چه ددې اثر مطلب دا دې.كه په يوكس كښې دعلم قابليت.اودهغې دفهم اواستعداد وى.نودهغه دپاره دعلم طلب اوپه علم كښې مشغوله كيدل دنورو په مقابله كښې زيات ضرورى دى.ده دپاره دعلم په طلب كښې زيات كوشش پكاردې.كه هغه دعلم په طلب كښې كوشش نه كوى. نوخپل خان به تاوانى كړى.(٦)

---

(١) تاريخ بغداد(٤٢١\١٤) وتهذيب الكمال(١٢٦\٩و ١٢٧)_

(٢) سير أعلام النبلاء(٩٤\٦و ٩٥)_

(٣) التاريخ الكبير(٢٨٧\٣) رقم ٩٧٦)-

(٤) تغليق التعليق (٢٨٧\٢) رقم ٩٧٦)_

(٥) الجامع لأخلاق الراوى وآداب السامع (ص.١٧١) باب ذكرأخلاق الراوى ودأبه وما ينبغى له إستعماله مع أتباعه وأصحابه مبلغ السن الذى يستحسن التحديث معه رقم ٧٣٥)_

(٦) شرح صحيح البخارى لابن بطال(١٦٥\١)_

ددې تشریح د ترجمة الباب سره دې طریقه باندې انطباق دی چه که دا کس ددې باوجود چه باصلاحیته دې اواستعداد په کښې شته بیا هم دعلم طلب نه کوی نودا به رفع علم سبب شی کوم چه د اشراط ساعت په علاماتو کښې ده.[1]

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دامام بخاری رحمه الله ددې اثرمطلب د علم خورول اودتبلیغ ترغیب دې که عالم علم نه خوروی اوهم په دغه حالت کښې مړ شو نود رفع علم اوظهور جهل موجب به شی.[2]

علامه تیمی رحمه الله فرمائی چه ددې اثرمطلب دا دې عالم دپاره خپل تشهیرپکار دې دې دپاره چه خلق راشی اودده نه استفاده اوکړې شی ترڅو پورې چه خلقو ته علم نه وی چه فلانې دشریعت داحکامو عالم دې نوهغوی به دهغه د علم نه استفاده څنګه اوکړی؟ په داسې صورت کښې چونکه افاده او استفاده نشی کیدې نوګویا چه دې خپل ځان ضائع کوی اوکله چه افاده اواستفاده نه وی نورفع دعلم اوظهوردجهل به کیږی.[3]

بعضې عالمانو رحمهم الله فرمائیلی دی چه دعالمانودشان سره نه ښائی چه دوی دنیاداروته خې راخې دوی لره پکاردی چه دخپل علم تعظیم اوتوقیر اوکړی اوخپل ځان ضائع اوسپک نکړی.[4]

دا معنی اګرچه فی نفسه صحیح بلکه ډیره ښه ده خوبه ظاهره ددې د ترجمة الباب سره مناسبت نشته.[5] البته علامه عینی رحمه الله ددې دمناسبت توجیه دا کړې ده چه کله دنیادارو سره دده تګ راتګ زیات وی نو د عالمانو رحمهم الله علمی وقاراوعزت به ختمیږی اونتیجه به ئې دا راوخی چه د ده اشتغال بالعلم به په مزه مزه کمیږی بلکه بیخی به ختم شی کوم چه به د رفع علم اوظهورجهل سبب اوګرځی.[6]

[۸۰/۸۱] حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَثْبُتَ الْجَهْلُ وَيُشْرَبَ الْخَمْرُ وَيَظْهَرَ الزِّنَا

## رجال الحديث

① عمران بن میسرة: دا ابوالحسن عمران بن میسرة منقری بصری ادمی دې.[7]

---

[1] عمدة القاری(۸۱\۲) وفتح الباری(۱۷۸\۱)_
[2] شرح الکرمانی(۵۹\۲)_
[3] شرح الکرمانی(۵۹\۲)_
[4] عمدة القاری(۸۱\۲) وفتح الباری(۱۷۸\۱)_
[5] فتح الباری(۱۷۸\۱)_
[6] عمدة القاری(۸۱\۲)_
[7] تهذیب الکمال(۳۶۳\۲۲)_

دوى دعبدالوارث بن سعيد، محمدبن فضيل، معتمربن سليمان. يحيى بن زكرياابى زائده، يحيى بن يمان، حفص بن غياث، ابوخالدبن الاحمر، ابو معاويه الضريراوعبادبن العوام رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.

اود دوى نه روايت كونكوكښې امام بخارى، امام ابوداود، امام ابوزرعه ، امام ابوحاتم رازى، امام ابوخليفه رحمهم الله وغيره دى.(1)

امام دارقطنى رحمه الله ددوى توثيق كړې دى.(2)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى.(3)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «ثقة»(4)

په ۲۲۳هـ كښې وفات شوى وو.(5) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

② عبدالوارث: دا عبدالوارث بن سعيدبن ذكوان تميمى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات مخكښې د «باب قول النبى ﷺ اللهم علمه الكتاب» لاندې تيرشوى وو.

③ ابوالتياح: دا ابوالتياح يزيدبن حميدضبعى بصرى رحمه الله دې. ددوى حالات هم په كتاب العلم كښې د«باب ماكان النبى ﷺ يتخولهم بالموعظة والعلم كى لاينفروا» لاندې تيرشوى وو

④ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه: د دوى حالات په «كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه» لاندې تيرشوى دى.(6)

**قوله**: قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَثْبُتَ الْجَهْلُ وَيُشْرَبَ الْخَمْرُ وَيَظْهَرَ الزِّنَا: رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه دقيامت په علاماتوكښې دا علامه ده. چه علم به پورته كړې شى. اوجهل به ښكاره شى. او شراب به څكلى شى. اوزنا به عامه شى.

**قوله**: أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ: دا د«إن» اسم دې. څكه منصوب دې.

په دې روايت كښې «يرفع العلم» دې. اوپه مخكښې روايت كښې «يقل العلم» راغى. دتطبيق دپاره خوبه يا دا ونيلى شى. چه په اول كښې به په علم كښې قلت پيدا شى. اوبيا په آخر كښې به بيخى ختم شى. لكه چه په راروان حديث كښې د ابتدائى حالت بيان وو. اوپه دې

(1) دشيوخ اوتلامذو دپاره اوګورئ (تهذيب الكمال (۲۲\۳۶۳)_
(2) تهذيب التهذيب (۸\۱۴۲)_
(3) الثقات لابن حبان (۸\۴۹)_
(4) تقريب التهذيب (ص. ۴۳۰) رقم ۵۱۷۴)_
(5) كشف البارى (۲\۴۱)_
(6) كشف البارى (۲\۴۱)_

حديث كښې د انتهائي حالت بيان دې يا به داسې ونيلې شي چه په اولنې حديث كښې چه د «قلت» كوم ذكر دې د هغې نه عدم مراد دې نو په دواړو احاديثو كښې څه تعرض نشته

**دعلم دپورته كيدوصورت** دعلم دپورته كيدوصورت دعبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما په حديث كښې وارد شوي دي «قال سمعت رسول الله ﷺ يقول إن الله لايقبض العلم انتزاعاً ينتزعه من العباد، ولكن يقبض العلم بقبض العلماء حتى إذا لم يبق عالماً اتخذ الناس رؤوساً جهالاً فسئلوا فأفتوا بغير علم فضلوا وأضلوا» [1]

ددې نه معلومه شوه چه دعلم پورته كيدوصورت به دا وي چه عالمان به وفات كيږي او دهغوى په ځائې به دهغوى د علم حاملين نه وي نو دعلماؤ دوفات سره به علم هم ختميږي خود بعضې رواياتونه معلوميږي چه علم به براه راست د سينونه پورته شي قران پاك به د سينونه اوخي.

ابن ابى شيبه رحمه الله په «مصنف» كښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه اثرنقل كړې دې «أول ما تفقدون من دينكم الأمانة وآخر ما تفقدون منه الصلاة وسيصلي قوم ولا دين لهم، وإن هذا القرآن الذى بين أظهركم كأنه قد نزع منكم قال قلت: يا عبدالله كيف وقد أثبته الله فى قلوبنا؟ قال يسرى عليه فى ليلة فترفع المصاحف وينزع ما فى القلوب ثم تلا ﴿وَلَئِن شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ﴾ إلى آخر الآية» [2]

هم دا روايت امام طبرانى رحمه الله هم نقل كړې دې دهغې الفاظ دا دى. «وليُنزعن القرآن من بين أظهركم قال يا أبا عبدالرحمن ألسنا نقرأ القرآن وقد أثبتناه فى مصاحفنا قال يسرى على القرآن ليلاً فيذهب من أجواف الرجال فلا يبقى فى الأرض منه شئ» [3]

ابن ماجه دحضرت حذيفه رضي الله عنه نه حديث نقل كړى دى «قال رسول الله ﷺ يدرس الإسلام كما يدرس وشى الثوب حتى لايدرى ما صيام ولا صلاة ولا نسك، ولا صدقة وليسرى على كتاب الله عزوجل فى ليلة فلا يبقى فى الأرض منه آية» [4]

---

[1] الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه (٢٠/١) كتاب العلم باب كيف يقبض العلم رقم ١٠٠) وفى (١٠٨٦/٢) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب ما يذكرمن ذم الرأى وتكلف القياس رقم ٧٣٠٧) وأخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب العلم باب رفع العلم وقبضه وظهورالجهل والفتن فى آخرالزمان رقم ٦٧٩٦و ٦٧٩٩) وأخرجه النسائى فى السنن الكبرى (٤٥٦/٣) كتاب العلم باب كيف يرفع العلم رقم (٥٩٠٧و ٥٩٠٨) وأخرجه الترمذى فى جامعه فى كتاب العلم باب ما جاء فى ذهاب العلم رقم ٢٦٥٢ ) وأخرجه ابن ماجه فى كتاب السنة (المقدمة) باب إجتناب الرأى والقياس رقم (٥٢)_

[2] المصنف لابن أبى شيبة (٥٠٥/١٧) كتاب الفتن بابٌ ما ذكر فى فتنة الدجال رقم ٣٧٥٧٤)_

[3] قال الهيثمى رحمه الله رواه الطبرانى ورجاله رجال الصحيح غيرشداد بن معقل،وهوثقة مجمع الزوائد (٣٢٩/٧و ٣٣٠) كتاب الفتن باب ثان فى أمارات الساعة)_

[4] سنن لابن ماجه كتاب الفتن باب أشراط الساعة رقم ٤٠٤٩)_

په دې دوا‌ړه قسمه روایاتوکښې که د ترجیح لار اختیار کړې شي نو داسې به ونیلی شي چه د صحیحینو روایت ته ترجیح حاصله ده

یا که دوا‌ړه قسمه روایاتوکښې تطبیق اوکړې شي نو دوا‌ړه صورتونه به راپیښیږي چه اول به عالمان وفات شي او دهغوی د علومو حاملین به پاتې نشي نو دهغوی علم به ختم شي او بیا به په آخرکښې د اجواف رجال او اوراقو نه هم پورته کړې شي ((والعلم عندالله تعالیٰ)) د تطبیق دا صورت راجح دې په دې کښې دځه قسم حدیث ترک ته ضرورت نه پیښیږي

**قوله** وَيَثْبُتَ الْجَهْلُ: په بعضې روایاتوکښې د ((یثبت)) په ځائې ((یبث)) راغلې دې (۱) یعني جهل به خورشي.

دغه شان په یوروایت کښې ((ینبت)) راغلی دی (۲) یعنی ((بالنون بدل المثلثة من النبات))

ابن رجب رحمه الله ((ینث)) (۳)هم نقل کړې دې ددې معنی هم خورول او اشاعت دې خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا روایت په صحیحنوکښې په یوکښې هم نشته (۴)

د ثبوت جهل نه خو یا مراد دا دی چه عالمان به ختم شي او دهغوی نه بیــن او دهغوی دعلومو حاملین به پاتې نشي نو جهل به خور شي یا دا مطلب دې چه دښځو پیدائش به زیات شي ځکه چه په ښځو کښې جهل زیات وي.

**قوله** وَيُشْرَبَ الْخَمْرُ وَيَظْهَرَ الزِّنَا: او شراب به څکلی شي او زنا به زیاته شي دلته سوال پیدا کیږي چه د شرابو څکل د قیامت دعلاماتونه څنګه شمارلې شي حالانکه نفس شرب خو په هره زمانه کښې موجود دې په خپله نبی صلی الله علیه وسلم په بعضې کسانو باندې په دې کښې حد جاری کړې وو.

ددې یوجواب دا دې چه دقیامت په علاماتوکښې مطلق شرب مراد نه دې بلکه د شرب عموم او کثرت مراد دې (۵)

یوجواب دا ورکړې شوې دې چه دلته صرف شرب خمرد قیامت نښه نه ده ګرځولې شوې بلکه شرب خمراو شیوع زنا وغیره مجموعه د قیامت نښه ګرځولې شوې ده (۶)

د ((یشرب الخمر)) نه کثرت شرب مراد اخستل ددې وجې دی چه د بخاری په یوروایت کښې

---

۱) کما في بعض النسخ من صحیح مسلم حکاها النووي في شرحه لمسلم (۲\۳٤۰) کتاب العلم باب رفع العلم وقبضه)

۲)شرح الکرماني(۲\۱۲۰) وفتح الباري(۱\۱۷۸)_

۳)فتح الباري(۱\۱۷۸)_

۴)المصدر السابق)_

۵)شرح کرماني(۲\۱۲۰)_

۶)المصدر السابق)_

دی.«ویکثرشرب الخمر» (۱) دغه شان د«یظهرالزنا» نه هم مطلق ظهورمراد نه دې بلکه شیوع مراد ده.لکه څنګه چه دمسلم په روایت کښې «یفشو» لفظ راغلې دې.(۲)
علامه عینی رحمه الله اګرچه ددې نه انکارکړې دې چه مطلق په مقید باندې حمل کړې شی.(۳) خوحقیقت دا دې چه دلته مطلق په مقید باندې محمول دې.څکه چه سیاق په دې خبره دلالت کوی.چه نبی ﷺ د داسې څیزونو خبرورکول غواړی.چه هغه د وړاندې نه معهود نه وو. بنکاره خبره ده.چه د نبی ﷺ په زمانه کښې نفس شرب خمر اونفس زنا موجود وه دنوی څیزخبر ورکول اود قیامت دعلاماتونه ګرځیدوصلاحیت خوپه هغه صورت کښې وی.چه په دغه شرب خمراوزنا کښې یوه نوې خبره پیدا شی.اوهغه نوې کارددې کثرت اوشیوع ده.(۴)
«والله أعلم»

[۸]حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (۵) قَالَ لَأُحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيثًا لَا يُحَدِّثُكُمْ أَحَدٌ بَعْدِي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَقِلَّ الْعِلْمُ وَيَظْهَرَ الْجَهْلُ وَيَظْهَرَ الزِّنَا وَتَكْثُرَ النِّسَاءُ وَيَقِلَّ الرِّجَالُ حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ [۴۹۳۳و۵۲۵۵و۶۴۲۳]

## رجال الحدیث

① مسدد:دا مسدد بن مسرهد اسدی رحمه الله دې.ددوی حالات کتاب الایمان کښې د«باب من الإیمان أیحب لأخیه مایحب لنفسه» لاندې تیرشوی دی.(۶)

② یحی:دا یحی بن سعیدالقطان رحمه الله دې.ددوی حالات هم په پورتنی باب کښې تیر شوی دی

③ شعبه:دا امام شعبه بن الحجاج رحمه الله دې.د دوی حالات د«کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده» لاندې تیرشوی دی.(۷)

④ قتاده: دا امام قتاده بن دعامه سدوسی رحمه الله دې.ددوی حالات هم په «کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه» لاندې تیرشوی دی.(۸)

---

(۱)صحیح البخاری(۷۸۷/۲) کتاب النکاح باب یقل الرجال ویکثرالنساء رقم (۵۲۳۱)_
(۲)صحیح مسلم کتاب العلم باب رفع العلم وقبضه رقم (۶۷۸۶)_
(۳)عمدة القاری(۸۲/۲)_
(۴)شرح القسطلانی(۱۸۱/۱)_
(۵)قوله: عن أنس رضي الله عنه هذا الحدیث هوالذی قبله وقد سبق تخریجه سابقاً)_
(۶)کشف الباری(۲/۲)_
(۷)کشف الباری(۶۷۸/۱)_
(۸)کشف الباری(۳/۲)_

⑤ انس رضي الله عنه: داحضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي.ددوى حالات هم د ذكرشوى باب لاندي تيرشوى دى

**قوله** لَأُحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيثًا لَا يُحَدِّثُكُمْ أَحَدٌ بَعْدِي: زه تاسوته داسې حديث اوروم.چه زمانه پس به درته بل څوك هغه شان حديث واونه روى.

بعضې عالمان رحمهم الله فرمائي.چه حضرت انس رضي الله عنه چونكه ددېرعمرخاوند شوې وو دهغوى په ژوندكښې په صحابو رضي الله عنهم كښې بل څوك باقي نه وو.خكه هغوى اوفرمائيل.چه زمانه پس به دا حديث تاسوته بل څوك واونه روى.(١)

خوپه دې باندې اشكال كيږى.چه په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې دټولونه په آخركښې حضرت ابوالطفيل عامربن واثله دوسى رضي الله عنه دې.ددوى وفات دصحيح قول مطابق په ١١٠هـ كښې شوې وو(٢)

علامه كرماني رحمه الله فرمائي.عين ممكن ده.چه نبى صلى الله عليه وسلم دوى ته خودلى وى.چه په ټولوكښې په آخركښې به ته دا حديث اوروې.ستانه پس به بل څوك ددې روايت نه كوى (٣)

دا هم ممكن ده.چه دحضرت انس رضي الله عنه په ګمان كښې دا حديث دهغوى نه سوا بل چادنبى صلى الله عليه وسلم نه نه دې اوريدلې.ددې وجې هغوى دخپل ګمان مطابق اووئيل.چه «لايحدثكم احدبعدى»(٤)

يواحتمال دا هم دې.چه دا خطاب اهل بصرة سره خاص وو.خكه چه حضرت انس رضي الله عنه په بصره كښې اوسيدل.هلته دوى په ٩٠هـ كښې وفات شوى وو.(٥)

په هغه وخت كښې په صحابو رضي الله عنهم كښې داسې صحابى رضي الله عنه نه وو.چه هغه په مروياتوكښې دا حديث وو.نومطلب دا شو.چه زما نه پس به په بصره كښې دا حديث تاسو ته څوك بيان نكړى.(٦)

ابن بطال رحمه الله فرمائي.چه حضرت انس رضي الله عنه دا په هغه زمانه كښې بيان كړې وو.په كومه زمانه كښې چه په زمانه كښې تغيرراغلې وو.حاكمان بدل شوې وو دهغوى دطرفه د ظلم اوزياتى بازارګرم وو.خلق ويريدل.اودحق ښكاره كولونه په آرام ناست وو.نولكه چه دحضرت انس رضي الله عنه د دې فرمان مطلب دا دې.چه اوس زمانه داسې ده.چه زمانه پس به درته داسې حديث څوك بيان نكړى.په كوم كښې چه ددوى په اعمالواوكرداربانديې تنقيد

---

(١)شرح ابن البطال(١١٦٥)_

(٢)وبه ختم الصحابة رضي الله عنهم فى الدنيا مات سنة عشرومائة عى الصحيح الكاشف(١١٥٢٧) رقم ٢٥٤٨)_

(٣)شرح الكرمانى(٢١٦٠)_

(٤)المصدرالسابق)_

(٥) وآخرمن مات منهم بالبصرة أنس بن مالك رضي الله عنه علوم الحديث لابن الصلاح (ص.٣٠١) النوع التاسع والثلاثون معرفة الصحابة رضي الله عنهم وانظرالكاشف (١١٢٥٦) رقم ٤٧٧)_

(٦)عمدة القارى (٢١٨٤) وفتح البارى(١١١٧٩)_

وی.اوپه کوم سره چه ددوی تنقیص کیږی.دا تمهیدئې برابرکړو.اوبیا ئې دقیامت علامات بیانول شروع کړل.(1) ((والله أعلم))

**قوله**: مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَقِلَّ الْعِلْمُ وَيَظْهَرَ الْجَهْلُ: دقیامت په علاماتوکښې دا ده چه علم به ختم شی.اوجهل به زیات شی.په وړاندینی حدیث کښې ((یرفع)) راغلې وو.او دلته ((یقل)) راغلې دې.د دواړو په مینځ کښې تطبیق هلته تیرشوې دې.

**قوله** وَيَظْهَرَ الزِّنَا: اودزنا ظهوربه اوشی.یعنی ددې شیوع به پیدا شی.

**قوله** وَتَكْثُرَ النِّسَاءُ وَيَقِلَّ الرِّجَالُ: اوښځې به زیاتې شی.اوسړی به کم شی.ددې کثرت وجه خوبه یا دا وی.چه فتنې به ډیرزیاتې شی.زیات جنګونه به کیږی.اوسړی چونکه جنګیږی. نوهغوی به قتلیږی.نوپه دې طریقه به ښځې زیاتې شی.(2)

ابوعبدالملک رحمه الله فرمائی.چه دا دې خبرې ته اشاره ده.چه فتوحات به زیات شی. او وینځې به زیاتې شی.دیویوسړی سره به څو څو وینځې وی.(3)

خوذکرشوې سبب قابل نظردې.ځکه چه ددې نه معلومیږی.چه دښځواو وینځوبه کثرت شی.خودسړو دقلت په دې کښې څه اشاره نشته.(4) حالانکه د ابوموسی اشعری رضی الله عنه په حدیث کښې تصریح ده.چه ((یری الرجل الواحد یتبعه أربعون إمرأة یلذن به من قلة الرجال وكثرة النساء))(5)

ظاهره دا ده.چه دا یومستقل علامت دې.دا په سبب باندې مبنی نه دې. هغه داسې چه په آخره زمانه کښې به دالله تعالی په حکم سره ښځې زیاتې پیدا کیږی.اوسړی کم.(6)

چونکه عام طور په ښځوکښې جهل وی.ددې وجې دکثرت نساء علامت د رفع علم اوظهور جهل سره زبردست مناسبت هم شته.(7)

**قوله** حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ: تردې چه پنځوسو ښځوبه صرف یوکفالت کونکې وی.

ددې دوه مطلبه کیدې شی.یوه دا چه خلق به د شریعت دحدود څه پرواه نه کوی.جهالت به

---

(1) شرح ابن البطال (١٦٥١١)_

(2) فتح الباری (١٧٩١١) وعمدة القاری (٨٤١٢)_

(3) المصدالسابق)_

(4) فتح الباری (١٧٩١١)_

(5) صحیح البخاری (١٩٠١١) کتاب الزکاة باب الصدقة قبل الرد)_

(6) فتح الباری (١٧٩١١)_

(7) المصادر السابقة)_

عام شى اويويوكس به پنځوس پنځوس ښځې په خپله نكاح كښې ساتى.لكه څنګه چه دبعضې بددينه مالدارانونه نقل دى.(١)

دويم مطلب دا دې چه دښځودكثرت په وجه به دهغوى نګرانى كونكې څوك نه وى.نود يويو كس په ذمه به پنځوس ښځې وى.چه هغه به دهغوى نګرانى كوى.(٢)

بياد خمسين دلته حقيقى معنى هم كيدې شى.اومجازى هم.يعنى كناية عن الكثرة هم مراد كيدې شى.(٣) ددويمې معنى تائيد دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه په روايت سره كيږى.په كوم كښې چه د«ويرى الرجل الواحد يتبعه أربعون إمرأة يلذن به» الفاظ راغلى دى

دلته دا خبره هم قابل غور ده.چه «حتى يكون لخمسين إمرأة قيم واحد» دنكره راوړو په ځائې معرفه ذكرشوې ده.اګرچه ظاهر نكره ده.ددې وجې دا ده. چه په اصل كښې دې كښې لام دعهد دپاره دې.اواشاره آيت ﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ ﴾(٤) طرف ته ده.(٥)

**دامورخمسه د تخصيص وجه** دلته دقيامت په علاماتوكښې د پنځوخيزونو ذكردې.يعنى ① قلت علم،② ظهورجهل ③ شرب خمر④ ظهورزنا .⑤ كثرت نساء قلت رجال.ددې پنځو خيزونو د تخصيص وجه دا خودلې شوې ده.چه اصلاح د معاش.اومعاد په پنځوخيزونوپه حفاظت اوصيانت باندې موقوف ده.اوپه حديث كښې د ذكرشوو پنځوذكرچه دا دقيامت علامات دى.په دې خبره دليل دې.چه په هغه پنځو خيزونوكښې به اختلال پيدا شى.په كوموچه دمعاش اومعاد اصلاح اوفلاح موقوف ده.

هغه پنځه خيزونودكومو چه حفاظت ضرورى دې.دا دى.① دين② عقل③ نسب④ مال .ددنيااواخرت دكاميابئ دپاره په دې كښې دهريوخيزحفاظت ضرورى دې.

چه كله په حديث كښې ذكرشوى خيزونه ښكاره كيږى.نوددې خيزونو حفاظت به نه كيږى. څكه چه درفع علم اوظهورجهل په صورت كښې ددين حفاظت ممكن نه دې.دشرب خمرپه وجه دعقل په حفاظت كښې خلل پيدا كيږى.دغه شان دا دمال په حفاظت كښې هم خلل پيدا كوى.اوشيوع زنا د نسب اومال په حفاظت كښې مخل دې.اوقلت رجال د نفس اومال دواړو دحفاظت دپاره مخل دې.(٦) «والله أعلم»

---

(١) فتح البارى(١١\١٧٩)_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) فتح البارى(١١\١٧٩) وعمدة القارى(١٢\٨٤)_

(٤) النساء: ٣٤)_

(٥) فتح البارى(١١\١٧٩) وعمدة القارى(١٢\٨٥)_

(٦) عمدة القارى(١٢\٨٥) وفتح البارى(١١\١٧٩)_

## ٢٢=باب فضل العلم

**د مخکنی باب سره ربط اومناسبت** په دې اوسابقه باب کښې مناسبت بيخى ښکاره دې.ځکه چه مخکنى باب کښې هم د علم ذکروو.اوپه دې باب کښې هم.اګرچه په هرباب کښې په يوجدا صفت سره ذکردې.په اولنى باب کښې دعلم درفع ذکروو.اوپه دې باب کښې د علم د فضل ذکردې.(١)

داسې مناسبت هم بيانولې شى.چه په مخکنى باب يعنى ((باب رفع العلم وظهور الجهل)) کښې دتعليم اوتعلم ترغيب مقصود وو.اوپه دې باب کښې دعلم فضيلت بيانوى.هم د دغه تعليم اوتعلم ترغيب مقصود دې.

**د تکرارفى الترجمة اعتراض اود ترجمة الباب مقصد** امام بخارى رحمه الله دا باب مکرر منعقدکړې دې.ځکه چه دکتاب العلم په ابتداء کښې هم بعينه دا باب تيرشوې دې.هلته مونږ ددې پوره تفصيل ذکرکړې دې.((فارجع إليه إن شئت))
دلته دهغې خلاصه زده کړئ.

علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه په صحيح نسخوکښې دکتاب العلم په ابتداء کښې د((باب فضل العلم)) وجود نشته.نود تکرارفى الترجمة اعتراض هډو وارديږى نه.(٢)

اوکه تسليم کړې شى.چه هلته د((باب فضل العلم)) ذکرشته.نوهلته د((فضل علم)) نه فضل دعالمانو عليهم مراد دې.اوپه مذکوره باب کښې ..فضل علم.. مراد دې.(٣)
علامه کرمانى رحمه الله ددې اعتراض دا جوابورکړې دې.چه دکتاب العلم په شروع کښې فضيلت علم مراد دې.اودلته ((فضله)) يعنى زياتى علم مراد دې.(٤)
حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا توجيه اختيارکړې ده.(٥)
دغه شان علامه سندهى رحمه الله هم دا توجيه اختيارکړې ده.هغوى فرمائى.چه امام بخارى رحمه الله دلته ((باب فضل العلم)) منعقدکړې دې.مطلب دا دې.چه ددې فضل سره به څه کولې شى؟دحديث پاك نه معلوميږى.که دچا سره زياتى علم وى نوزوته ئې خودل پکاردى.
خودلته سوال دا دې.چه آيا په دې عالم کښې دا هم ممکن ده.چه علم زيات شى.اوبيا ته د ورکولو نوبت راشى.يا دا دعالم مثال اوعالم خواب خبره ده؟علامه سندهى رحمه الله فرمائى.چه دعلم د زيادت صورت دا کيدې شى.چه ديوعالم سره زياتى کتابونه وى.نوهغه نوروته

---

(١)عمدة القارى(٢\٨٥)_
(٢)عمدة القارى(٢\٣و ٨٥)_
(٣)عمدة القارى(٢\٨٥)_
(٤)شرح کرمانى(٢\٣)_
(٥)فتح البارى(١\١٨٠)_

ملكاً يا عارية وركړى.دغه شان كه ديوشيخ نه استفاده كوى.اوپخپله دشيخ مرتبې ته رسيدلې وى.نونوروته دهغه نه د انتفاع موقع وركړى.(١)

حضرت شيخ الهند رحمه الله هم دا توجيه اختياركړې ده هغوى فرمائى.دا ترجمه بعينه دكتاب العلم په شروع كښې تيره شوې ده.ددې وجې شارحينو رحمهم الله فرمائيلى دى.چه دفضل دوه معانى دى.«فضيلت» او«فاضل من الحاجة»په اول باب كښې اوله معنى اوپه دويم باب كښې دويمه معنى مراد ده.دې سره دتكرارشبه په آسانتيا سره دفع شوه.خودترجمې په مقصود كښې اوپه حديث «ثم أعطيت فضلى عمر بن الخطاب» كښې كوم چه په دې باب كښې مذكور دې.ددې په تطبيق كښې دعالمانو رحمهم الله كلمات مختلف دى.

زمونږ په نيز راجح اواقرب دا ده.چه دترجمې نه دمؤلف مقصود دا دې. چه كوم علم چه ديوكس دضرورت نه زياتى وى.دهغې څه حكم دې؟مثلاً يو مفلس،معذور اومجبور داسې وى.چه دهغه دزكاة حج،اوجهاد ادا كولونه قدرت وى.اونه طاقت،بلكه په انده زمانه كښې هم بيخى نااميده يا عادة نااميده وى.اويا په معاملاتوكښې نې مزارعت، مساقات، مضاربت، تجارت ،رهن اواجارې ته نه حاجت وى اونه توقع.نوداسې كس دپاره ددې عباداتو او معاملاتو علم حاصلول څنګه دى.اوددې دزده كولودپاره خپل وختونه لګول او ددې دپاره سفركول،په عبادت كښې داخل دې اوكه په مالايعنيه كښې به شمارلى شى.او دعلم زده كولوچه كوم فضيلت اوتاكيد تيرشو.دې په هغې كښې داخل دې كه مستثنى دې.

حديث مذكوره فى الباب نه د دغه علم زائده اوفاضل عن الحاجة حكم معلوم شو.چه علم مطلقاً مفيد اومطلوب دې.غاية ما فى الباب كوم علم چه دكوم كس په حق كښې ضرورى نه وى.اودهغه په كار نه راځى.هغه دې نورته اورسوى.دعلم دزده كولونه مقصود صرف عمل نه وى.بلكه تبليغ اوتعلم هم يواهم مقصود دې.

خلاصه دا چه دمؤلف ددې باب نه مقصود د تبليغه اوتعلم اهميت اوفضيلت مقصود دې.لكه څنګه چه د ابواب سابقه اولاحقه نه هم معلومه ده.والله تعالى اعلم.(٢)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى.(٣) چه ددې تائيدپه ابن ماجه كښې دحضرت ابوذر رضي الله عنه دمرفوع روايت نه هم كيږى.«ياأباذر،لأن تغدو فتعلم آية من كتاب الله خيرلك من أن تصلى مائة ركعة،ولأن تغدو فتعلم باباً من العلم عمل به اولم يعمل،خيرمن أن تصلى ألف ركعة»(٤)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى.چه زما په نيزدلته دا احتمال هم شته.چه دامام بخارى رحمه الله مقصود دزيات علم ترغيب وركول دى.يعنى دا نه ده.چه صرف په قدردحاجت باندې سرې اكتفاء اوكړى.څكه چه نبى صلى الله عليه وسلم دلته په قدردحاجت پئ نه دى څكلى.بلكه

---

(١)حاشية السندى على صحيح البخارى(٤٩/١)_
(٢)الأبواب والتراجم لشيخ الهندقدس الله روحه (ص٥٠و٥١)_
(٣)الكنزالمتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى)_
(٤)سنن ابن ماجه كتاب (السنة) باب فضل من تعلم القرآن وعلمه رقم ٢١٩)_

دومره نې اوځکل چه ((حتى خرج من تحت أظفاره)) لکه چه مصنف رحمه الله دلته په ترجمة الباب سره دحضرت انس رضي الله عنه دمرفوع حديث تائيد اوکړو ((منهومان لايشبعان منهوم في العلم لايشبع منه))[١]

بيا کوموحضراتوچه دلته د ((فضل)) نه مراد ((فضيلت)) اخستې دې په هغوی باندې اشکال واردیږی چه په روايت کښې خوهډو دځه فضيلت اومنقبت ذکرنشته.

دا حضرات دا ورکوی چه په روايت کښې ذکردی چه نبی صلی الله علیه وسلم خپله جوټه حضرت عمر رضي الله عنه ته ورکړه اوچه نبی صلی الله علیه وسلم هغه استعمال کړې وي دا زبردست فضيلت دې.

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چه حديث شريف په دې باندې دلالت کوی چه دعلم زده کول اوحاصلول لکه چه د نبی صلی الله علیه وسلم د استعمال کړی څيز حاصلول دی ښکاره خبره ده چه دا دعلم ښکاره فضيلت دې.([٢])

دغه شان ابن المنير رحمه الله هم دا بيان کړی دی اوفرمائی چه دحديث شريف نه دفضيلت اثبات په دې طريقه دې چه په دې کښې دعلم نه هغه د نبی صلی الله علیه وسلم په جوټې سره کومه چه نې دوی ته ورکړه دهغې په حصې سره تعبيرکړې دې اوهم دا خبره دفضيلت دپاره کافی ده.([٣])

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائی چه ددې حديث په رنړا کښې دتکرار يوجواب دا هم ورکولی شي چه دکتاب العلم په ابتداء کښې ..فضل علم.. د رفع درجاتوپه اعتبارسره مراد وو ځکه چه هلته آيت کريمه .. ﴿يَرْفَعِ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ﴾([٤]) نې راوړې دي اودلته فضل علم په دې اعتبارسره دې چه دا د نبی صلی الله علیه وسلم فضله ده.([٥]) والله اعلم

تنبيه علامه کرمانی رحمه الله دکتاب العلم په ابتداء کښې هم هغه توجيه کړې ده کومه چه مونږ بيان کړه يعنی هلته فضيلت اودلته فضله مراد ده.خوکله چه دې باب ته رارسيدلې دې نو هغوی د فضل نه فضيلت مراد اخستې دی.اوددې تقرير نې کړې دې.([٦]) فتنبه

[٨٢] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ([٧]) قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

---

[١])شعب الإيمان للبيهقي (٧/٢٧١) الحادی والسبعون من شعب الإيمان باب في الزهدوقصر الأمل رقم ١٠٢٧٩)

[٢])لامع الدراری(١/٣١٠)_

[٣])المتواری علی تراجم أبواب البخاری (ص.٦١)-

[٤])المجادلة:١١)-

[٥])الكنز المتواری (٢/٣١٠)_

[٦])شرح کرمانی(٢/٦٣)_

[٧])قوله أن ابن عمررضی الله عنهما الحديث أخرجه البخاری فی صحيحه (١/٥٢٠) فی کتاب المناقب فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم باب مناقب عمربن الخطاب أبی حفص القرشی العدوی رضي الله عنه رقم ٣٦٨١ کتاب التعبير، باب اللبن رقم ٧٠٠٦ ) وباب إذا جری اللبن فی أطرافه وأظافيره رمق ٧٠٠٧ وأخرجه مسلم فی صحيحه فی کتاب فضائل الصحابة رضي الله عنهم باب من فضائل عمر رضي الله عنه رقم ٦١٩٠و ٦١٩١) وأخرجه الترمذی فی جامعه فی کتاب الرؤيا باب (فی رويا النبی صلی الله علیه وسلم اللبن والقمص) رقم ٢٢٨٤ وفی کتاب المناقب (باب رؤيا النبی صلی الله علیه وسلم فی شربه من قدح اللبن وإعطائه عمر فضله رقم ٣٦٨٧)_

بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِقَدَحِ لَبَنٍ فَشَرِبْتُ حَتَّى إِنِّي لَأَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ فِي أَظْفَارِي ثُمَّ أَعْطَيْتُ فَضْلِي عُمَرَبْنَ الْخَطَّابِ قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَهُ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ الْعِلْمَ [۳۶۸۱و۷۰۰۶و۷۰۰۷و۷۰۳۲و۷۰۲۷]

# رجال الحديث

① سعيدبن عفير: دوی سعیدبن کثیربن عفیر رحمه الله دي دوی خپل نیکه طرف ته منسوب دی ددوی حالات هم په کتاب العلم کښې د «باب من یرد الله به خیرا یفقهه في الدین» لاندې تیرشوی دی.

② لیث بن سعد: دا امام لیث بن سعد رحمه الله دې ددوی حالات په «بدء الوحی» کښې د دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.[1]

③ عُقیل: دا عقیل بن خالدبن عقیل ایلی رحمه الله دې ددوی مختصرحالات په «باب بدء الوحی» کښې د دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.[2] خودلته ئې مونږ په تفصیل سره بیانوو دا عقیل بن خالدبن عقیل ایلی رحمه الله دې د دوی ډېرمختصرحالات د باب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیرشوی وو.[3] خودلته مونږ غوندې په تفصیل سره ددوی حالات ذکرکوو دوی د ابان بن صالح. حسن بصری. خپل پلارخالدبن عقیل. زید بن اسلم. سلمه بن کبیل. عراك بن مالك. عکرمه مولی ابن عباس. عمروبن شعیب. قاسم بن محمدبن ابی بکر الصدیق. نافع مولی ابن عمر. هشام بن عروه. یحیی بن ابی کثیر اوخاص کر امام زهری رحمهم الله وغیره نه د حدیث روایت کړې دې.

اوددوی نه روایت کونکوکښې جابربن اسماعیل حضرمی. ضمام بن اسماعیل. عبادبن کثیر ثقفی. عبدالله بن لبیعه. امام لیث بن سعد. مفضل بن فضاله. نافع بن یزید. اویونس بن یزید ایلی رحمهم الله وغیره دی.[4]

امام احمداونسائی رحمهماالله فرمائی. «ثقة»[5]

ابن سعد رحمه الله فرمائی. «وکان ثقة»[6]

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی. «صدوق ثقة»[7]

---

[1] کشف الباری (۳۲۴\۱)_
[2] کشف الباری (۳۲۵\۱)
[3] کشف الباری (۳۲۵\۱)_
[4] داستاذانواوشاگردانودتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۲۴۲\۲۰ و ۲۴۳)_
[5] تذیب الکمال (۲۴۳\۲۰)_
[6] تهذیب الکمال (۲۴۳\۲۰)_
[7] تهذیب الکمال (۲۴۴\۲۰)_

امام عجلی رحمه الله فرمائی.«ثقة»(١)

امام ابن معین رحمه الله فرمائی.«عقیل ثقة»(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«ثقة ثبت»(٣)

امام ابوحاتم رحمه الله نه چه کله تپوس اوشو.«عقیل بن خالد أحب إلیك أم یونس» نو دوی ورته اوفرمائیل.«عقیل أحب إلی من یونس،عقیل لابأس به»(٤)

دغه شان کله چه ددوی نه د عقیل اومعمرپه باره کښې تپوس اوشو.«أیهما أثبت؟» نو دوی اوفرمائیل.«عقیل أثبت کان صاحب کتاب»(٥)

آجری امام ابوداود رحمه الله نه د عقیل بن خالداوقرة بن جبریل په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل.«عقیل أعلی منه ملیة مرة»(٦)

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی.(٧)

البته په دوی باندې د ابن حاتم اویحیی بن سعید القطان رحمهما الله د طرفه جرح هم منقول ده

ابوحاتم رحمه الله فرمائی.«لم یکن بالحافظ کان صاحب کتاب محله الصدق»(٨)

دغه شان کله چه د یحیی القطان رحمه الله وړاندې د عقیل اوابراهیم به سعد ذکر اوشو نو هغوی داسې انداز اختیارکړو.لکه چه دواړه ضعیف دی.(٩)

ترکومې پورې چه د ابوحاتم رحمه الله دکلام تعلق دې.نوهغه ددوی د ثقاهت او تثبت نفی نه کوی.بلکه په «کان صاحب کتاب ومحله الصدق» سره ددوی توثیق اوتثبیت بنکاره کیږی.دغه شان پورته پخپله ددوی نه د عقیل توثیق نقل شوې دې.

ترکومې پورې چه د یحیی القطان رحمه الله د کلام تعلق دې.نوامام احمد رحمه الله ددې تردیدکوی اوفرمائي.«أی شئ ینفع هذا؟ هولاء ثقات لم یخبرهما یحیی»(١٠)

---

(١)تهذیب الکمال(٢٥٦\١٧)_
(٢)میزان الإعتدال (٨٩\٣) وفی روایة ابن أبی مریم ثقة حجة تهذیب التهذیب(٢٥٦\٧)_
(٣)تهذیب التهذیب(٢٩٦) رقم ٤٦٦٥)_
(٤)تهذیب الکمال(٢٤٤\٢٠)_
(٥)المصدر السابق)_
(٦)تعلیقات علی تهذیب الکمال(٢٤٥\٢٠)-
(٧)الثقات لابن حبان (٣٠٥\٧)_
(٨)میزان الإعتدال(٨٩\٣) رقم ٥٧٠٦)_
(٩)المصدر السابق)_
(١٠)المصدر السابق)_

بيا دا خبره دې هم معلومه وی چه په صحیح بخاری کښې دعقیل ټول روایات دامام زهری رحمه الله نه مروی دی.[1]

دغه شان امام یحیی بن معین رحمه الله د امام زهری رحمه الله په روایانوکښې دوی د ټولونه مضبوط راوی ګرځولی دې.[2]

خلاصه دا چه شوه چه عقیل بن خالد ثقه ثبت اوحجت دې. او کومو حضراتوچه په دوی باندې کلام کړې دې.هغه قابل قبول نه دی.هم دا وجه ده چه اصحاب صحاح ستة ددوی روایات د احتجاج او استدلال په طور قبول کړی دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.((أحد الثقات الأثبات من أصحاب الزهری إعتمده الجماعة))[3]

حافظ ذهبی رحمه الله چه په دوی باندې کوم کلام شوې دې.دهغې رد کوی.اولیکی ((عقیل ثبت حجة وإنما ذكرناه لئلا يتعقب علينا...))[4]

ددوی وفات په ۱۴۱ه یا ۱۴۲ه ۱۴۴ کښې شوې دې.[5] رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

④ ابن شهاب: دا امام محمدبن مسلم بن عبیدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.ددوی مختصرحالات د بدء الوحی د دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.[6]

⑤ حمزه بن عبدالله بن عمر: دا حمزه بن عبدالله بن عمر بن الخطاب رحمه الله دې ابوعماره د دوی کنیت دې.دوی د سالم بن عبدالله بن عمرحقیقی ورور وو.[7]

دوی دخپل پلارحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما .دخپلې ترور حضرت حفصې او عائشې رضی الله عنهما نه روایت کوی.او دوی نه روایت کونکوکښې عبیدالله بن ابی جعفرمصری.عتبه بن مسلم. امام زهری او موسی بن عقبه رحمهم الله وغیره دی.[8]

ابن سعد رحمه الله فرمائی.((وكان ثقة قليل الحديث))[9]

---

[1] كما يظهرمن رموز المزى فى تهذيب الكمال(۲۰\۲۴۲)_اويونس بن يزيدايلى رحمه الله فرمائی.((ما أحد أعلم بحديث الزهرى م عقيل)) ()ميزان الإعتدال(۳\۸۹) رقم ۵۷۰۶)_

[2] قال ابن معين.أثبت من روى عن الزهرى مالک بن أنس ثم معمر.ثم عقيل.وقال أيضاً أثبت الناس فى الزهرى مالک بن أنس ومعمر ويونس وعقيل وشعيب بن ابى حمزة وسفيان بن عيينة تهذيب الكمال (۲۰\۲۴۳) وفى تاريخ الدارمى(۴۵) رقم ۲۱ .. وعقيل ثقة نبيل الحديث عن الزهرى رحمه الله )_

[3] هدى السارى(ص.۴۲۵)_

[4] ميزان الإعتدال(۳\۸۹) رقم ۵۷۰۶)_

[5] تهذيب الكمال(۲۰\۲۴۵)_

[6] كشف البارى(۱\۳۲۶)_

[7] تهذيب الكمال(۱۷\۳۳۰و ۳۳۱) وتقريب التهذيب(۱۸۰) رقم ۱۵۲۴)_

[8] داستاذانواوشاګردانودتفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۱۷\۳۳۱)_

[9] الطبقات لابن سعد(۵\۳۰۳)_

امام عجلی رحمه الله فرمائی: «مدنی تابعی ثقة»(۱)
امام علی بن المدینی رحمه الله فرمائی: «سمعت یحیی بن سعد یقول فقهاء أهل المدینة إثنا عشر» بیا نې دوی په هغوی کښې شمار کړو.(۲)
ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړی دی.(۳)
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: «ثقة إمام»(۴) رحمه الله رحمة واسعة.

۶ ابن عمر رضی الله عنهما: دا حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. ددوی حالات په کتاب الایمان کښې د «باب الإیمان وقول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الإسلام علی خمس» لاندې تیرشوی دی.(۵)

**قوله: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِقَدَحِ لَبَنٍ:** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدل چه زه اوده ووم ماته د پیو پیالئ راوړې شوه.

**قوله: فَشَرِبْتُ حَتَّى إِنِّي لَأَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ فِي أَظْفَارِي:** نو ما دا بنه اوڅکل تردې چه ما موړ والې اوکتلو چه زما د نوکانو نه اوځی.

«أری» داخو یا د رؤیت نه دې په معنی د "العلم" یعنی د افعال قلوب څنې دې په دې صورت کښې به دا د دوو مفعولو تقاضا کوی دلته یومفعول «الری» دې او دویم مفعول «یخرج فی أظفاری» دې اوکه دا د افعال قلوب څنې نه وی نو د یو مفعول تقاضا به کوی چه هغه دلته کښې «الریّ» دې او د «یخرج فی أظفاری» دا جمله به حال وی.(۶)

«الریّ» (د رائې مهمله په کسرې او د یا په شدسره) دا د «رَوِیَ یَروی» مصدر هم دې او اسم هم دې په مصدر کښې "ري" په فتحې سره هم نقل کړې شوې دې.(۷)

«یخرج فی اظفاری» اظفار د ظُفر (بضم الظاء المعجمة) جمع ده په یو روایت کښې د «یخرج من أظفاری» الفاظ راغلې دی.(۸)

---

(۱) تهذیب الکمال(۳۳۱/۷)_
(۲) تهذیب الکمال(۳۳۲/۷)_
(۳) الثقات لابن حبان(۱۶۸/٤)_
(۴) الکاشف (۳۵۱/۱) رقم ۱۲۳۷)_
(۵) الکاشف (۳۵۱/۱) رقم ۱۲۳۷)_
(۶) عمدة القاري(۸۶/۲)_
(۷) المصدر السابق)_
(۸) کمافی روایة عساکر. قال الحافظ فی الفتح(۱۸۰/۱) والعینی فی العمدة(۸۶/۲) وانظر صحیح البخاری (۱۰۳۷/۲) کتاب التعبیر. باب اللبن. رقم(۷۰۰۶)_

او په يو بل روايت کښې ((يخرج من أطرافه)) الفاظ دي.(۱) ددې دواړو روايتونو نه معلومه شوه چه دلته ..في.. د ..من.. په معنی کښې دې.
دا هم ممکن ده چه ((في)) په معنی د ((علی)) وی.لکه څنګه چه په ﴿وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ النَّخْلِ﴾(۲) کښې په ((علی جذوع النخل)) معنی کښې دې.(۳) نواوس مطلب دا شو چه ما دومره پې اوڅکل.اوزه دومره موړ شوم چه زما په هريوبند کښې دهغه آثاربنکاره شول.
**قوله** ثُمَّ أَعْطَيْتُ فَضْلِي عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ:بيا ما خپله پاتې شوې عمربن الخطاب رضي الله عنه ته ورکړه.
**قوله** قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ:صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړو.يارسول الله تاسو ددې څه تعبيراوباسئ.
**قوله** قَالَ الْعِلْمَ:نبی ﷺ اوفرمائيل.ددې تعبيرعلم دې.
**د پيو نه علم مراد اخستلووجه** د پيو په صورت کښې علم مثاليه دې.ددې دتمثيل وجه دا ده. چه پې اوعلم په کثرت نفع کښې مشترك دی.(۴) دغه شان دا خبره هم ده.چه دواړه سبب دصلاح دې.پې دانسان د خوراك،اودده د قوت او صلاح ذريعه ده.دغه شان ددنيا اوآخرت د صلاح ذريعه اود روحونو غذا ده.(۵)
مهلب رحمه الله فرمائي.چه په خوب کښې د پئو ليدل سنت،فطرت،علم اودقرآن په اهليت دال دی.ددې وجې په دنيا کښې ماشوم ته د ټولونه اولنې څيزدا ملاويږی.هم دا څيزدده معدې ته رسي.اوهم ددې په وجه دده ژوند قائم وی.هم داوصف په علم کښې هم دې.په کوم باندې چه د زړونو د حيات دارومدار دې.هم په دې حيثيت سره دپيو دعلم سره مناسبت او مشاکلت بنکاره دې.
بيا د پيو دلالت په ژوند باندې هم دې.څکه چه په ماشوموالی کښې د ژوند دارومدارهم په پيو باندې وی.کله ددې دلالت په ثواب باندې هم وی.څکه چه دا د جنت په نعمتونوکښې دې.په جنت کښې به د پيو وله (نهر) هم وی.کله ددې دلالت په مال حلال باندې هم کيږی.څکه چه په پيو کښې هغه پاکوالې اوشفافيت وی.کوم چه د حلال مال خاصيت دې.
نبی ﷺ دحضرت عمر رضي الله عنه په باره کښې د پيو تعبيرپه علم سره څکه ورکړو.چه نبی ﷺ ته دحضرت عمر رضي الله عنه د فطرت اودين د صحت علم وو.اوپه علم فطرت کښې دننه دزيادت نوم شته.(۶) والله اعلم.

(۱)صحيح بخاري(۱۰۳۷\۲) کتاب التعبير. باب إذا جرى اللبن في أطرافه و أظافيره. رقم(۷۰۰۷)_
(۲)طه:۷۱)_
(۳)عمدة القاری(۸۶\۲)_
(۴)عمدة القاری(۸۷\۲) وفتح الباری(۱۸۰\۱۱)_
(۵)عمدة القاری(۸۷\۲)_
(۶)شرح ابن البطال (۵۳۰\۱۹) کتاب التعبيرباب اللبن)_

**خوفوائد** ① ددې حديث نه معلومه شوه چه كوموخلقوته الله تعالى دولت باطنى وركړې وى هغوى لره پكار دى چه هغه خلقوكښې داستعداد مطابق تقسيم كړى
② دغه شان دا ترې هم په پوهه كښې راځى چه استاذانولره پكاردى چه كله كله د خپل خوراك نه پاتې شوې څيزشاګردانوته وركوى په دې سره داستاذانومحبت پيدا كيږى. او دهغوى په زړونوكښې د بركت سبب ګرځى.

**يوه شبه اودهغې جواب** دلته دې چاته دا شبه نه كيږى چه نبى ﷺ خپله پاتې شوې جوټه حضرت عمر رضی الله عنه ته وركړه په كوم سره چه د حضرت عمر رضی الله عنه فضيلت په ټولوتردې چه په حضرت ابوبكر رضی الله عنه باندې هم ثابتيږى نوددې جواب دا دې چه بيشكه چه ددې واقعه نه دحضرت عمر رضی الله عنه علمى كمال ثابتيږى خودا حضرت صديق رضی الله عنه ته په نسبت سره نه دې بلكه يو جزئى فضيلت دې په دې سره دحضرت ابوبكر رضی الله عنه په مقابله كښې افضليت نه لازميږى. ځكه چه حضرت ابوبكر رضی الله عنه ته كلى فضيلت حاصل دې.

**فائده** حضرت شاه ولى الله رحمه الله په ازالة الخفاء كښې دحضرت عمر رضی الله عنه علمى مقام نه واضح كړې دې.([1])

## ٢٣-بَابُ الْفُتْيَا وَهُوَوَاقِفٌ عَلَى الدَّابَّةِ وَغَيْرِهَا

«فتيا» بضم الفاء اسم مصدر دې دځه مسئلې جواب ته وائى لكه څنګه چه ورته ..فتوى.. وئيلى شى.([2]) د..هو..ضمير..مفتى طرف ته راجع دې.([3]) كوم چه د ..فتيا..نه معلوميږى.

..دابة.. اګرچه په لغت كښې «كل ما مشى على الأرض» ته وائى خوپه عرف كښې دسورلئ څناورباندې ددې اطلاق كيږى.

**دمخكنى باب سره مناسبت** ددې نه وړاندينى باب كښې دعلم فضل ذكروو او ..فتوى..هم علم دې ددې وجې ددواړو بابونومناسبت ښكاره دې.([4])

**دترجمې مقصد** حضرت شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه د فتوى وركولوپاره، چه مفتى په يو ځائې باندې په اطمينان سره ناست وى اوهلته هغه دخپل علمى مجلس دعالمانو رحمهم الله سره مشوره هم كوى اولى اومناسب دې اوداحتياط تقاضا هم دا ده خودا به هم جائز وى چه په ولاړه ولاړه يا په روانه سوال كونكى ته مسئله اوښائى نوكه په سورلئ سور وى يا ولاړ وى ټول جائز دى اودنبى ﷺ نه ثابت دى.([5])

حضرت شيخ الهند رحمه الله هم تقريباً چه دا خبره كړې ده دوى فرمائى چه د قضاء تعلم اوافتاء وغيره امورمتعلقه بالعلم مقتضى سكون او اطمينان اوحسن ادب دې اود حضرت امام

---

[1]) إزالة الخفاء عن خلافة الخلفاء (٨٥/٢-١٤٠)_
[2]) عمدة القارى(٨٧/٢) وفتح البارى(١٨٠/١)_
[3]) فتح البارى (١٨٠/١)_
[4]) فتح البارى(١٨٠/١)_
[5]) شرح تراجم أبواب البخارى(ص.١٥)_

مالك وغيره اماما نو ﷺ نه هم داسې منقول دي.نوغيراطميناني حالت مثلاً ركوب .قيام اوسيركښې دافتاء وغيره كراهيت ته خيال تلې شو غالباً چه په ترجمة الباب كښې ددې خيال مدافعت مقصود دي.(١)

حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په يوحديث كښې نبي ﷺ ارشاد فرمائيلي دي «إياكم أن تتخذوا ظهوردوابكم منابر،فإن الله إنما سخرها لكم لتبلغكم إلى بلد لم تكونوا بالغيه،إلابشق الأنفس وجعل لكم الأرض،فعليها فاقضوا حاجتكم»(٢)

ددې نه معلومه شوه چه سورلئ په لاره كښې اودرول اوپه هغې باندې سوريدل نه دى پكار.كه څه ضرورت پيښ شي.نوزمكې ته راكوزيدل پكار دى.

نوامام بخاري رحمه الله دا اوخودله چه په سورلئ باندې سوروي.اويوعالم د سوال جواب وركوي.نوپه دې كښې څه حرج نشته.ځكه چه دعلم د اشاعت په غرض داسې كول ضروري دى.(٣) دا اګرچه حقيقت دې.چه دجواب فتوى دپاره دذهن استحضار ضروري دې.خودا په هغه وخت كښې ضروري دې.چه په مسئله باندې سوچ كول غواړي.اوكه مسئله مستحضره وى.نوبيا په بيانولو كښې څه حرج نشته.

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه پورتنې روايت په كوم كښې چه ددې نه منع شوې ده.چه څورلئ نه منبرجوړ كړې شي.ددې مطلب دا دې.چه مخامخ په سورلئ مه كيني.چه تقريرېرې كوئ.اونه د فتوى وركولودپاره په دابة باندې سوريږئ.ددې دامطلب نه دې.كه په دابه باندې د سورلئ په حالت كښې كه د مسئلې تپوس اوشي.يا دڅه خاص شرعي مصلحت په وجه په دابه باندې دوعظ اوتقريرېه غرض ركوب اوكړې شي.نودا عمل به ناجائز وى اودجواب وركولو دپاره به د دابه نه راكوزيدل لازمي وى.بهرحال دنهي تعلق د اعتياد سره دې.چه ددې عادت نه دى جوړول پكار.دمطلق استعمال سره نه دې.كه دضرورت اوشرعي مصلحت دوجې وى.نودا نهى نه واردېږى.(٤) والله اعلم.

[۸۳]حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ (٥) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ

---

(١)الأبواب والتراجم لشيخ الهند رحمه الله (٥١)_

(٢)سنن أبي داود كتاب الجهادباب في الوقوف على الدابة رقم ٢٥٦٧)_

(٣)لامع الدراري (٢\٣١٢)_

(٤)إيضاح البخاري(٥\٩٣)-

(٥)قوله: عن عبدالله بن عمروبن العاص.الحديث أخرجه البخاري أيضاً في صحيحه (١\٢٣و ٢٤) كتاب العلم باب السوال والفتيا عند رمي الجمار رقم ١٢٤ و في (١\٢٣٤) كتاب الحج باب الفتيا على الدابة عند الجمرة رقم ١٧٣٦و ١٧٣٨) وفي (٢\٩٨٦) كتاب الأيمان والنذور باب إذا حنث ناسياً في الإيمان رقم ٦٦٦٥ وأخرجه مسلم في صحيحه في كتاب الحج باب جواز تقديم الذبح على الرمي والحلق على الذبح وعلى الرمي وتقديم الطواف عليها كلها رقم ٣١٥٦ و ٣١٦٣) وأخرجه ابوداود في سننه في كتاب المناسک باب فيمن قدم شيئاً قبل شئ في حجه رقم ٢٠١٤ وأخرجه الترمذي في جامعه في كتاب الحج باب ما جاء فيمن حلق قبل أن يذبح أو نحر قبل أن يرمي رقم ٩١٦ وأخرجه ابن ماجه في سننه في كتاب المناسک باب من قدم نسکاً قبل نسک رقم ٣٠٥١)_

فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِمِنًى لِلنَّاسِ يَسْأَلُونَهُ فَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ لَمْ أَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ فَقَالَ اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ فَجَاءَ آخَرُ فَقَالَ لَمْ أَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا أُخِّرَ إِلَّا قَالَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ

[١٢٤و ١٦٤٩و ١٦٥١و ٦٢٨٨]

## رجال الحديث

(٢) مالك: دا امام مالك بن انس رحمه الله دي. ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيرشوې دى.(١)

(٣) ابن شهاب: دا امام محمدبن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دي. ددوى مختصرحالات په بدء الوحى كښې د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.(٢)

(٤) عيسى بن طلحه بن عبدالله: دا ابومحمد عيسى بن طلحه بن عبيدالله قرشى تيمى مدنى رحمه الله دي.(٣)

دوى دخپل پلارحضرت طلحه بن عبدالله ،حضرت معاويه،حضرت ابوهريره حضرت عبدالله بن عمروبن العاص ،حضرت معاذبن جبل اوحضرت عائشې رضي الله عنهم وغيره نه روايت كوى. اوددوى نه روايت كونكوى كښې محمدبن ابراهيم تيمى،محمدبن عبدالرحمن ،امام زهرى،يزيدبن ابى حبيب اوددوى وراره اسحاق بن يحيى اوطلحه بن يحيى رحمهم الله وغيره روايت كوى.(٤)

اسماعيل: دا ابوعبدالله بن ابى اويس اصبحى مدنى رحمه الله دي. ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال» لاندې تيرشوى دى.(٥)

ابن سعد رحمه الله دوى د اهل مدينې په طبقه اولى كښې ذكركړى دى. اوفرمائيلى ئې دى. «كان ثقة كثيرالحديث»(٦)

امام يحيى بن معين ،نسائى،اوعجلى رحمهم الله فرمائى. «ثقة»(٧)

---

(١) كشف البارى(١٢\٨٠)_
(٢) كشف البارى(١\٣٢٦)_
(٣) تهذيب الكمال(٢٢\٦١٥) وسير أعلام النبلاء (٤\٣٦٧)_
(٤) د شيوخ اوتلامذه دپاره اوګورئ (تهذيب الكمال .(٢٢\٦١٥و ٦١٦) وسير أعلام النبلاء (٤\٣٦٧)_
(٥) كشف البارى (٢\١١٣)_
(٦) الطبقات الكبرى لابن سعد(٥\١٦٤)_
(٧) تهذيب الكمال(٢٢\٦١٦)_

ابن حبان رحمه الله فرمائيلي دى.«كان من أفاضل أهل المدينة وعقلائهم وأسخيائهم»[1]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.«من الحكماء العقلاء»[2] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«ثقة فاضل»[3] د حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله په دورخلافت كښې غالباً په ۱۰۰ھ كښې وفات شوې وو.[4] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

**عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما:** د دوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوى دى.[5]

**فائده** العاص. به په ياء سره .العاصى.. ونيلى شي.يا بغيرد ياء نه؟

① اخفش صغيرفرمائى.چه دا هم د ياء سره دې.اوددې حذف جائز نه دې. حالانكه عوام ئې د ياء په حذف سره وائى.

② اونحاس رحمه الله فرمائى.چه دا دټولونحاتو نه خلاف مذهب دې.مطلب دا دې.چه دا داسماء منقوصة څنې دې.نوپه دې كښې د ياء اثبات او حذف دواړه جائز دې.[6]

③ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه دجمهوروپه نيزدا په ياء سره ليكلې شي. اود اهل عربيت په نيزدافصيح دې.حالانكه په ډيروكتابونوكښې د ياء په حذف سره واقع دې.قران كريم كښې قراءت سبعه كښې هم په دې طريقه راغلې دې.مثلاً «الكبير المتعال»[7]

④ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه بعضې حضراتودا اجوف گرځولې دې.[8] نوپه دې صورت كښې په آخر كښې د ياء د وجود هډو څه سوال نه پيدا كيږى.

**قوله:** أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِمِنًى لِلنَّاسِ يَسْأَلُونَهُ: نبى كريم ﷺ په حجة الوداع په موقع دخلقودپاره په منى كښې وقوف كړې وو. خلقوبه د دوى نه تپوسونه كول.

دنبى ﷺ دې آخرى حج ته حجة الوداع ،حجة التمام،حجة الاسلام،حجة البلاغ، ونيلى شى.[9]

---

[1] الثقات لابن حبان(۵\۲۱۲)_

[2] الكاشف (۲\۱۰۱۱) رقم ۴۳۷۷)_

[3] تقريب التهذيب(۴۳۹) رقم ۵۳۰۰)_

[4] تهذيب الكمال(۲۲\۶۱۷)_

[5] كشف البارى(۱\۶۷۹)_

[6] تاج العروس (۱۰\۲۴۵) وتبصيرالمنتبه بتحريرالمشتبه (۳\۸۸۹ و ۸۹۰) وتعليقات الإكمال للشيخ عبدالرحمن بن يحيى المعلمى اليمانى (۶\۲۲)_

[7] الرعد:۹)_

[8] شرح الكرمانى(۲\۶۳) وعمدة القارى(۲\۸۹)_

[9] تاريخ الخميس (۲\۱۴۸) وعمدة القارى(۱۸\۳۶)_

حجة الوداع خو ورته ددې وجې وائي چه نبی ﷺ ددې حج په موقع صحابه کرام ﷺ رحصت کړی وو «لعلی لا أراکم بعد عامی هذا»(۱)

حجة التمام ورته ددې وجې ونیلی شی چه په دې موقعه باندې آیت کریمه ﴿وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ (۲) نازل شوې دې. (۳)

اوحجة الاسلام ورته ددې وجې وائي چه دا دنبی ﷺ د حج فریضه وه دحج دفرضیت نه پس نبی ﷺ هم دا حج ادا کړې وو. (۴)

اوحجة البلاغ ورته ځکه وائي چه نبی ﷺ په دې حج کښې کومه خطبه ونیلې وه په هغې کښې ئې فرمانیلی وو «اللهم هل بلغت؟ اللهم هل بلغت؟»(۵) والله اعلم.

**قوله فَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ لَمْ أَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ فَقَالَ اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ فَجَاءَ آخَرُ فَقَالَ لَمْ أَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا أُخِّرَ إِلَّا قَالَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ:**

یوکس راغلو. اوعرض ئې اوکړو.زما خیال نه وو.اود ذبحې نه وړاندې مې حلق اوکړو. نبی ﷺ ورته اوفرمانیل.قربانی وکړه.څه باك نشته.یوکس راغلو.اوعرض ئې وکړو.زما خیال نه وو.د رمی نه وړاندې مې قربانی وکړه.نبی ﷺ اوفرمانیل.رمی اوکړه.څه باك نشته. دنبی ﷺ نه چه دیوڅیزدتقدیم اوتاخیرپه باره کښې چه کوم تپوس هم شوې وو.نونبی ﷺ به ورته فرمانیل.څه باك نشته.

**دیوم النحر څلورمناسک اوپه دې کښې د ترتیب حکم** په یوم النحر کښې څلورکارونه کولی شی.① رمی② نحر.③ حلق یا قصر④ اوطواف زیارت.

ددې څلورو واړه مناسکو ترتیب هم دا دې.کوم چه ذکرشو.د نبی ﷺ نه ددې په ترتیب سره ادا کول ثابت دی.(۶) اودا ترتیب مطلوب اومقصود هم دې.

---

(۱) جامع الترمذی.کتاب الحج باب ماجاء فی الإفاضة من عرفات)_

(۲) المائدة:۳)_

(۳) صحیح البخاری (۱۱\۱) کتاب الإیمان باب زیادة الإیمان ونقصانه رقم ٤٥ کتاب المغازی باب حجة الوداع رقم ٤٤٠٧ ) وفی (۲\۶۶۲) کتاب التفسیر.سورة المائدة باب ﴿الیوم أکملت لکم دینکم﴾ رقم ٤٦٠٦) وفی(۲\۱۰۷۹) فاتحة کتاب الإعتصام رقم ۷۲۶۸)_

(۴) عن زیدبن أرقم ﷺ أن النبی ﷺ غزا تسع عشرة غزوة وأنه حج بعدما هاجر حجة واحدة لم یحج بعدها حجة الوداع.صحیح البخاری(۲\۶۳۲) کتاب المغازی باب حجة الوداع رقم ٤٤٠٤)_

(۵) صحیح البخاری ب(۱\۲۳٤) کتاب الحج باب الخطبة دیام منی رقم ۱۷۳۹)_

(۶) کما فی حدیث جابرالطویل عند مسلم فی صحیحه فی کتاب الحج باب حجة النبی ﷺ رقم ۲۹۵۰) ففیه ذکر الأمورالثلاثة سوی الحلق وذکرالحلق فی حدیث أنس ﷺ عندمسلم فی صحیحه فی کتاب الحج باب بیان أن السنة یوم النحر أن یرمی ثم ینحر ثم یحلق... رقم ۳۱۵۲)_

البته په دې خبره کښې اختلاف دې چه دا ترتیب واجب دې که مسنون؟

① دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدقارن اومتمتع دپاره داولنو درې څیزونو په ترتیب سره ادا کول واجب دی په طواف کښې ترتیب واجب نه دې که دا مقدم کوی اوکه مؤخر کوی یا ئې په مینځ کښې ادا کوی. دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد مفرد دپاره ذبح اوباقی درې څیزونو کښې ترتیب ضروری نه دې. ځکه چه په ده باندې قربانی واجب نه ده.(۱)

② امام مالك رحمه الله فرمائی چه که حلق په رمی باندې مقدم کړی نوپه ده باندې دم دې. خوکه حلق په نحر باندې یا نحر په رمی باندې مقدم کړی نوپه ده باندې څه واجب نه دی. لکه چه ددوی په نیز د رمی اوحلق په مینځ کښې ترتیب واجب دې. چه اول دې رمی کولې شی. اوبیا حلق. اوپه باقی څیزونوکښې ترتیب مسنون دې. واجب نه دې.(۲)

③ امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په دې څلورو واړه څیزونوکښې ترتیب مسنون دې. که دترتیب نه خلاف دا افعال ادا کړې شی برابره ده که په هیره وی اوکه په حکم باندې د جهل دوجې وی. یا په قصد وی. د اصح روایت مطابق په ده باندې څه واجب نه دی.(۳)

امام احمد رحمه الله فرمائی. که په ذکرشوواموروکښې ئې ترتیب په قصد سره پریخودل. نود یو روایت مطابق دم شته. اودبل روایت مطابق په ده باندې دم نشته. اوکه په هیره یا په حکم باندې د جهل دوجې ئې د ترتیب خلاف عمل اوکړو. نوڅه پرې واجب نه دی.(۴)

دصاحبینو رحمهما الله هم دا مسلك دې چه په دې مناسکوکښې ترتیب واجب نه دې. نو ددې اموروپه تقدیم اوتاخیرسره څه نه واجبیږی.(۵)

لکه چه د جمهورو په نیز په څه درجه کښې ترتیب ساقطیږی. اوامام ابوحنیفه رحمه الله د ترتیب د وجوب قائل دې.

دجمهوردلیل یوخوحدیث باب دې. په دې کښې دنبی ﷺ نه د تقدیم حلق علی الذبح په باره کښې تپوس شوې دې. اونبی ﷺ فرمائیلی دی. «اذبح ولاحرج» دغه شان د نحرقبل الرمی په باره کښې ترې تپوس شوې دې. نو نبی ﷺ ورته فرمائیلی دی. «ارم ولاحرج» دغه شان دحدیث په آخرکښې راوی وائی. «فما سئل النبی ﷺ عن شیء قدم ولا أخر إلا قال افعل ولا حرج»

د دې حضراتو استدلال دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په حدیث باندې هم دې. «أن النبی ﷺ سئل فی حجته فقال ذبحت قبل أن أرمی فأومأ بیده قال ولا حرج، قال حلقت قبل أن أذبح فأومأ بیده ولا حرج».(۶)

---

۱) هدایه مع فتح القدیر (۴۶۹\۲) باب الجنایات :البحرالرائق (۲۴\۳) وبدائع الصنائع (۱۵۸\۲)_
۲) المغنی (۲۳۱\۳)_
۳) المجموع شرح المهذب (۱۶۰\۸) و(۲۱۶\۸)_
۴) المغنی (۲۳۰\۳)_
۵) هدایه مع فتح القدیر (۴۶۹\۲) والبحرالرائق (۲۴\۳و ۲۵) وبدائع الصنائع (۱۵۸\۲)_
۶) صحیح البخاری (۱۸\۱) کتاب العلم باب من أجاب الفتیا بإشارة الید والرأس رقم ۸۴) وقدأخرجه فی مواضع کثیرة أنظررمق ۱۷۲۱ و۱۷۲۳) ورقم ۱۷۳۴ و۱۷۳۵ و رقم ۶۶۶۶)_

هم دا مفهوم دحضر علی .(١) حضرت اسامه بن شريك.(٢) حضرت جابر(٣) حضرت قيس بن سعد رضي الله عنهم (٤) نه مروی دی.

دامام ابوحنيفه رحمه الله استدلال دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په فتوی باندې دې.كومه چه ابن ابی شيبه نقل كړې دې.((من قدم شيأ من حجه أو أخره فليهرق لذلك دماً))(٥)

په دې روايت كښې ابراهيم بن مهاجر راوی دې.اومحدثينو رحمهم الله دده تضعيف كړې دې.(٦) خوهم دا روايت امام طحاوی رحمه الله په شرح معاني الآثاركښې نقل كړې دې.دهغې په يوطريق كښې د ابراهيم بن مهاجر واسطه موجود نه ده.(٧)

ابن ابی شيبه هم دا مفهوم د ابوالشعثاء بن جابربن زيد (٨)سعيد بن جبير(٩)اوابراهيم نخعی (١٠) رحمهم الله نه هم نقل كړې دې.

تركومې پورې چه د ((افعل ولا حرج)) حديث تعلق دې.نوامام ابوحنيفه رحمه الله ((حرج))د ((اثم)) په معنی كښې اخلي.لكه چه په دې طريقه د ترتيب په فساد كښې دګناه نفی شوې ده.دكفارې نفی نه ده شوې.(١١)

دلته د غورقابله نكته دا ده.چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يوطرف ته د ((لاحرج)) حديث نقل كوی.اوددې باوجود دوی د وجوب جزاء فتوی وركوی .په دواړوكښې د تطبيق هم دا صورت دې.چه ((لاحرج)) د نفی ((اثم)) په معنی كښې دې.

ددې قرينه دا هم ده.چه كله داسې قسم سوالونونه زيات شو.نو نبی ﷺ اوفرمائيل.چه ګناه خو د يومسلمان په عزت اخستوكښې دې.(١٢)دلته حرج د ګناه په معنی كښې دې.هم دا

---

(١)مصنف ابن ابی شيبة (٣٤٦\٣) كتاب الحج باب في الرجل يحل قبل أن يذبح)_

(٢)سنن أبی داود كتاب المناسک باب فيمن قدم شيأ فی حجه رقم ٢٠١) ومصنف ابن ابی شيبة (٣٤٦\٣) رقم ١٤٩٦٣)_

(٣)مصنف ابن ابی شيبة(٣٤٥\٣) رقم ١٤٩٥٩)_

(٤)مصنف ابن ابی شيبة (٣٤\٣) رقم ١٤٩٦٥)_

(٥)المصنف لابن أبی شيبة (٣٤٥\٣ ) كتاب الحج باب في الرجل يحلق قبل أن يذبح رقم ١٤٩٥٤)_

(٦)قال القطان والنسائی ليس بالقوی وقا أحمد لا بأس به انظرالكاشف (٢٢٥\١و ٢٢٦) وانظرتهذيب التهذيب(١٦٧\١و ١٦٨) وميزان الإعتدال(٦٧\١) رقم ٢٢٥)_

(٧)شرح معانی الآثار (٤٩٣\١) كتاب مناسک الحج باب من قدم من حجه نسكاً قبل نسک قال الحافظ فی الدراية (٤١\٢) وأخرجه الطحاوی من وجه آخر أحسن منه عنه)_

(٨)منصف ابن ابی شيبة (٣٤٥\٣) رقم ١٤٩٥٣)_

(٩)مصنف ابن ابی شيبة (٣٤٥\٣) رقم ١٤٩٥٥)-

(١٠)مصنف ابن ابی شيبة (٣٤٥\٣) رقم ١٤٩٥٧و ١٤٩٥٨)-

(١١)فتح القدير(٤٦٩\٢)_

(١٢)عن اسامة بن شريک قال خرجت مع النبی ﷺ حاجاً فكان الناس يأتونه فمن قال يارسول الله سعيت قبل أن أطوف أوقدمت شيأ أو أخرت شئاً فكان يقول لا حرج إلا علی رجل إقترض عرض رجل مسلم وهو ظالم فذلک حرج وهلک ..سنن أبی داود كتاب المناسک باب فمين قدم شيأ قبل شئ فی حجه رقم ٢١٠٥)_

وجه وه کله چه صحابه کرامو ﷺ د نبی ﷺ نه خطبه واوریده نوخپل افعال ئې دترتیب خلاف بیاموندل.ددې وجې هغوی سره دګناه ویره شوه ددې خیال داصلاح دپاره نبی ﷺ اوفرمائیل «لاحرج»(١)

حقیقت دا دې چه د نبی ﷺ سره دصحابه کرامو ﷺ دحج دا اولنئ موقع وه اوتردغه وخته پورې دمناسك حج صحیح علم چاته نه وو.ددې وجې د فساد ترتیب ګناه پورته کړې شوه ددې تائید په شرح معانی الآثارکښې دحضرت ابو سعید خدری ﷺ په روایت سره کیږی په کوم کښې چه نبی ﷺ د مختلفو سوالانوپه جواب کښې «لاحرج» فرمائیل اوبیا ئې اوفرمائیل.«عبادالله وضع الله عزوجل الحرج الضیق وتعلموا مناسککم فإنها من دینکم»(٢)

ددې نه معلومه شوه.چه نبی ﷺ په دې مقام کښې دحرج کومه نفی کړې ده دا ددې وجې وو.چه دمناسك حج علم عام نه وو.خودا د وجوب جزاء اودم سره منافی نه ده (٣)

هم دا وجه ده.چه حضرت ابن عباس ﷺ د «لاحرج» والا حدیث راوی دې اوبه خپلهفتوی کښې د وجوب دم تصریح کوی.

دحضرت اسامه بن شریك په روایت کښې هم دې طرف ته اشاره ده.چه دلته د «حرج» نه مراد «اثم» دې.ځکه چه نبی ﷺ فرمائی «لاحرج لاحرج، إلا علی رجل اقترض عرض رجل مسلم وهو ظالم فذلك الذی حرج وهلك»(٤)

ګوری په حالت داحرام کښې که یوکس ته د بیمارئ یا تکلیف دوجې دحلق ضرورت پیښ شی.دقرآن په نص دا جائز ده.(٥)

اوبه ده باندې څه ګناه نشته.خوددې باوجود ددې عمل په وجه په ده باندې په اتفاق سره جزاء واجب ده.(٦)

دحجة الوداع په موقع چونکه د صحابه کرام ﷺ یوه لویه ډله د نبی ﷺ سره په اول ځل حج ادا کولو.اودمناسك حج نه کماحقه واقفیت نه وو.ددې وجې دفساد ترتیب ګناه پورته کړې شوه.اوبه «لاحرج» ئې هم دې رفع اثم بیان کړو.اګرچه دم بیا هم واجب دې.

ددې تقریرنه معلومه شوه.چه دعدم اثم حکم په هغه وخت کښې وو.په کوم وخت کښې چه د مناسك حج په صحیح طریقه باندې واقفیت نه وو.اوس چونکه دمناسك ټول تفصیلات

---

(١)انظر الکوکب الدری وتعلیقاته (١٢١\٢و ١٢٢)_

(٢)شرح معانی الآثار(٤٩٢\١) کتاب المناسک باب من قدم نسکاً قبل نسک )_

(٣)المصدر السابق)_

(٤)سنن أبی داود کتاب المناسک باب فیمن قدم شیأ قبل شئ فی حجه رقم ٢٠١٥)_

(٥) قال الله تعالی ﴿ ولاتحلقوا روسکم حتی یبلغ الهدی محله.فمن کان منکم مریضاً أو به أذی من رأسه ففدیه ممن صیام أو صدقة أو نسک..﴾ البقرة:١٩٦)_

(٦)بدائع الصنائع (١٩٢\٢) فصل:وأما ما یجری مجری الطیب...)_

مخامخ راغلي دى.نواوس جهل څه عذر نه دې.نوكه نن د داسې جهالت په وجه ترتيب فاسد شى.نونه يواځې دا چه دم به واجب وى بلكه گناه به هم وى. والله اعلم.

امام طحاوى رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله په مسلك باندې د آيت كريمه نه ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ (١) باندې استدلال كړې دې چه ددې آيت په رڼړا كښې نحر په حلق باندې مقدم كول ضرورى دى.تقديم حلق على النحر جائز نه دى اودا اجماعى مسئله ده.نوهركله چه دمحصر دا حكم دې.نود قارن وغيره به هم دا حكم وى.چه حلق قبل النحر به صحيح نه وى.اودمخالفت په صورت كښې به دم واجب وى.(٢)

**دحديث د ترجمة الباب سره انطباق** دلته ترجمة الباب «باب الفتيا وهو واقف على الدابة وغيرها» دې.دعلامه عينى اوقسطلانى وغيره په نسخوكښې هم داسې دى.(٣) اودكرمانى اوحافظ ابن حجر رحمهما الله په نسخوكښې د «وغيرها» لفظ نشته.(٤) كه دا لفظ موجود وى.اوكه نه وى.په حديث باب كښې د «وقف فى حجة الوداع بمنى للناس» الفاظ خوشته.د دابه وغيره څه ذكرنشته.نوپه ترجمة الباب كښې اوپه حديث مذكوركښې به مطابقت څنگه وى؟

علامه عينى اوقسطلانى رحمهما الله په نسخوكښې چونكه د «وغيرها» لفظ راغلې دې ددې وجې هغوى د روايت د اطلاق نه ترجمة ثابته كړې ده. نو فرمائى.چه «وقف» دخپل عموم په وجه وقوف على الدابة وغيرالدابة دواړو ته شامل دې.كيدې شى.چه نبى ﷺ په دابه وو.اوكيدې شى.چه په دابه نه وو. (٥)

خودحافظ ابن حجراوكرمانى رحمهما الله په نسخوكښې چونكه د «وغيرها» لفظ نشته.صرف «باب الفتيا وهو واقف على الدابة» ذكردى.ددې وجې دې ته ضرورت پيښ شو چه هغه خپله ترجمه په روايت سره ثابته كړى.اوپه روايت كښې د وقوف على الدابه څه ذكرنشته.بلكه په هغې كښې خو مطلقاً ..وقف.. ذكردې.نودامام بخارى رحمه الله ترجمه به څنگه ثابتيږى؟

---

(١) البقرة:١٩٦)_

(٢) شرح معانى الآثار(٤٩٣/١) قال الكاسانى رحمه الله فى بدائعه (١٥٨/٢) ولأبى حنيفه رحمه الله الإستدلال بالمحصر إا حلق قبل الذبح لأطى فى رأسه أنه تلزمه الفدية بالنص فالذى يحلق رأسه بغير الأذى به أولى ولهذا قال أبوحنيفة بزيادة التغليظ فى حق من حلق رأسه قبل الذبح بغير أذى حيث قال لا يجزنه غيرالدم وصاحب الأذى مخير بين الدم والطعام والصيام.كما خيره الله تعالى وهذا هو المعقول لأن الضرورة سبب لتخفيف الحكم وتيسيره فالمقول أن يجب فى حال الإختيار بذلک السبب زيادة غلظ لم يكن فى حال العذر فأما أن يسقط من الأصل فى غيرحالة العذر ويجب فى الة العذر فممتنع)_

(٣) عمدة القارى(٨٨/٢) وارشاد السارى(١٨٢/١)_

(٤) شرح الكرمانى(٦٣/٢) وفتح البارى(١٨٠/١)_

(٥) عمدة القارى (٨٨/٢) وإرشاد السارى(١٨٢/١)_

حافظ ابن حجر رحمه الله جواب ورکړي دي چه امام بخاری رحمه الله د روایت نورو طرقو ته اشاره کړي ده. په کتاب الحج کښې روایت دي «وقف رسول الله ﷺ على ناقته ..»[1] نو د مصنف رحمه الله ترجمه ثابته شوه.[2]

په دې باندې اشکال دې چه په روایت کښې خو د «ناقة» ذکر دې او په ترجمة کښې د «دابة» ذکر دې او په دابه او ناقه کښې فرق وی ځکه چه ناقه خاص دابه ته وائی او د دابه اطلاق په هرځناور کیږی.

ددې جواب دا دې اګرچه په لغت کښې د دابة اطلاق «مايدب على الأرض» باندې کیږی خو په عرف کښې په مرکوب باندې کیږی. او ناقه هم احدى المرکوبات ده.[3] نو هرکله چه په یو مرکوب باندې او دریدل او دجواب ورکول جواز ثابت شو نو دنورو مرکوبات باندې د سورلئ په حال کښې جواب ورکول پخپله ثابت شو.

علامه عینی رحمه الله په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې دا اعتراض کړې دې چه دا څنګه خبره ده چه دعوی دلته ده. او دلیل هلته؟ یعنی دعوی خو په کتاب العلم کښې ده. او دلیل په کتاب الحج کښې دې.[4]

خو دا اعتراض صحیح نه دې. ځکه چه دا د تراجم ابواب په سلسله کښې دامام بخاری رحمه الله د جاری اصولو څنی دې.[5]

علامه عینی رحمه الله اګرچه دلته او دغه شان په «باب السفر فى العلم» کښې په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې سخت تنقید کړې دې. او په دې اصل باندې ئې رد کړې دې.[6] خو پخپله دوی په «باب من حمل جارية صغيرة على عنقه فى الصلاة» په ترجمة الباب کښې د «على عنقه» اثبات هم په دې اصل په مدد سره کړې دې.[7] دغه شان په باب «تسوية الصفوف عند الإقامة وبعدها» کښې هم دا اصل استعمال کړې دې.[8] دغه شان په باب «باب التقاضى والملازمة فى المسجد» کښې هم ددې اصل ذکر کړې دې.[9] والله اعلم وعلمه اتم واحکم.

---

[1] صحيح البخارى (٢٣٤\١) كتاب الحج باب الفتيا على الدابة عند الجمرة رقم ١٧٣٨)_

[2] فتح البارى (١٨٠\١ و ١٨١)_

[3] فتح البارى (١٨٠\١)_

[4] عمدة القارى (٨٨\٢)_

[5] الأبواب والتراجم (ص.٨) أصل نمبر ۶ ومقدمة لامع الدرارى (ص.٣٥٧) الأصل الحادى عشر من أصول التراجم)

[6] عمدة القارى (٨٨\٢) و (١٧٧\٢ و ١٧٨)_

[7] عمدة القارى (٣٠١\٤) كتاب الصلاة أبواب سترة المصلى)_

[8] عمدة القارى (٢٥٣\٥) كتاب الأذان)_

[9] عمدة القارى (٢٢٨\٤) كتاب الصلاة)_

## ۲۴- باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس

په مخکنی اودې باب کښې مناسبت ښکاره دې چه په دواړو بابونوکښې د فتوی ذکردې.

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دلته د «فتوى بالإشارة» جواز بيانوی.اګرچه په دې زمانه کښې احوط دا ده.چه په اشاره باندې فتوی ورنکړې شی.(۱)

مطلب دا دې چه په حقيقت کښې مستفتی دجواب داجمال نه غلطه فائده اخلی نوپه اشارې سره خوبه په طريق اولی غلطه فائده اخستې شی.خکه چه کيدې شی.څوك دا سوچ اوکړی.چه په اشاره سره فتوی ورکول به جائز نه وی. نوامام بخاری رحمه الله دا جواب بيان کړو.اودا ئې اووئيل.چه کله په يوځائې کښې دخطرې ويره نه وی.نوپه اشارې سره په جواب ورکولوکښې څه حرج نشته.خوچه په کوم ځائې کښې د مستفتی د ګډبډ کولوويره وی.اومفتی دا ګنړی.چه مستفتی به دهوکه وکړی.نوپه اشارې سره جواب ورکول نه دی پکار.بلکه ښکاره جواب ورکول پکار دی.

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائی.چه نبی ﷺ به په تعليم اوتبليغ کښې ډيراهتمام کولو په ايضاح اوافهام کښې به ئې دهرممکن اړخ خيال ساتلو.تردې چه بعضې وخت به ئې درې درې ځله ارشاد فرمائيل.(۲) اوکله به ئې د بل غرض دپاره د دومره تکرارنه کاراخستلو چه صحابه کرامو رضی الله عنهم ته به ددې وينا نوبت راغلو.«ليته سکت»(۳)

ددې تقاضا دا وه.چه دسوال جواب. اوتعليم اوتبليغ.په واضح انداز کښې.په غيرمبهم الفاظواوعباراتوکښې ادا کړې شی.صرف په اشاروباندې اکتفاء نشی کولې.نوامام بخاری رحمه الله دا اوخودله.که يوطرف ته دنبی ﷺ نه په تعليم کښې .زيات وضاحت،دافهام اهتمام منقول دې.نوبل طرف ته دنبی ﷺ نه په اشارو کښې جواب ورکول هم منقول دی.اصل کښې چه څنګه موقع به وه.هغه شان به ئې کول.که په خبره کښې به خفاء وه.نوښکاره وضاحت به ئې کولو.اوکه خبره به ښکاره وه.صرف په اشاره به کارکيدو.نوپه خپلو اشارو سره به ئې جواب ورکولو.نوکه دمستفتی دمفتی نه د څه آسانې خبرې تپوس اوکړی.دکوم جواب چه په

---

(۱) شرح تراجم أبواب البخاری)_

(۲) عن أنس عن النبی ﷺ أنه كان إذا تكلم بكلمة أعادها ثلاثاً حتى تفهم عنه... صحيح البخاری (۳۵/۱) كتاب العلم باب من أعاد الحديث ثلاثاً ليفهم عنه رقم ۹۵)_

(۳) عن أبی بكرة قال كنا عند رسول الله ﷺ فقال ألا أنبئكم بأكبر الكبائر؟ ثلاثاً.. الإشراک بالله وعقوق الوالدين. وشهادة الزور.أو قول الزور.وكان رسول الله ﷺ متكئاً فجلس فما زال يكررها حتى قلنا ليته سكت.. صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الكبائر وأكبرها رقم ۲۵۹) وانظر الجامع للترمذی كتاب الشهادات باب ما جاء فی شهادة الزور رقم ۲۳۰۱ وأبواب تفسيرالقرآن باب ومن سورة النساء رقم ۳۰۱۹) ومسند أحمد (۳۶/۵و ۳۷)_

اشاره ورکول کافي کيږي نو په دې کښې څه باك نشته

..هرسخن نکتے وهرنکته مکانے دارد..(١)

[٨٠] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ (٢) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ فِي حَجَّتِهِ فَقَالَ ذَبَحْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ قَالَ وَلَا حَرَجَ قَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ وَلَا حَرَجَ

[١٦٣٤و ١٦٣٦و ١٦٤٧و ١٦٤٨و ٦٢٨٩]

## رجال الحديث

① **موسى بن اسماعيل**: دا ابوسلمه موسى بن اسماعيل تبوذکي بصري رحمه الله دې د دوی مختصر حالات په بدء الوحي کښې د څلورم حديث لاندې تيرشوی دی.(٣) مونږ به دلته لږ په تفصيل سره ددوی حالات ذکرکوو.

ددوی د ابراهيم بن سعد الزهري ،جريربن حازم،جويريه بن اسماء،حماد بن زيد،حماد بن سلمه، داود بن ابی الفرات،سلام بن ابی مطيع،شعبه بن الحجاج،عبدالله بن المبارك، عبدالعزيز بن مسلم ،عبدالوارث بن سعيد . معتمربن سليمان،مهدي بن ميمو او ابوعوانه الوضاح بن عبدالله وغيره حضراتو نه روايت د حديث کوی.

اود دوی نه روايت کونکوکښې امام بخاري،ابوداود ،ابرايهم حربي، احمدبن منصور رمادي،ابوزرعه رازي،ابوحاتم رازي،او يعقوب بن شيبه رحمهم الله وغيره دی.(٤)

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي.((ثقة مامون))(٥)

ابوالوليد طيالسي رحمه الله فرمائي.((ثقة صدوق))(٦)

---

(١)الأبواب والتراجم (ص.٥١)_

(٢) قوله عن ابن عبس ،الحديث أخرجه البخاري أيضاً في صحيحه (٢٣٢\١ و ٢٣٣) كتاب الحج باب الذبح قبل الحلق رقم (١٧٢١و ١٧٢٣) و(٢٣٤\١ و ) كتاب الحج باب إذا رمى بعد ما أمسى أو حلق قبل أن يذبح ناسياً أو جاهلاً رقم ١٧٣٤و ١٧٣٥) و(٩٨٦\٢) كتاب الأيمان والنذور باب إذا حنث ناسياً في الأيمان رقم ٦٦٦٦) وأخرجه مسلم في صحيحه في كتاب الحج باب جواز تقديم الذبح على الرمي والحلق على الذبح وعلى الرمي وتقديم الطواف عليها كلها رقم ٣١٦٤ وأخرجه النسائي في سننه في كتاب المناسك باب الرمي بعد المساء رقم ٣٠٦٩) وأخرجه أبوداود في سننه في كتاب المناسك باب الحلق والتقصير رقم ١٩٨٣) وأخرجه ابن ماجه في سننه في كتاب المناسك باب من قدم نسكاً قبل نسك رقم ٣٠٤٩و ٣٠٥٠)

(٣)كشف الباري(٤٣٣\١ و ٤٣٤)_

(٤)د شيوخ اوتلازمذه دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(٢٢\٢٩و ٢٤)_

(٥) تهذيب الكمال(٢٤\٢٩)_

(٦)تهذيب الكمال(٢٩\ ٢٥)_

ابن سعد رحمه الله فرمائی.«كان ثقة كثير الحديث»[1]
ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی.او لیکلی ئې دی.«كان من المتقنين»[2]
ابن حزم رحمه الله فرمائی.«ثقة إمام مشهور»[3]
عجلی رحمه الله فرمائی.«بصری ثقة»[4]
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.ثقة ثبت»[5]
دغه شان دوی فرمائی.«الحافظ الحجة أحد الأعلام»[6]
البته ابن خراش رحمه الله په دوی باندې کلام کوی.اوپه مبهم انداز کښې فرمائی.«صدوق وتكلم الناس فيه»[7]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی«كذا قال ولم يفسر ذلك الكلام»[8]مطلب دا دې چه دچا توثيق موجود وی.په هغه باندې مبهم جرح څه اثرنه کوی.نودابن خراش رحمه الله دکلام څه اعتبارنشته
حافظ ذهبی رحمه الله په ميزان الاعتدال کښې ددوی د ذکرکولونه پس لیکی.«لم أذكرها سلمة للين فيه،لكن لقول ابن خراش فيه ،صدوق وتكلم الناس فيه قلت القائل الذهبي نعم تكلموا فيه بأنه ثقة ثبت رافضي»[9]
په کال ۲۲۳ھ کښې وفات شوی دی.[10] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.
③ وهيب:دا وهيب بن خالد بن عجلان باهلی بصری رحمه الله دې.د دوی حالات په كتاب الايمان کښې د «باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال» لاندې تيرشوې دې.[11]
④ أيوب: دا ايوب بن ابى تميمه كيسان سختيانى بصرى رحمه الله دې.د دوی حالات په کتاب

---

[1])الطبقات لابن سعد (۷\۳۰۶)_
[2])الثقات لابن حبان (۱۹\۱۶۰)_
[3])المحلى (۲۰۱۶)_
[4])تعليقات تهذيب الكمال(۲۹\۲۶)_
[5])الكاشف (۱۲\۳۰) رقم ۵۶۷۷)_
[6])ميزان الإعتدال(٤\۲۰۰) رقم ۸۸٤۷)_
[7])المصدر السابق)_
[8])هدى السارى (ص.٤٤٦)_
[9])ميزان الإعتدال(٤\۲۰۰) رقم ۸۸٤۷)_
[10])تهذيب الكمال(۲۹\۲۶)_
[11])كشف البارى(۱۲\۱۱۸)_

الايمان كښې د «باب حلاوة الايمان» لاندې تيرشوى دى (١)

④ **عكرمه:** دا عكرمه مولى عبدالله بن عباس رضي الله عنه دې ددوى تفصيلي حالات په كتاب العلم كښې د «باب قول النبي ﷺ اللهم علمه الكتاب» لاندې تيرشوى دى ۔

⑤ **ابن عباس رضي الله عنهما:** د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حالات په بدء الوحى كښې دڅلورم نمبرحديث لاندې اوپه كتاب الايمان كښې د «باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې تيرشوى دى (٢)

**قوله** أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ فِي حَجَّتِهِ فَقَالَ ذَبَحْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ قَالَ وَلَا حَرَجَ: دنبى ﷺ نه دحج په موقع باندې تپوسونه شوى وو. يوكس تپوس وكړو چه ما د رمى نه وړاندې ذبح كړې ده. نبى ﷺ په لاس سره اشاره وكړه او وې فرمائيل څه باك نشته.

كيدې شى چه نبى ﷺ اشاره اوقول دواړه جمع كړى وى. په دې طريقه چه په لاس ئې اشاره كړې وى. اوپه ژبه ئې «لاحرج» فرمائيلى وى.

دا هم كيدې شى چه «لاحرج» دا د اشارې شرح وى. يعنى نبى ﷺ چه په لاس باندې كومه اشاره كړې وه. ددې مطلب دا وو. چه «لاحرج» په تقديم اوتاخيركښې څه باك نشته. دا دويمه معنى دامام بخارى رحمه الله د ترجمې سره زياته مناسب ده. (٣)

**قوله** قَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ وَلَا حَرَجَ: يوكس اووئيل. ما د ذبحې نه وړاندې حلق كړې دې. نبى ﷺ د لاس په اشارې سره اوفرمائيل. څه باك نشته.

[٨٥] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ عَنْ سَالِمٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُقْبَضُ الْعِلْمُ وَيَظْهَرُ الْجَهْلُ وَالْفِتَنُ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا الْهَرْجُ فَقَالَ هٰكَذَا بِيَدِهِ فَحَرَّفَهَا كَأَنَّهُ يُرِيدُ الْقَتْلَ

## رجال الحديث

① **المكى بن ابراهيم:** داامام مكى بن ابراهيم بن بشير بن فرقد تميمى حنظلى بلخى دې. ددوى كنيت ابوالسكن دې. بعضې حضراتو ددوى د نيكه نوم فرقد بن بشيرخودلې دې. (٤)

---

(١) كشف البارى (٢/٢٦)_
(٢) كشف البارى (١/٤٣٥) و(٢/٢٠٥)_
(٣) فتح البارى (١/١٨١)_
(٤) تهذيب الكمال (٢٨/٤٧٦) وسير أعلام النبلاء (٩٥٤)_

په کال ۱۲۰ھ کښې پيدا شوې وو

دوی دامام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك.يزيدبن ابی عبيد.بهزبن حكيم .عبدالله بن سعيد بن ابی هند .ابن جريج.حنظله بن ابی سفيان.ايمن بن نابل. فطربن خليفه.هشام الدستوائی. اوعثمان بن الاسود. رحمهم الله وغيره نه روايت کوی

ددوی نه روايت کونکوکښې امام احمدبن حنبل.امام بخاری.عبيدالله بن قواريری.يحيی بن معين.محمدبن بشار.بندارين ابراهيم بن يعقوب جوزجانی .اوعبدالصمد بن غالب رحمهم الله وغيره حضرات دی.(۱)

امام مکی بن ابراهيم رحمه الله دامام بخاری رحمه الله په خصوصی استاذانو کښې وو.ترڅو چه دامام بخاری رحمه الله په صحيح بخاری کښې چه کوم ثلاثيات دی.په هغې کښې يوولس احاديث هم ددوی نه مروی دی.(۲)

ددوی دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله سره ډيرعقيدت وو.دوی فرمانی. «كان أبوحنيفة أعلم أهل الأرض»(۳)

کردری اوموفق په «مناقب» کښې نقل کړی دی.چه يوځل امام مکی بن ابراهيم درس ورکولو. نودوی اوفرمائيل.«حدثنا أبوحنيفة...» يوکس اودريدل اووې ونيل «حدثنا عن ابن جريج ولا تحدثنا عنه» مکی بن ابراهيم ډيرسخت خفه شو.په مخ باندې ئې ددې آثارښکاره شول. هغه کس توبه اوويستله.اود پښيمانتيا اظهارئې اوکړو.خوحضرت مکی بن ابراهيم رحمه الله اوفرمائيل.«إنا لا نحدث السفهاء حرمت عليك أن تكتب عني قم من مجلسي» نوترڅوپورې چه هغه دمجلس نه پاسيدلې نه وو.دوی حديث نه اورول.د هغه د پاسيدو نه پس دوی اوفرمائيل. «حدثنا أبوحنيفة..» اودرس ئې جاری کړو.(۴)

امام احمدبن حنبل اوامام عجلی رحمهما الله فرمانی.«ثقة»(۵)

---

(۱) دشيوخ اوتلامذو دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(۲۸\۴۷۷، ۴۷۹) وسير أعلام النبلاء (۱۹\۵۵۰و ۵۵۱)-

(۲) مقدمة لامع الدرارى (ص.۶٤) و(۲\۱۰۲و۱۰۳) وأخرج عنه البخارى الأربعة الأول من الثلاثيات والسادسة والسابعة والحادية عشرة والثانية عشرة.والرابعة عشرة والسابعة عشرة والتاسعة عشرة)) دامام مکی بن ابراهيم نه علاوه دنورو ثلاثياتو مکمل تخريج به هم وړاندې په ((باب إثم من كذب على النبی ﷺ)) داولنی ثلاثی روايت لاندې راشی.)-

(۳) البداية والنهاية (۱۰\۱۲۳)_

(۴) مناقب الإمام الأعظم للإمام الموفق بن احمد المكی (۱\۲۰۳و ۲۰۴) الباب التاسع فی حفظ لسانه وورعه وتقواه ومناقب الإمام الأعظم للإمام محمدبن محمد بن شهاب المعروف بإبن البزازالكردری (۱\۲۲۵و بذيل مناقب الموفق) الفصل الرابع فی أخلاقه)_

(۵) تهذيب الكمال(۲۸\۴۷۹) وسير أعلام النبلاء (۹\۵۵۱)_

امام يحى بن معين رحمه الله فرمائى: «صالح».[1]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى: «محله الصدق».[2]

امام نسائى رحمه الله فرمائى: «ليس به بأس».[3]

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى: «وكان ثقة.. وكان ثبتا فى الحديث».[4]

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى: «ثقة مامون».[5]

مسلمه رحمه الله فرمائى: «ثقة».[6]

خليلى رحمه الله فرمائى: «ثقة متفق عليه».[7]

په كال ۲۱۵ھ كښې وفات شوى وو.[8]

۞ خنظله بن ابى سفيان: دا خنظلة بن ابى سفيان جُمحى قرشى مكى دې.د دوى مختصر حالات په كتاب الايمان كښې د «باب الإيمان وقول النبى ﷺ بنى الإسلام على خمس» لاندې تيرشوى دى.[9]

۞ سالم: دا سالم بن عبدالله بن عمر رحمه الله دې.د دوى جالات په كتاب الايمان كښې د «باب الحياء من الإيمان» لاندې تيرشوى دى.[10]

۞ حضرت ابوهريرة رضي الله عنه: ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب أمور الإيمان» لاندې تيرشوى دى.[11]

**قوله**: قَالَ يُقْبَضُ الْعِلْمُ وَيَظْهَرُ الْجَهْلُ وَالْفِتَنُ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ: نبى ﷺ اوفرمائيل چه علم به پورته شى.اوجهالت اوفتنې به غالبې شى.اوپه هرج كښې به زيادت اوشى.

---

[1] المصادر السابقة)_

[2] المصادر السابقة)_

[3] المصادر السابقة)_

[4] الطبقات لإبن سعد(۳۷۳\۷)_

[5] تهذيب الكمال(۴۸۱\۲۸) وسير أعلام النبلاء (۵۵۲\۹)_

[6] تهذيب التهذيب(۲۹۵\۱۰)_

[7] المصدر السابق)_

[8] الكاشف (۲۹۳\۲) رقم ۵۶۲۱)_

[9] كشف البارى(۶۳۶\۱)_

[10] كشف البارى(۱۲۸\۲)_

[11] كشف البارى(۶۵۹\۱)_

**قوله** قِيلَ يَارَسُولَ اللّهِ وَمَا الْهَرْجُ: تپوس اوشو يارسول الله هرج څه څيز دې؟

**قوله** فَقَالَ هٰكَذَا بِيَدِهٖ فَحَرَّفَهَا كَأَنَّهٗ يُرِيدُ الْقَتْلَ: نبى ﷺ په لاس سره اشاره وكړه.لكه چه نبى ﷺ لاس كوږ كړو اوخودل.د نبى ﷺ مراد قتل وو مطلب دا چه نبى ﷺ په لاس سره اشاره اوكړه اوتحريف ئې اوكړو.يعنى لاسونه ئې كاږه كړل داسې اشاره ئې اوكړه څنګه توره وهونكې لاس اوچتوى

«كأنه يريد القتل» جمله دخنظله په شاګردانو كښې دچا اضافه شوې تفسيرى جمله ده.ځكه چه دا روايت ابوعوانه د عباس دورى عن ابى عاصم عن خنظلة په طريق سره نقل كړې دې. عباس دورى وائى «وأرانا أبوعاصم كأنه يضرب عنق الإنسان»(١)

د «هرج» معنى دهرج اصلى معنى ديوڅيز اتساع اوكثرت دې.هم ددې وجې د اختلاط اوفتنې دپاره هم استعمال شوې دې.(٢)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه «هرج» معنى فتنه ده.ددې نه د قتل معنى اخستل مجازا صحيح دى.ځكه چه هرج دقتل د لوازماتوځنې دې.البته كه د هرج معنى د قتل د لغت نه ثابته شى.نوبيا به دا ددې حقيقى معنى وى.(٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه علامه كرمانى رحمه الله نه ذهول شوې دې.ځكه چه وړاندې په كتاب الفتن كښې دا روايت راغلې دې.(٤) په هغې كښې راوى دا تصريح هم كړې ده.چه داهل حبشه ژبه كښې د هرج معنى قتل دې.(٥)

[٨٢] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ فَاطِمَةَ عَنْ أَسْمَاءَ(١) قَالَتْ أَتَيْتُ عَائِشَةَ وَهِيَ تُصَلِّي فَقُلْتُ مَا شَأْنُ النَّاسِ فَأَشَارَتْ إِلَى السَّمَاءِ فَإِذَا

---

(١)فتح البارى(١\١٨٢)_
(٢)النهاية(٥\٢٥٧)_
(٣)شرح الكرمانى(٢\٦٦)_
(٤)صحيح البخارى (٢\١٠٤٦و ١٠٤) كتاب الفتن باب ظهورالفتن رقم ٧٠٦٥) رقم ٧٠٦٥و ٧٠٦٦)_
(٥)فتح البارى(١\١٨٢)_
(١)قوله عن أسماء: الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى (١\٣٠و ٣١) كتاب الوضوء باب من لم يتوضأ إلا من الغشى المثقل رقم (١٨٤) وى (١\١٢٦) كتاب الجمعة (الصلاة) باب من قال فى الخطبة بعد الثناء أما بعد رقم ٩٣٢) وفى (١\١٤٤) كتاب الكسوف (الصلاة) باب صلاة النساء مع الرجال فى الكسوف رقم ١٠٥٣) وباب من أحب العتاقة فى كسوف الشمس رقم ١٠٥٤) وفى (١\١٤٥) كتاب الكسوف باب قول الإمام فى خطبة الكسوف (أما بعد رقم ١٠٦١) وفى (١\١٦٥) كتاب السهو رقم ١٠٥٤) باب الإشارة فى الصلاة رقم (١٢٣٥) وى (١\١٨٣) كتاب الجنائز باب ما جاء فى عذاب القبر رقم ١٣٧٣) وفى (١\٣٤٢) كتاب العتق باب ما يستحب من العتاقة فى الكسوف والآيات رقم (٢٥١٩) و(٢٥٢٠) وفى (٢\١٠٨٢) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب الإقتداء بسنن رسول الله ﷺ رقم ٧٢٨٧) ومسلم فى صحيحه فى كتاب الكسوف باب ما عرض على النبى ﷺ فى صلاة الكسوف من أمرالجنة والنار رقم ٢١٠٣و ٢١٠٨) والنسائى فى كتاب الكسوف باب التشهد والتسليم فى صلاة الكسوف رقم ١٤٩٨ وابن ماجه فى سننه وفى كتاب إقامة اللصلاة باب ما جاء فى صلاة الكسوف رقم ١٢٦٥)_

النَّاسُ قِيَامٌ فَقَالَتْ سُبْحَانَ اللّٰهِ قُلْتُ آيَةٌ فَأَشَارَتْ بِرَأْسِهَا أَيْ نَعَمْ فَقُمْتُ حَتَّى تَجَلَّانِي الْغَشْيُ فَجَعَلْتُ أَصُبُّ عَلَى رَأْسِي الْمَاءَ فَحَمِدَ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ لَمْ أَكُنْ أُرِيتُهُ إِلَّا رَأَيْتُهُ فِي مَقَامِي حَتَّى الْجَنَّةُ وَالنَّارُ فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّكُمْ تُفْتَنُونَ فِي قُبُورِكُمْ مِثْلَ أَوْ قَرِيبَ لَا أَدْرِي أَيَّ ذَلِكَ قَالَتْ أَسْمَاءُ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ يُقَالُ مَا عِلْمُكَ بِهَذَا الرَّجُلِ فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ أَوِ الْمُوقِنُ لَا أَدْرِي بِأَيِّهِمَا قَالَتْ أَسْمَاءُ فَيَقُولُ هُوَ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ جَاءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى فَأَجَبْنَا وَاتَّبَعْنَا هُوَ مُحَمَّدٌ ثَلَاثًا فَيُقَالُ نَمْ صَالِحًا قَدْ عَلِمْنَا إِنْ كُنْتَ لَمُوقِنًا بِهِ وَأَمَّا الْمُنَافِقُ أَوِ الْمُرْتَابُ لَا أَدْرِي أَيَّ ذَلِكَ قَالَتْ أَسْمَاءُ فَيَقُولُ لَا أَدْرِي سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ شَيْئًا فَقُلْتُهُ

[۱۸۲و ۸۸۰و ۱۰۰۵و ۱۰۰۶و ۱۰۱۲و ۱۱۷۸و ۲۳۸۳و ۲۳۸۴و ۶۸۵۷و ۷۱۲]

## رجال الحديث

① موسى بن اسماعيل: ددوی حالات اوس هم ددې باب کښې داولنی حدیث لاندې تیرشول.

② وهیب: دا وهیب بن خالد بن عجلان باهلی بصری رحمه الله دې.ددوی حالات په کتاب الایمان کښې د «باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال» لاندې تیرشوی دی.[1]

③ هشام: دا هشام بن عروه رحمه الله دې.ددوی اجمالی حالات په بدء الوحی کښې د دویم حدیث لاندې [2] اوتفصیلی حالات په کتاب الایمان کښې د «باب أحب الدین إلی الله أدومه» لاندې تیرشوی دی.[3]

④ فاطمه: دا فاطمه بنت المنذربن الزبیر بن العوام قرشیه اسدیه ده.[4]
داد هشام بن عروه بن الزبیرالعوام بی بی ده اوددوی نه په عمرکښې دولس دیارلس کاله مشره وه.[5]
دوی د خپلې نیا حضرت اسماء بنت ابی بکر.حضرت عمره بنت عبدالرحمن انصاریه او حضرت ام سلمه رضی الله عنها روایت کوی.
ددوی نه روایت کونکوکښې ددوی د خاوند هشام بن عروه.نه علاوه محمد بن اسحاق بن

---

[1] کشف الباری(۲\۱۱۸)_
[2] کشف الباری(۱\۲۹۱)_
[3] کشف الباری(۱\۲۹۱)_
[4] تهذیب الکمال(۳۵\۲۶۵)_
[5] تهذیب الکمال وتعلیقاته (۳۵\۲۶۶)_

يسار او محمد بن سوقه رحمه الله دی.(۱)
امام عجلی رحمه الله فرمائی «مدنية تابعية ثقة».(۲)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ثقة».(۳)
ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دی.(۴) والله اعلم.

⑤ **اسماء رضی الله عنها**: د دا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه لور حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنهما ده.دحضرت زبیربن العوام اهلیه وه.(۵)
دهجرت نه تقریباً اوویشت کاله وړاندې پیدا شوې وه.(۶) په شروع کښې تقریباً د اوولس سړو نه پس مسلمانه شوې وه.(۷) دهجرت په موقع باندې حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د دوی په خیټه کښې وو.(۸) دوی په مدینه منوره کښې په مهاجرینوکښې د ټولونه اولنې مولود وو.(۹)
دوی ته ذات ا لنطاقین هم وئیلی شی.خکه چه د نبی صلی الله علیه وسلم اودحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د هجرت په موقع دوی خپل څادر دوه ټکړې کړې وو.اوپه هغه یوه ټکړه ئې د سفرتوښه دان ترلې وو.نبی صلی الله علیه وسلم په دغه موقع فرمائیلی وو.«أبدلك الله بنطاقك هذا نطاقين في الجنة».(۱۰)
دحضرت زبیر رضی الله عنه سره چه کله ددې نکاح اوشوه.نوپه هغه وخت کښې حضرت زبیر رضی الله عنه سره څه نه وو.دوی به ټول کارتردې چه د خپل اس خسمانه هم په خپله کوله.روسته حضرت ابوبکر رضی الله عنه دوی ته یوغلام ورکړو.نود اس د خسمانې نه دا فارغه شوه.(۱۱)
حضرت اسماء د عزم اوهمت ستن وه.حجاج بن یوسف اوحضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د جنګ په موقع کله چه حجاج دې قتل کړو.اوپه سولئ زوړوند کړو.نوپه هغه خائې باندې حضرت اسماء تیره شوه.په هغه وخت کښې دا نابینا شوې وه.وې وئیل «أما آن للراكب أن ينزل؟» آیا ددې شهسوار د راکوزیدو وخت لانه دې شوې.حجاج اووئیل.ددې منافق خبره

---

(۱) دشیوخ اوتلامذه دحالاتودپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۳۵\۲۶۵)_
(۲) تهذیب الکمال(ص.۷۵۲) رقم ۸۶۵۸)_
(۳) تقریب التهذیب (ص.۷۵۲) رقم ۸۶۵۸)_
(۴) الثقات لابن حبان (۵\۳۰۱)_
(۵) تهذیب الکمال(۳۵\۱۲۳)_
(۶) الإصابة (۴\۲۳۰)_
(۷) تهذیب الکمال(۳۵\۱۲۴و ۱۲۵)_
(۸) تهذیب الکمال(۳۵\۱۲۳)_
(۹) تقریب التهذیب (۳۰۳) رقم ۳۳۱۹)_
(۱۰) تهذیب الکمال (۳۵\۱۲۴)_
(۱۱) الإصابة (۴\۲۳۰)_

کوی حضرت اسماء رضی الله عنها ورته اوونیل. «والله ماكان منافقاً كان صواماً قواماً براً» هغه ورته اوونيل . واپس لاړه شه.ته دبوډاتوب دوجې ستا عقل زائله شوې دې.
وائی چه حجاج کله دې د سولئ نه راکوز کړو.نود یهودیانو په قبرستان کښې ئې اوغورځولو. اوبیا ئې حضرت اسماء رضی الله عنها راغوستله.حضرت اسماء رضی الله عنها انکاراوکړو.نوحجاج دوباره قاصد ورواليږلو.چه راشه گنې د ويختونه به دې په راښکلو راښکلو راولو.حضرت اسماء رضی الله عنها بیا انکاراوکړو.حجاج پخپله راغلو.اووې وئيل.گوره مادالله تعالى دشمن سره څه اوکړو؟ حضرت اسماء رضی الله عنها ورته جواب ورکړو.آو ما اوليدل.چه تا دهغه دنيا برباد کړه.اوهغه ستا آخرت تباه کړو. او نور ئې ورته اوونيل.چه ماته معلومه شوې ده.چه ته عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه پورې دخندا کولوپه وجه هغه ته «ابن ذات النطاقین» وائې.واوره.يقيناً زه «ذات النطاقین» يم.ما دځادرپه يو حصه باندې د نبی علیه السلام د سفرتوښه دان تړلې وو.اوبله حصه مې د عامو ښځو پشان د خپل سرباندې اچولې وو.او اوس واوره.چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی.چه په ثقيف کښې به يو دروغژن وی.اويو مفسد.دروغژن خو مونږ اوکتل. اود مفسد په باره کښې زما دا يقين دې.چه هم ته ئې.حجاج لا جوابه شو.اودهغه خائې نه پاسيدل.(۱)
دحضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د شهادت نه څه لس يا شل ورځې پس د سلو کالوپه عمر کښې په ۷۳ھ کښې حضرت اسماء رضی الله عنها وفات شوه.(۲) تردغه وخته پورې نه خو ددوی غاښ پریوتې وو.اونه ئې په عقل کښې څه کمې راغلې وو.(۳)
حضرت اسماء رضی الله عنها د نبی علیه السلام نه روايت کوی.او ددوی نه روايت کونکوکښې د ابوالزبیر نیکه،تدرُس،طلحه بن عبدالله بن عبدالرحمن ،عباد بن حمزه ،عباد بن عبدالله بن الزبير، عبدالله بن الزبیر،عبدالله بن عباس،عروه بن الزبیر،قاسم بن محمد ثقفی، ابوواقد الليثی،صفيه بنت شيبه،اوفاطمه بنت المنذربن الزبير رضی الله عنهم دی.(۴)
دحضرت اسماء رضی الله عنها نه ټول شپږ پنځوس احاديث مروی دی.په دې کښې څوارلس احاديث متفق عليه دی.په څلوروکښې بخاری اوپه څلوروکښې مسلم متفرد دی.(۵) رضی الله عنها وارضاها.

---

(۱)صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة رضی الله عنهم باب ذكر كذاب ثقيف ومبيرها رقم ۶۴۹۶)_
(۲)المصدر السابق)_
(۳)المصادر السابقة)_
(۴)تهذيب الكمال(۱۲۳\۳۵)_
(۵)خلاصة الخزرجي (ص،۴۸۸) وقال الذهبي :مسندها ثمانية وخمسون حديثاً إتفق لها البخاری ومسلم على ثلاثة عشر حديثاً وانفردالبخاری بخمسة أحاديث ومسلم بأربعة سير أعلام النبلاء (۲۹۶\۲) د ذخائرالمواريث (۳۴۷\۳و ۳۵۱) په تتبع سره معلومه شوه.چه پنځلس دی.اوامام بخاری په څلوروااوامام مسلم په څلوروکښې متفرد دی.والله اعلم)_

**قوله** قَالَتْ أَتَيْتُ عَائِشَةَ وَهِيَ تُصَلِّي: حضرت اسماء رضي الله عنها فرمائى چه عائشې رضي الله عنها ته ورغلم اوهغې مونځ كولو

دا صلاة الكسوف وو په ۹هـ كښې دحضرت ابراهيم د وفات په ورځ نمر تندر اونيولو (۱) نبى ﷺ جمات ته تشريف راوړلو.د مانځه وخت نه وو.خود صلاة الكسوف دپاره د صحابه كرامو رضي الله عنهم ډير لوئ شمار جمع شوې وو په دې موقع باندې حضرت اسماء رضي الله عنها دخپلې خورحضرت عائشې رضي الله عنها حجرې ته ورداخله شوه.حضرت عائشې رضي الله عنها په دغه وخت كښې مونځ كولو اوهم دخپلې حجرې نه ئې اقتداء كړې وه.حالانكه نبى ﷺ په جمات كښې د جماعت مونځ كولو

**قوله** فَقُلْتُ مَا شَأْنُ النَّاسِ فَأَشَارَتْ إِلَى السَّمَاءِ فَإِذَا النَّاسُ قِيَامٌ فَقَالَتْ سُبْحَانَ اللَّهِ: ما تپوس اوكړو.په خلقو څه شوى دى؟ يعنى بې وخته مونځ كوى؟

نوهغې اسمان طرف ته اشاره اوكړه.يعنى دې طرف ته ې اشاره اوكړه چه دا مونځ د نمر د تندر نيولوپه وجه كولې شى.خلق په حالت دقيام كښې وو. حضرت عائشې رضي الله عنها سبحان الله اووئيل.يعنى سبحان الله ئې اووئيل.اوآسمان طرف ته ئې اشاره اوكړه.اوغالبا سبحان الله ئې ددې وجې وئيلې وو.چه حضرت اسماء رضي الله عنها ته معلومه شى.چه دا په دې وخت كښې په ژبه جواب نشى وركولې.(۲)

**قوله** قُلْتُ آيَةٌ فَأَشَارَتْ بِرَأْسِهَا أَيْ نَعَمْ: ما تپوس اوكړو.آيا څه نښه يا علامه ښكاره شوې ده؟ نوهغې دسرپه خوزولو سر اشاره اوكړه.چه آو.

**قوله** فَقُمْتُ حَتَّى تَجَلَّانِي الْغَشْيُ فَجَعَلْتُ أَصُبُّ عَلَى رَأْسِي الْمَاءَ: زه اودريدم.تردې چه په ما باندې د بې هوشئ حالت غالب شو.نوما په خپل سر باندې اوبه واچولې.

داكثرو حضراتو په نيز دا «علانى» دې.اود كريمه په نسخه كښې «تجلانى» دې.(۳) ددې معنى پټول دى.«غشى» د اغماء يو صورت دې. د انسان په حواسوكښې سكوت راشى.قوت دراكه كارنه كوى (۴) دلته د «علانى الغشى» يا «تجلانى الغشى» نه ددې ابتدائى مقدمات مراد دى

۱)فتح البارى(۵۲۹\۲) كتاب الكسوف باب الصلاة فى كسوف الشمس)۔

۲)قال الكاسانى فى بدائع الصنائع (۲۳۵\۱) وإن أخبربخبر فقال ألحمدلله أ. أخبر بما يتعجب منه فقال سبحان الله فإن لم يرد جواب المخبرلم تقطع صلاته وإن أراد جوابه قطع عند أبى حنيفة ومحمد وعند أبى يوسف لا يقطع وإن أراد به الجواب)_

۳)فتح البارى( ۱۸۳\۱)_

۴)الغشىهو تعطل القوى المحركة والحساسة لضعف القلب من الجوع أو الوجع وإجتماع الروح الحيوانى كله إليه)

دغشي تكامل مراد نه دي.كه داسې وه نو حضرت اسماء رضي الله عنها به په دغه حالت كښې په خپل سر باندې اوبۀ څنګه اچولې حالانكه دا فرمائي ((حتى علاني الغشي فجعلت أصب على رأسي الماء))
هم ددې خاتې نه عالمانو رحمهم الله دا اخذ كړې دې چه غشي متكامل نه وو.يعنې داسې غشي وو چه په هغې كښې حواس سالم وو.نو اودس پرې نه ماتيږى (١) امام بخارى رحمه الله په دې باندې په كتاب الوضوء كښې ((باب من لم يتوضأ إلا من الغشي المثقل)) ترجمه منعقد كړې ده.(٢)

**قوله** فَحَمِدَ اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ لَمْ أَكُنْ أُرِيتُهُ إِلَّا رَأَيْتُهُ فِي مَقَامِي: بيا نبى ﷺ دالله تعالى حمد او ثناء بيان كړه.اوبيا ئې اوفرمائيل.كوم څيزونه چه ماته وړاندې نه وو خودلې شوى هغه ټول څيزونه ماته په دې مقام كښې اوخودلې شول.
يعنې نبى ﷺ ته په صلاة الكسوف په دوران كښې دټولوغيبى څيزونه مشاهده اوكړې شوه. هغه مشاهده چه په عالم دنيا كښې وى.نشى كولې.
دا مشاهده په ظاهره دعالم مثال وه.څكه چه په دې عالم كښې څومره څيزونه دى.نوپه عالم مثال كښې ددې شبيه اومثال موجود وى.دا يو مستقل عالم دې.كوم چه شاه ولى الله رحمه الله په تفصيل سره بيان كړې دې.(٣)

**قوله** حَتَّى الْجَنَّةُ وَالنَّارُ:تردې چه ماته جنت او دوزخ اوخودلې شول.
دلته يواشكال دې.هغه دا چه داسې قسم كلام د ترقۍ دپاره استعماليږى . ونيلى شى چه ما دا ليدل دى دا ليدلى تردې چه دا مې هم ليدلى دى.اودلته دترقۍ معنى په پوهه كښې نه راځى.څكه چه نبى ﷺ په ليلة المعراج كښې جنت او دوزخ دواړه كتلى وو.
ددې جواب دا دې.چه دلته د عالم سفلى بيان دې چه په دې كښې زه موجود ووم اوماته ډيرغيبى څيزونه اوخودلې شول.تردې چه جنت او دوزخ راته هم اوخودلې شول.اوپه شب معراج كښې دوى ته د بل عالم مشاهده كړې شوې وه.
دويم جواب دا كيدې شى.چه دجنت اودوزخ مشاهده په ليلة المعراج كښې دوى ته شوې وه.خوپه صلاة الكسوف كښې چه په كوم مخصوص كيفيت اوطريقه ورته ددې مشاهده اوشوه.دغه شان ورته په شب معراج كښې نه وه شوې.په دې صورت كښې به د ترقۍ تعلق دمخصوص صفت سره وى.
دريم جواب دا كيدې شى.چه داد امور عظام غايت وو.مطلب دا چه د مانځه په دوران كښې ماته د لويو لويو كارونو مشاهده اوكړې شوه.تردې چه دجنت او جهنم هم.نودا د رؤيت غايت نه دې.بلكه د دامورعظام غايت دې.(٤) والله اعلم.

---

(١)شرح صحيح البخارى لابن بطال (١/١٨٢)_
(٢)صحيح بخارى (١/٣٠و ٣١)_
(٣)حجة الله البالغة (١/٥و ٥٦) باب ذكر عالم المثال)_
(٤)حاشية السندى على صحيح البخارى (١/٥٠)-

**دجنت او جهنم وجود** ددې روايت نه معلومه شوه.چه جنت او دوزخ دواړه موجود دی.داهل سنت والجماعت دا متفقه عقيده ده.چه جنت او دوزخ پيدا شوی دی.په معتزله او قدريه کښې بعضې کسانوددی نه انکارکړې دې.اووائی.چه الله تعالی جنت او دوزخ لا تراوسه پورې نه دی پيدا کړی.بلکه د قيامت په روځ به ئې پيدا کوی.(۱)
خودا مذهب بيخی باطل دې.خکه چه دقرآن او سنت بې شميره نصوص دی.کوم چه دا فاسد مذهب باطلوی.(۲)
بعضې خلق وائی.چه مونږ خوددنيا ټوله جغرافيه معلومه کړه.خوپه يوځائې کښې راته هم جنت اودوزخ ملاؤ نشو.خوددوی دا دعوی بيخی غلطه ده.خکه چه نن بلکه هره ورځ نوې نوې انکشافات کيږی.هم ددې علم جديد د دعويدارو دا اعتراف دې.چه مونږته دا خبره وړاندې دا معلومه نه وه.اوس راته معلومه شوه.ددې اعتراف نه پس ددوی د دې دعوا څه قيمت پاتې کيږی.چه مونږ ته د دنيا جغرافيه معلومه کړې ده؟
اوس پورې لږه موده وړاندې صرف شپږ براعظم وو.او اوس پوره يو براعظم معلوم کړې شو.دکوم نوم چه انټارکټيکا دې.اودا عين ممکن ده.چه صبا ته يو نه بلکه څو براعظم معلوم کړې شی.نوآيا د داسې تحقيق په بنياد دا وئيلی شی.چه مونږ دټولې دنيا جغرافيه معلومه کړه.په دې کښې چرته هم دجنت او دوزخ نوم اونښه نشته؟ !!.
بيا دې دلته دا خبره هم ياده وی.چه داهل سنت والجماعت عقيده ده.چه جنت اودوزخ دواړه پيدا شوی دی.دا دعوا نه ده.چه هم په دې دنيا کښې دی. که بالفرض ستاسو خبره تسليم کړې شی.چه واقعی تاسود دنيا ګوټ ګوټ اولټول.نوبيا هم دا چرته لازميږی.چه جنت اودوزخ هم په دې دنيا کښې بيا موندئ .خکه چه دا خوپه دې عالم دنيا کښې نه دی.بلکه په بل عالم کښې دی.دکوم نه چه تاسو خبرنه ئې.
دلته يوسوال دا پيدا کيږی.چه نبی ﷺ خودا فرمائی.چه ماته د صلاة الکسوف په دوران کښې جنت اودوزخ اوخودلی شول.اوښکاره ده.چه صلاة الکسوف نبی ﷺ هم په دې دنيا کښې کړې وو.نوجنت او دوزخ به هم دلته وی.
دا سوال بيخی سطحی اوبې بنياده دې.ګورئ سره ددې چه نبی ﷺ به په دې دنيا کښې موجود وو.اوروزانه به ورته دبلې دنيا ډيرې خبرې خودلې شوې.نوکه جنت او دوزخ هم کوم چه د بلې دنيا څيزونه دی.په دې دنيا کښې اوخودلی شول.په دې کښې څه محال دې.اونه دا لازم ده.چه جنت او دوزخ هم ددې دنيا سره متعلق دی.دبلې دنيا يوکس د نبی ﷺ په خدمت کښې روزانه حاضريږی.د پيغام راوړلو فريضه ئې ادا کوله.اونبی ﷺ به ئې د حقائقو نه خبرول.اوصحابه کرامو ﷺ ته به هغه په وخت کښې معلومه شوه.کله چه به نبی ﷺ هغوی ته پخپله خبر ورکړو.نوکه په دې دنيا کښې نبی ﷺ ته جنت اودوزخ خودلی شوی وی.په دې کښې د څه اشکال خبره نشته.

---

۱) شرح العقيدة الطحاوية لإبن العز الحنفی (ص.۴۲۰)_
۲) د دلائلو دپاره اوګورئ شرح العقيدة الطحاوية (ص.۴۲۱ و ۴۲۴)_

**قوله** فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّكُمْ تُفْتَنُونَ فِي قُبُورِكُمْ: ماته د وحى په ذريعه دا اوخودلې شوه چه تاسو به په خپلو قبرونوکښې په امتحان کښې اچولې شئ.
ددې نه د قبر دسوال اوجواب اثبات کيږى.
**مسئله د عذاب قبر** د اهل سنت والجماعت متفقه عقيده ده.چه دمرگ نه پس اهل ايمان ته په قبرکښې لذت اوخوشحالى اونعمتونه ملاويږى.اوکافران منافقان او گناهگاران په عذاب کښې اخته کولې شى.(۱) چونکه په اهل قبورکښې دکافرانواوعصاة مومنين کثرت وى.د دې وجې تغليباً د ،،عذاب قبر،، عنوان اختيارکړې شو.(۲)
بيا دقبر اطلاق په کنده باندې هم کيږى.په کوم کښې چه د مړى جوثه دفن کولې شى.په آيت کريمه ﴿وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ﴾(۳) کښې هم دا معنى استعمال شوې ده.دغه شان د دې اطلاق د مرگ نه پس په برزخى مقام باندې هم کيږى.نوکه يو کس په حسى کنده کښې دفن نکړې شى.نودهغه دپاره هم راحت او نعمت اوثواب اوعقاب ثابت دې.
لکه چه داهل سنت والجماعت په نيزد مرگ نه پس حيات برزخى شروع کيږى.په دې کښې حيات کښې که چاته حسى کنده ملاو شى.نوهم په هغې کښې گنى بغيردکندې نه هم په دې باندې د ثواب اوعذاب ترتب کيږى.
ددې په مقابله کښې خوارج،بعضې معتزله مثلاً ضراربن عمرو، بشر المريسى،وغيره د عذاب قبر نه مطلقاً انکار کوى.(۴)
امام بخارى رحمه الله په کتاب الجنائز کښې په عذاب قبر باندې مستقل باب قائم کړې دې.(۵) انشاء الله دا بحث به په تفصيل سره هلته راشى.

**قوله** مِثْلَ أَوْقَرِيبَ لَا أَدْرِي أَيَّ ذَلِكَ قَالَتْ أَسْمَاءُ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ: دا امتحان به د مسيح دجال سره نزدې نزدې يا ددې مماثل وى.دلته يو روايت خوهم دا دې.يعنى «مثل» او«قريب» کښې هريوغيرمنون دې.(۶) په دې صورت کښې به د «مثل» او«قريب» دواړو اضافت «فتنة المسيح الدجال» ته وى.البته په دې صورت کښې به د مضاف اومضاف اليه په مينځ کښې د «من» اضافه وى.ددې وجې بعضې حضراتو د مضاف اومضاف اليه په مينځ کښې دحرف جار اظهارجائزگرځولې دې.(۷)

---

(۱)العقيدة الطحاوية وشرحها (۳۹۶.)_
(۲)شرح العقائد النسفية مع النبراس (۳۱۵)_
(۳)التوبة: ۸٤)_
(۴)فتح البارى(۲۳۳\۳) كتاب الجنائز باب ما جاء فى عذاب القبر)_
(۵)صحيح البخارى (۱۸۳\۱) كتاب الجنائز باب ما جاء فى عذاب القبر)_
(۶)فتح البارى(۱۸۳\۱)_
(۷)فتح البارى(۱۸۳\۱) وهمع الهوامع (۵۲\۲) مبحث الإضافة مسئلة لا يفصل بين المتضافيين)-

دويم روايت دا دې چه ((مثل)) غيرمنون دې او((قريباً)) منون دې (١) په دې صورت كښې به دمثل اضافت بغيردواسطه د ..من.. نه فتنة طرف ته وى يعنى ((مثل فتنة الدجال)) او((قريباً)) چونكه منون دې نوځكه به دې سره ..من)) وائى يعنى ((قريباً من فتنة الدجال))

((لاأدرى أى ذلك قالت أسماء)) دا جمله معترضه ده.شك داسماء رضي الله عنها نه دې بلكه داسماء رضي الله عنها نه روايت كونكې ته دې.ممكن ده چه فاطمې ته شك وى.اودا راجع ده اودا هم ممكن ده چه شك هشام ته وى ځكه چه د كتاب الجمعة په يو روايت كښې هم په دې حديث كښې وړاندې جمله ده. ((فأما المؤمن أوقال الموقن)) په دې كښې د هشام د شك تصريح ده.(٢) والله اعلم

**قوله المسيح الدجال**: مسيح،(بفتح الميم وكسرالسين المهملى وبعدها ياء ساكنى ثم حاء مهملى) دوه دى.يو مسيح الهداية اوبل مسح الضلالة.

مسيح الهداية خو حضرت عيسى عليه السلام اومسيح الضلالة مسيح الدجال ته وائى

بعضې حضرات فرمائى.چه دمسيح اطلاق په حضرت عيسى عليه السلام باندې كيږى اود مسيح (بكسرالميم وتشديد السين المهملى المكسورى كسكين)) اطلاق په دجال باندې كيږى

بعضې حضرات فرمائى.چه په دجال باندې د مسح ((بالحاء المهملة))اطلاق نه كيږى بلكه په ده ته مسيخ ((بالخاء المعجمة)) وئيلى شى.خوپه ظاهره دا تحريف دې.

بعضې حضرات فرمائى.چه په حضرت عيسى عليه السلام اودجال باندې د مسيح بالتخفيف اطلاق هم كيږى.اود مسيخ بالتشديد پشان د سكين اطلاق هم كيږى.

دجال ته دمسيح وئيلو وجه يا خودا ده.چه دې به ((ممسوح العين)) وى.يا ددې وجې هغه به زمكه مسح كوى.يعنى د يوخوا نه به بل طرف ته په منډه ځى اومنتقل كيږى.اويا ورته ددې وجې مسيح وائي.چه دې به ((ممسوح عن كل خيروبركة)) وى.يعنى د ده نه هرخيراوبركت پاك كړې شوې دې.(٣)

ده ته دجال ځكه وائى.چه دې به د ټولونه زيات فريبى او دروغژن وى. ځكه چه دا د ..دجل. نه وتلې دې.دكوم معنى چه فريب اود دروغو وينا ده.(٤)

حضرت عيسى عليه السلام ته چه مسيح وائى.نوپه دې كښې اختلاف دې.بعضې وائى چه دا د عبرانۍ ژبې لفظ دې په اصل كښې ..مشيحا..دې چه معنى ئې مبارك دې.بعضې حضراتو

---

(١)فتح البارى(١٨٣/١)_

(٢)صحيح بخارى (١٢٦) كتاب الجمعة باب من قال فى الخطبة بعد الثناء أما بعد: رقم ٩٢٢) خوچونكه په دې جمله كښې بلكه په اكثرو رواياتوكښې څه تصريح نشته ددې وجې په ظاهره داسې ښكاره.چه داشك دفاطمې ته پيداشوې وى.لكه چه د ((لاأدرى أى ذلك قال الأسماءرضى الله عنها)) نه ښكاره ده.

(٣) د تفصيل دپاره اوګورئ تاج العروس (٢٢٤/٢) مادة ..مسيح..)_

(٤)تاج العروس (٣١٨/٧) مادة رجل)_

د دې معنى صديق خودلې ده (١)

صاحب د قاموس علامه مجدالدين فيروز آبادى د «مسيح» د اشتقاق په باره كښې په خپل كتاب «شوارع الأسرار شرح مشارق الأنوار للصاغانى» كښې دغه شان په خپل شرح د بخارى كښې پنځوس اقوال ذكركړى دى اوپه خپل تفسير «بصائرذوى التمييزفى لطائف كتاب الله العزيز» كښې شپږ پنځوس اقوال ذكركړى دى (٢) «من أراد التفصيل فليرجع إلى هذه الكتب»

د نبى ﷺ دارشاد مطلب دا دې چه په قبركښې اهل قبر په لوئ ازمائش كښې اخته كړې شى دوى د دې ازمائش تشبيه د دجال د فتنې سره تشبيه وركړه.ځكه چه د دجال فتنه به لويه فتنه وى.الله تعالى به هغه ته په ډيرو څيزونوباندې قدرت وركړې وى يوكس به قتل كړى.بيا به ئې دوه ټكړې كړى.اوبيا به ئې د دوباره ژوندى كيدو حكم وركړى هغه به دوباره ژوندې شى.اوبيا به ورته په هغه باندې قدرت نه وى.دهغه په لاس به كله زمكه تكه شنه او زرخيره شى.اوكله به وچه كيږى.هغه به دخان سره دجنت او دوزخ شبيه په لاس كښې اخستې وى.اوګرځى به.د زمكې خزانې به دهغه سره ګرځى.د آسمان نه به دهغه په اشاره باندې باران وريږى.زمكه به دهغه په حكم باندې بوټې راوباسى.په اصل كښې به دا ټول هرڅه دالله تعالى په حكم سره وى.

دې به يوكس ته اووائى.كه زه ستا مورپلار راژوندى كړم.ته به په ما ايمان راوړې.هغه به هان اووائى.نودهغه په حكم به دوه شيطانان د هغه د مورپلارپه شكل كښې متمثل شى.اوښكاره شى.اودا به ورته اووائى.آو بچې دا ستا رب دې دې اومنه (٣)

دقبر فتنه يا آزمائش دا دې.چه كله مرده په قبر كښې كيخودې شى.نودئ ته به دوه فرښتې راشى.چه دهغوى نومونه نكيراومنكر دى.هغوى به ددې كس نه دده د رب.دين او محمد ﷺ په باره كښې تپوس كوى.صاحب دايمان به صحيح جوابونه وركړى اوځوك چه ايماندار نه وى.هغه به جواب نشى وركولې.دهغه وخت نه به په ده باندې د ثواب اونعمتونو اود عقاب اوعذاب سلسله شروع شى.(٤)

**قوله: يُقَالُ مَا عِلْمُكَ بِهَذَا الرَّجُلِ**:اوبه ونيلى شى تاته ددې سړى په باره كښې څه علم دې؟

---

(١) تاج العروس (١٢\٢٢٤و ٢٢٥)-

(٢) قاموس المحيط مع شرحه تاج العروس (١٢\٢٢٤و ٢٢٦)_

(٣) دجال په باره كښې احاديث تقريباً د حديثوپه ټولوكتابونوكښې موجود دى دلته چه كومې خبرې اوليكلې شوې ددې دپاره اوددې نه علاوه د نور تفصيل دپاره اوګورئ سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب فتنه الدجال وخروج عيسى بن مريم وخروج ياجوج وماجوج رقم (٤٠٧٧)_

(٤) عن أبى هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ إذا قبر الميت. أو قال أحدكم أتاه ملكان أسودان أزرقان يقال أحدهما المنكر وللآخر النكير.جامع الترمذى كتاب الجنائز باب ما جاء فى عذاب القبر رقم ١٠٧١) وانظر السنن لابن داود كتاب السنة باب المسئلة فى القبروعذاب القبر رقم ٤٧٥٣) من حديث البراء بن عازب ﷺ

دلته به د رسول الله د الفاظو په ځائې د «هذا الرجل» تعبيراختيارکړې شي.ددې نه ابتلاء اوامتحان مقصود دې.ځکه چه د رسول اللهﷺ ونيلو صورت کښې خوبه د جواب اوحجت تلقين وى.(۱) دلته الله دې نکړى سپکوالې مقصود نه دې.

**قوله: بهذا الرجل**: هذا محسوس طرف ته داشارې کولودپاره دې.حالانکه دلته څوك محسوس نشته.نوددې مشار اليه به څه وى.ددې باره کښې د عالمانو ﷭ مختلف اقوال دى.

① بعضې حضرات فرمائى.چه دلته د ،،هذا،، اشاره هغه څيزطرفته ده.کوم چه په ذهن کښې معهوداوپروت دې.لکه چه معنوى طور چه کوم څيز حاضر وې.هغه د مبالغې په طور محسوس اومبصراوګرځولې شو.اوهغې طرف ته اشاره اوکړې شوه.(۲)

② بعضې عالمان ﷭ فرمائى.چه د مړى او رسول اللهﷺ په مينځ کښې به حجابات لرې کړې شى.د نبىﷺ مشاهده به ورته کولې شى.اودا به ترې تپوس کولې شى.چه ددې سړى په حق کښې ته څه وائې.(۳)

اوپه دې رفع حجاب کښې څه استبعاد نشته.نبىﷺ د معراج د شپې نه پس چه کله نبىﷺ اهل مکې ته د دې واقعه خبر ورکړو.نوکافرانوترې د امتحان په طور د مسجد اقصى په باره کښې تپوس وکړو.الله تعالى ورته حجات لرې کړل.او نبىﷺ ورته اوخودل. چه د مسجد اقصى اوصاف دا دى.(۴)

اګرچه دا احتمال صحيح دې.ليکن د هيڅ روايت نه دعدم ثبوت په وجه حافظ ابن حجر او علامه قسطلانى رحمهما الله فرمائى.چه داسې خبرې په احتمال سره نه ثابتيږى.بيا خاص کردار چه دا مقام،مقام دامتحان هم دې.دلته که رفع د حجاباتواوکړې شى.اود نبىﷺ مشاهده ورته اوکړې شى.نوبيا به امتحان څه پاتې شى؟ (۵)

③ بعضې حضراتوفرمائيلى دى.چه هلته به ورته د نبىﷺ شبيه اوخودلې شى. د نبىﷺ مثال او صورت به ورته مخامخ کړې شى.اوتپوس به ترې اوکړې شى. دا به محسوس اومبصروى.(۶)

④ قاضى عياض﷫ فرمائى.چه دا احتمال هم شته.چه د نبى نوم واخستې شى.اوتپوس ترې اوکړى لکه څنګه چه دا احتمال هم شته.چه د نبىﷺ مثال اوصورت ورته مخامخ کړې شى.(۷)

---

(۱)شرح الكرمانى(۶۹\۲)-

(۲)مرقاة المفاتيح (۱۹۹\۱) باب إثبات عذاب القبر الفصل الأول)_

(۳)شرح القسطلانى (۴۶۴\۲) كتاب الجنائزباب ما جاء فى عذاب القبر)_

(۴)السيرة الحلبية (۳۷۹\۱) باب ذكرالإسراء والمعراج وفرض الصلوات الخمس)_

(۵)ارشادالسارى للقسطلانى( ۴۶۴\۲) كتاب الجنائز باب ماجاء فى عذاب القبر ومرقاة المفاتيح (۱۹۹\۱) باب إثبات عذاب القبر الفصل الأول)_

(۶)الكنزالمتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى (۳۱۵\۲)_

(۷)إكمال المعلم للأبى (۵۸\۳)_

⑤ دا هم كيدي شي چه په دي كښي يوه خبره هم نه وي.بلكه د نبي ﷺ اوصاف ورته بيان كړي شي.ددي تائيد ددي روايت نه هم كيږي.چه الفاظ ئي دا دي.«ماهذا الرجل الذى بعث فيكم» ([1]) ښكاره ده.چه داوصاف بيانولونه پس معقول په منزله دمحسوس گرځي.نوځكه دلته د اشاري په استعمالولوكښي څه حرج نشته.

حاصل دا چه بديهي اودعلم ضروري په طوربه مړي ته دا علم اوشي.چه تپوس دمحمد ﷺ په باره كښي كولي شي.

**قوله**: فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ أَوِالْمُوقِنُ لَا أَدْرِي بِأَيِّهِمَا قَالَتْ أَسْمَاءُ فَيَقُولُ هُوَ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ جَاءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى فَأَجَبْنَا وَاتَّبَعْنَا هُوَ مُحَمَّدٌ ثَلَاثًا: مومن يا يقين كونكي كس به اوواني.حضرت اسماء ﷺ فرماني. چه ماته معلومه نه ده.خوبه اوواني.چه دا محمد دالله تعالى رسول دي. دوى مونږ ته په معجزاتواوآياتونوباندي راغلي وو.مونږ هغه قبول كړل او د دوى تابعداري مواوكړه.دا محمد ﷺ دي.داسې به دري خله اوواني.

د«هومحمد» جواب نه معلوميږي.چه فرشتي سوال كوي.نو نوم ورته نه اخلي.گني د «هومحمد»ونيلو به څه ضرورت وي؟

**تنبيه**: دلته په روايت كښي اختصاردي.چه صرف يو سوال ذكردي.گني په رواياتوكښي دري سوالونه راغلي دي.«مادينك؟» او «من ربك» راوى د اختصار په وجه حذف كړى دى. ([2])

**قوله**: فَيُقَالُ نَمْ صَالِحًا: نواوبه ونيلى شي.چه په آرام او اطمينان سره اوده شه.

«صالحاً»د صالح نه دي.اوپه دي كښي دفائدي مضمون ملحوظ وي.يوخيزپه هغه وخت كښي صالح وي.چه په هغي كښي فائده وي.دلته دصالحاً مطلب دا دي.چه ته په آرام اواطمينان سره اوده شه.الله تعالى به في الجمله تاته فائده اورسوي.اگرچه پوره فائده به جنت ته د تلو نه پس وي.خودهغي سلسله به د اوس نه شروع كيږي.

دحضرت ابوسعيدخدرى ﷺ په روايت كښي د«ثم دم نومة العروس فيكون فى أحلى نومة نامها أحد حتى يبعث» الفاظ راغلي دي.([3]) اودحضرت ابوهريره ﷺ په حديث كښي دي.«ثم دم نومة العروس الذى لايوقظه إلا أحب أهله إليه، حتى يبعثه الله من مضجعه ذلك» ([4])

**قوله**: قَدْ عَلِمْنَا إِنْ كُنْتَ لَمُوقِنًا بِهِ: مونږ ته خو معلومه وه.چه ته په دي خبره يقين ساتي.

---

[1] السنن لأبى داود كتاب السنة باب المسألة فى القبر وعذاب القبررقم ٤٧٥٣)۔
[2] سنن أبى داود كتاب السنة باب المسئلة فى القبروعذاب القبررقم ٤٧٥٣)۔
[3] رواه سعيد بن منصوركذا فى فتح البارى (٢٣٨\١٣) كتاب الجنائزباب ماجاء فى عذاب القبر)۔
[4] جامع الترمذى كتاب الجنائز باب ماجاء فى عذاب القبر رقم ١٠٧١)۔

دا علم دالله تعالى دطرفه نه ورکړې شوې وى.اودا هم کيدې شى.چه دا فرشتې دهرمومن حالات وينى اوګورى اوپه دې طريقه دوى ته دا علم حاصل شوې وى.اوکيدې شى.چه دده مخ نه دا اندازه کيدې شى دايمان نور دا ښانى.چه دا کس په نبى ﷺ باندې ايمان راوړونکې دې

**قوله وَأَمَّا الْمُنَافِقُ أَوِ الْمُرْتَابُ لَا أَدْرِي أَيَّ ذَلِكَ قَالَتْ أَسْمَاءُ فَيَقُولُ لَا أَدْرِي سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ شَيْئًا فَقُلْتُهُ:** باقي شو منافق مرتاب( شك کونکې) معلومه نه ده چه اسماء رضی الله عنها څه فرمائيلى دى.نوهغه به اووائى.ماته معلومه نه ده البته ما دخلقو نه څه وينا اوريدلې وه.ما به هم هغه وينا کوله.

منافق هغه دې چه دهغه په زړه ايمان نه وى.په ظاهره ايماندار وى. او مرتاب هغه دې چه هغه په د څو وجوهاتو دوجې اسلام خوښوى.خوڅه وجوهات ددې نه منع کونکى هم موجود وى.[1] کله چه دمنافق يا مرتاب نه تپوس اوکړې شى.چه داخوك دې.هغه به او وائى ماته معلومه نه ده.چه دا څوك دې.البته دا چه خلقو يوه خبره کوله. او ماهم دهغوى په تابعدارى کښې هغه خبره کوله.يعنى لکه چه هغه به اووائى. چه زما ايمان د جذرقلب نه نه وو.دخلقو په ليدلو باندې ما هم دخپل غرض او مفادو په خاطر محمد رسول الله ونيلې وو.

**ايا دقبر سوال ددې امت سره مخصوص دې؟** ددې حديث نه معلومه شوه.چه په قبرکښې به تپوس کولې شى.آيا دا د دې امت سره خاص دې.اوکه عام دې؟

حکيم ترمذى رحمه الله د نوادرالاصول د مصنف رحمه الله رائې دا ده.چه دقبر سوال ددې امت سره خاص دې.دهغوى قول دې چه د نبى ﷺ نه وړاندې څومره انبياء عليهم السلام مبعوث شوى دى.هغوى تپولوامت دين حق طرف ته رابلل.که هغوى به قبول کړو.نوديره ښه ګنى دالله تعالى عذاب به نافرمان ختم کړل.کله چه نبى ﷺ مبعوث شو.نوالله تعالى د دنيا عذاب پورته کړو.البته د عذاب قبر سلسله ئې قائمه کړه.نوکله چه سړې دعالم برزخ ته تيريږى دده نه به دا سوال کيږى مومن به کاميابيږى.اوچه څوك مومن نه وى.هغه به په عذاب کښې اخته کيږى.([2])

دڅه احاديثودظاهرنه هم ددې رائې تائيد کيږى په صحيح مسلم کښې د حضرت زيدبن ثابت رضی الله عنه مرفوع روايت دې.((إن هذه الأمة تبتلى في قبورها))([3])

دغه شان په مسنداحمد کښې دحضرت عائشې رضی الله عنها مرفوع حديث دې.

((وأما فتنة القبرفبى تفتنون وعنى تسئلون))([4])

---

[1])إيضاح البخارى (۵۱۹۹)_

[2])كتاب الروح لابن القيم (ص.۱۳۷) المسئلة الثانية عشرة : وهو أن سوال منكر ونكير هل هو مختص بهذه الأمة أن يكون لها ولغيرها (طبعة مكتبة نصيربجوار إدارة الأزهرالشريف تحقيق وتعليق محمد انيس عبادة ومحمد فهمى السرجانى)_

[3])صحيح مسلم كتاب الجنة وصفتها ودهلها رقم ۷۲۱۳)_

[4])مسند احمد (۱۴۰۱۶)_

ابن عبدالبر رحمه الله په دې کښې توقف اختيار کړې دې. (۱)
اوابن القيم رحمه الله فرمائي چه دا سوال ددې امت پورې خاص نه دې بلکه د مخکنو امتونو نه به هم دا سوال کيږي. (۲)
ترکومې پورې چه دهغه احاديثو تعلق دې.دکوم نه چه په ظاهره دا معلوميږي.چه دا سوال به ددې امت نه کيږي.نويه دې کښې د نبي ﷺ د قبر کيفيت دامتحان په طوربيان شوې دې دتيرو شوو امتونو نه د سوال نفي په کښې نشته. (۳)
**ايا دقبر تپوس به دهرکس نه کيږي که صرف دمومن نه؟** بيا په دې کښې اختلاف دې.چه آيا دا سوال به دهرمومن اوکافر نه کيږي.اوکه صرف دهغه خلقونه به کيږي.کوم چه د اسلام دعويدار وي.برابره ده که په حق وي اوکه په باطله.دعبيدبن عمير رحمه الله دا ډيرلوې تابعي دې. ددوی نه امام عبدالرزاق رحمه الله نقل کړې دی.چه دوی فرمائي. **((إنما يفتن رجلان مومن ومنافق وأما الكافر فلا يسأل عن محمد ولا يعرفه))** (۴)
حافظ ابن عبدالبراوحافظ سيوطي رحمهماالله هم دا رائې اختيار کړې ده. (۵)
حالانکه علامه ابن القيم.حکيم ترمذی.امام حافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه دا تپوس به دمومن اوکافرهريوکس نه کيږي. (۶)
ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي.چه آثاراو روايات په دې باندې دال دی.چه په قبرکښې به د سوال ازمانش صرف دمومن دپاره وی.يادهغه منافق دپاره دچا شمارچه په اهل قبله کښې کيږي.اوترکومې پورې چه دکافرجاحد تعلق دې.نو دهغه نه به د رب .دين اونبی په باره کښې څه تپوس نه کيږي.صرف داهل اسلام اهل قبله نه به سوال کيږي.بيا به اهل ايمان ته دالله تعالي د طرف نه تثبيت نصيب شي.اواهل باطل به ګوډ شي. (۷)
ابن القيم رحمه الله فرمائي.چه دا سوال به دهرکس نه کيږي.که مومن وی اوکه کافر وی.

---

(۱) كتاب الروح (ص.۱۳۷)_
(۲) كتاب الروح (ص.۱۳۸)_
(۳) كتاب الروح (ص.۱۳۸و ۱۳۹) وفتح البارى (۱۳۰\۲٤۰) كتاب الجنائزباب ماجاء فى عذاب القبر)_
(۴) مصنف عبدالرزاق (۱۳۰\۵۹۰) كتاب الجنائز باب فتنة القبر).
تنبيه:وقع فى المصنف ههنا عبدالله بن عمربدل عبيدالله بن عمير.والثانى هوالصواب.والأول تصحيف وانظر التمهيد (۲۲\۲۵۲) وفتح البارى (۱۳\۲۳۹) كتاب الجنائز باب ماجاء فى عذاب القبر وانظرأيضاً طلوع الثريا باظهارماكان خفياً المطبوع فى ضمن الحاوى للفتاوى (۲\۱۷۸)_
(۵) التمهيد(۲۲\۲۵۲و ۲۵٤) وطلوع الثريا بإظهارماكان خفياً المطبوع فى ضمن الحاوى للفتاوى (۲\۱۷۸) وردالمختار(۱\۶۲۹) كتاب الجنائزباب مطلب فى سوال ملكين هل هو عام لكل أحد أولا؟)_
(۶) كتاب الروح (ص.۱۳۲) المسئلة الحادية عشرة وفتح البارى(۱۳\۲۳۹) كتاب الجنائز باب ماجاء فى عذاب القبر)
(۷) التمهيد(۲۲\۲۵۲)_

ددوی اولنی دلیل دا دی چه دالله تعالی ارشاد دی. ﴿يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ وَيُضِلُّ اللهُ الظّٰلِمِينَ وَيَفْعَلُ اللهُ مَا يَشَاءُ﴾ (۱)

دا آیت کریمه د عذاب قبر په باره کښې نازل شوې وو. لکه څنګه چه په بخاری شریف کښې ددې تصریح ده (۲)

ددې آیت نه معلومه شوه چه الله تعالی به مومنان ثابت قدم کړی . اوظالمان به ګمراه کړی. ظالم دخپل عموم په وجه کافرانوته هم شامل دی.

دویم دلیل په صحیح بخاری کښې دحضرت انس رضی الله عنه روایت دی. په هغې کښې دی. ((وأما المنافق والكافر فيقال له ما كنت تقول في هذا الرجل؟...)) (۳)

دریم دلیل دحضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه روایت دی. دوی فرمائی. ((شهدت مع رسول الله ﷺ جنازة فقال رسول الله ﷺ يا أيها الناس إن هذه الأمة تبتلى في قبورها فإذا الإنسان دفن فتفرق عنه أصحابه جاءه ملك في يده مطراق فأقعده قال ما تقول في هذا الرجل ؟ فإن كان مومناً قال أشهد أن لا إله إلا الله وأن محمداً عبده ورسوله .. وإن كان كافراً أومنافقاً يقول له ما تقول في هذا الرجل ..)) (٤)

څلورم دلیل دحضرت براء بن عازب رضی الله عنه اوږد حدیث دی. په هغې کښې دی ((وإن الكافر.. فذكر موته قال وتعاد روحه في جسده ويأتيه ملكان فيجلسانه فيقولان له من ربك؟)) (٥)

**ایا په قبرکښې به دماشومانونه تپوس کیږی؟** په دې مسئله کښې هم اختلاف دی. چه آیا په قبرکښې به د ماشومانو نه تپوس کیږی که نه؟

بعضې حضرات فرمائی. چه دماشومانونه به هم تپوس کیږی. څکه چه په هغوی باندې دجنازې مونځ کیږی. دهغوی دپاره دعا کولې شی. دالله تعالی نه دا سوال کولې شی. چه دوی دعذاب قبراوفتنې دقبر نه محفوظ کړه. (٦)

په موطاامام مالک کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه نقل دی. چه دوی په یوماشوم باندې دجنازې مونځ اوکړو. اوبیا ئې دعا اوکړه. ((اللهم أعذه من عذاب القبر)) (۷)

---

۱)ابراهیم:۲۷)_

۲)صحیح البخاری (۱۸۳\۱) کتاب الجنائز باب ماجاء فی عذاب القبر رقم ۱۳۶۹) و(۶۸۲\۲) کتاب التفسیرسورة ابراهیم باب یثبت الله الذین آمنوا بالقول الثابت .. ) رقم ٤۶۹۹)_

۳)صحیح البخاری (۱۸٤\۱) کتب الجنائزباب ماجاء فی عذاب القبر رقم ۱۳۷٤۰)_

٤)مسندأحمد (۱۳\۳و ٤) قال ابن القیم الذی رواه ابن ماجه والإمام احمد (کتاب الروح ۱۳۳) هکذا قال وقدتتبعت سنن أی ابن ماجه فلم أجد الحدیث عن أبی سعیدالخدری رضی الله عنه عنده والله أعلم)_

۵)السنن لأبی داود کتاب السنة باب المسئلة فی القبر رقم ٤۷۵۳)_

۶)کتاب الروح لابن القیم (ص.۱۳۹) المسئلة الثالثة عشرة)_

۷)موطاء إمام مالک کتاب الجنائزباب ما یقول المصلی علی الجنازة رقم ۱۸)_

دغه شان دحضرت عائشي رضي الله عنها په باره كښي منقول دى چه ددوى په خواه كښي د يوماشوم جنازه تيره شوه نوهغه په ژړا شوه كله چه دهغوى نه تپوس اوشو نو وي فرمائيل ((هذا الصبي بكيت له شفقة عليه من ضمة القبر))[1]

البته ددي رائي د قائلينووينا ده چه الله تعالى به ددوى عقل مكمل كړى چه په هغې سره به دوى په معامله پوهه شي.اودوى ته به دجواب الهام اوكړې شي.[2]

نورحضرات فرمائي چه دهغه ماشوم نه به څه تپوس نه كيږي.څوك چه مميز نه وى.البته چه كوم ماشوم مميز وى.اورسول اومرسل پيژني.نودهغه نه به تپوس كيږي چه په تاسوكښي راليږلې شوي دا كس څوك دي؟[3]

دا حضرات فرمائي.چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث كښي چه د كوم عذاب ذكردي نوددې نه عقوبت اوسزا مراد نه ده.بلكه بغيردعقوبت اوسزا نه تكليف محسوسول دى لكه څنګه چه په حديث كښي راغلى دى.((إن الميت ليعذب ببكاء أهله عليه))[4] دلته دا مراد نه دى چه دژوندي كس په ګناه به ده ته عذاب ملاويږي.ځكه چه ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾[5] يومنلي شوي قانون دې.البته ددې بكاء اونوحه په وجه به مړي تكليف محسوسوى دغه شان قبرښكاره خبره ده.چه د هموم اوآرلامُ اوارمانونومركز دې.كيدې شى چه په بچى باندې ددې اثروى.ددې وجې ددې نه د بچ كيدو دعا كولې شى.ددې نه ئې په ((أعذه من عذاب القبر)) سره تعبيراوكړو.لكه څنګه چه د نبى ﷺ ارشاد دې.((السفر قطعة من السقر))[6] ښكاره ده چه په دې حديث كښې د عذاب نه عقوبت مراد نه دې.بلكه دسفر تكليفونه او مشقتونه مراد دى.لكه چه په عذاب كښي د عقوبت په مقابله كښي عموم دې.[7]

بعضې حضراتو په دې باره كښي توقف اختياركړې دې.علامه دسوقى فرمائي ((وهو الحق لأنه لم يرد نص بشيء))[8]

صاحب ددرمختارفرمائي.((والأصح أن الأنبياء لايسئلون ولاأطفال المؤمنين وتوقف الإمام في أطفال المشركين))[9]

---

[1])كتاب الروح (۱۳۹)_
[2])المصدر السابق)_
[3])المصدر السابق)_
[4])صحيح البخارى (۱۷۱\۱) كتاب الجنائزباب قول النبى ﷺ يعذب الميت ببعض بكاء أهله عليه إذا كان النوح من سنته رقم ۱۲۸۶)_
[5])الفاطر:۱۸)_
[6])صحيح بخارى (۲٤۲\۱) كتاب العمرة (الحج) باب السفرقطعة من السقر رقم ۱۸۰٤)_
[7])كتاب الروح لابن القيم (ص.۱٤۰و ۱٤۱)_
[8])أوجز المسالك (۲۲۹\٤) كتاب الجنائز.باب مايقول المصلى على الجنازة)_
[9])الدرالمختارمع رد المحتار(۶۲۹\۱) كتاب الجنائزمطلب فى سوال الملكين هل هو عام لكل أحد أولا؟)_

علامه شامي رحمه الله فرمائي چه د درمختار دمصنف رحمه الله دقول «ومن لا يسأل ينبغي أن لا يلقن» نه په اشارې سره دا معلوميږي چه په قبرکښې به دتولونه تپوس نه کيږي. البته په «السراج الوهاج» کښې ئې ددې په خلاف ونيلي دي. په هغې کښې دي «كل ذى روح من بنى آدم يسئل في القبر بإجماع أهل السنة لكن يلقن الرضيع الملك وقيل لا، بل يلهمه الله تعالى كما ألهم عيسى عليه السلام في المهد»[1]

علامه شامي رحمه الله فرمائي چه داجماع خبره محل دنظردې. خکه چه ابن عبدالبر رحمه الله خو فرمائي. چه تپوس به صرف دمومن اومنافق نه کيږي. د کافرنه به نه کيږي.[2]

**فائده** علامه شامي رحمه الله دعلامه سيوطي رحمه الله نه نقل کوی چه د لاندينی کسانونه به په قبرکښې تپوس نه کيږي. «الشهيد والمرابط والمطعون والميت من الطاعون بغيره إذا كان صابراً محتسباً والصديق والأطفال والميت يوم الجمعة أوليلتها والقارئ كل ليلة تبارك : الملك وبعضهم ضم إليها السجدة والقارئ في مرض موته قل هوالله أحد»

بعضې حضراتو پيغمبران عليهم السلام هم په دې کښې شمارکړي دی. خکه چه ددوی درجه بنکاره خبره ده. چه د صديقينونه پورته ده.[3] والله اعلم.

**د احاديث باب ترجمة الباب سره انطباق** په دې باب کښې لکه خنگه چه تاسو اوکتل. درې احاديث ذکرکړی دی. او باب ئې قائم کړې دې. «باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس»

په دې کښې په اولنی حديث کښې په «فأومأ بيده قال ولا حرج» اوپه دويم حديث کښې دی «فقال هكذا بيده فحرفها» دا دواړه حديثونه مرفوع دی. اوپه دې کښې صراحةً د اشارة باليد ثبوت دې.

په دريم حديث کښې دحضرت عائشې رضي الله عنها «إشارة بالرأس» ذکرده. خوپه دې باندې اشکال کيدې شی. چه د مصنف رحمه الله مدعا ترې نه ثابتيږي. خکه چه دا خونه د نبی صلى الله عليه وسلم فعل دې. اونه په دې باندې تقريرثابت دې.

ددې جواب دا دې. چه حضرت عائشې رضي الله عنها په نبی صلى الله عليه وسلم پسې روسته دمانځه په حالت کښې اشاره کړې وه. اونبی صلى الله عليه وسلم چه به خنگه وړاندې ليدل کول دغه شان به ئې روسته هم ليدل کول. نود حضرت عائشې رضي الله عنها په فعل باندې د نبی صلى الله عليه وسلم تقريرثابت شو.[4]

دا هم ډيره ممکن ده. چه حضرت عائشې رضي الله عنها توله قصه نبی صلى الله عليه وسلم ته بيان کړی وی. نوپه دې صورت کښې څه اشکال نه پاتې کيږي. والله اعلم

---

[1] ردالمحتار (۶۲۹/۱)_

[2] المصدر السابق)_

[3] ردالمحتار (۶۲۹/۱) كتاب الجنائز مطلب ثمانية لايسئلون فى قبورهم)_

[4] الكنز المتوارى (۳۱۳/۲)_

# ٢٥=باب تحريض النبي صلى الله عليه وسلم وفد عبد القيس على أن يحفظوا الإيمان

والعلم ويخبروا من وراءهم وقال مالك بن الحويرث قال لنا النبي صلى الله عليه وسلم ارجعوا إلى أهليكم فعلموهم

**دباب سابق سره ربط** ددې باب دمخکنی باب سره دا مناسبت دې چه په باب سابق کښې د سوال اوجواب په ذریعه دعلم په خپله زده کول اوبل ته خودل اوښو ظاهره ده چه دا سوال اوجواب کوم چه په حقیقت کښې تعلیم اوتعلم دې.دتحریض اوترغیب نه خالی نه دې.([1])

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت شیخ الهندؒ فرمائی.چه ددې ترجمې نه هم دتعلیم اوتعلم تاکید مقصود دې.اوتعلیم اوتبلیغ دحفظ نه بغیرممکن نه دی.ددې وجې نې دحفظ هم تاکید اوکړو.اومعلومه شوه.چه اهل علم لره پکاردی.چه متعلم ته په حفظ اوتبلیغ کښې دتاکید کولونه کوتاهی نه کوی.والله اعلم.([2])

بعضې حضرات فرمائی.چه «بلغوا عنی ولوآية» نه چه کوم ایهام وو چه صرف دقرآنی آیتونوتبلیغ دې کولې شی.دهغې د رد طرف ته اشاره ده.چه په تعلیم اوتبلیغ کښې تعمیه دې.که هغه قرآنی آیت وی.اوکه حدیث نبوی وی.

خوحضرت شیخ الحدیثؒ فرمائی.چه دا غرض صحیح نه معلومیږی.خکه چه ددې دپاره نې وړاندې «باب لیبلغ العلم الشاهد الغائب» مستقل باب قائم کړې دې

حضرت شیخ الحدیثؒ فرمائی.چه ددې ترجمې نه زما په نیز غرض دا دې.چه دتبلیغ دپاره دا ضروری نه دی.چه مبلغ دې کامل عالم وی.بلکه که یوکس پوره عالم نه وی نودهغه دپاره هم تبلیغ کول جائزدی.خکه چه مالك بن حویرث اووفد عبدالقیس د نبی ﷺ سره څو ورځې پاتې شوی وو.په دغه ورخوکښې چه دغه خلق څه زده کړی وو نبی ﷺ ورته دهغې د تعلیم اوتبلیغ حکم کړې وو.وفد عبدالقیس ته نې دلته صرف د اته خبرود تبلیغ حکم کړې دې.([3]) والله اعلم.

**قوله** وقال مالك بن الحويرث قال لنا النبي صلى الله عليه وسلم ارجعوا إلى أهليكم فعلموهم: حضرت مالك بن حویرثؓ فرمائی چه مونږ ته نبی ﷺ حکم اوکړو.چه دخپل کورخلقوته واپس لاړشئ اوهغوی ته علم اوښائې

**حضرت مالك بن الحويرثؓ:** دا دنبی ﷺ صحابی حضرت مالك بن الحويرث بن

---

[1])عمدة القاری(١٢\٩٩)_

[2])الأبواب والتراجم (٥١\٥٢)_

[3])الکنزالمتواری (١٢\٣١٦) وتقریربخاری شریف (١١\١٨٧)_

حشيش بن عوف بن جندع ليثى رضي الله عنه دې ابوسليمان ئې كنيت دې ددوى دنسب نامې په بيانولوكښې بعضې حضرات اختلاف كړې دې (۱)
دوى د نبى ﷺ په خدمت كښې دخپلوهمزولو څو ځوانانوسره حاضرشوې وو اوتقريبا شل ورځې ايسارشوې وو ددې نه پس نبى ﷺ دوى ته تعليم وركړو اوخپل وطن ته ئې واپس اوليږل (۲)
دوى په بصره كښې اوسيدل (۳)
دوى دنبى ﷺ نه روايت كوى او ددوى نه روايت كونكى ،سوار جرمى. نصربن عاصم ليثى. ابوعطيه اوابوقلابه جرمى رحمهم الله دى (۴)
ددوى نه اصول سته مصنفينو رحمهم الله احاديث نقل كړى دى (۵)
ددوى نه ټول پنځلس احاديث مروى دى په دې كښې دوه متفق عليه دى. او په يوحديث كښې امام بخارى اويه يوكښې امام مسلم متفرد دى (۶)
ابن عبدالبر رحمه الله ليكلى دى: «سكن البصرة ومات بها سنة أربع وتسعين» (۷)
خوحافظ ذهبى رحمه الله په «تجريد أسماء الصحابة رضي الله عنهم» كښې «سنة أربع وسبعين» فرمائيلى دى (۸)
دغه شان ابن سكن رحمه الله هم په دې باندې جزم كړې دې (۹)
وجه دا ده چه په بصره كښې په اتفاق سره د ټولونه په آخركښې وفات شوې صحابى حضرت انس رضي الله عنه وو او دهغوى وفات په ۹۳ھ كښې شوې دې نوپه بصره كښې كه دحضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه وفات په ۹۴ھ كښې شوې وو. نوآخرى صحابى رضي الله عنه به حضرت مالك بن الحويرث وو حضرت انس بن مالك رضي الله عنه به نه وو ددې وجې «أربع وتسعين» د «اربع وسبعين» سره تصحيف دې (۱۰) والله اعلم. «رضى الله عنه وأرضاه»

**د ذكرشوى تعليق تخريج** دحضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه دا تعليق دهغوى د يواوږد حديث يوه ټكړه ده دا حديث امام بخارى رحمه الله په خپل صحيح كښې تقريباً نهه ځله مفصل او

---

(۱) تهذيب الكمال (۱۳۲\۲۷ و ۱۳۳) وتهذيب التهذيب (۱۳\۱۰ و ۱۴)_
(۲) الإصابة (۳۴۲\۳)_
(۳) الإستيعاب بهامش الإصابة (۳۷۴\۳)_
(۴) دشيوخ اوتلامذه دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (۱۳۳\۲۷)_
(۵) المصدر السابق)_
(۶) تهذيب الأسماء واللغات (۸۰\۱۲) وخلاصة الخزرجى (۳۶۷)_
(۷) الإستيعاب بهامش الإصابة (۳۷۴\۳)_
(۸) تهذيب التهذيب (۱۴\۱۰) وحاشية سبط ابن العجمى على الكاشف (۲۳۴\۲) رقم ۵۲۴۶)_
(۹) الإصابة (۳۴۳\۳) وتهذيب التهذيب (۱۴\۱۰)_
(۱۰) تهذيب التهذيب (۱۴\۱۰)_

مختصراً ذكركړي دي (١) دلته چه كوم الفاظ ذكردي.هغه بعينه په ((كتاب الأدب)) كښې ((باب رحمة الناس والبهائم)) كښې موجود دى.(٢)

**د ذكرشوى تعليق مقصد** د ذكرشوى تعليق نه دامام بخارى رحمه الله مقصد د ترجمة الباب اثبات دې چه په دې حديث كښې نبى ﷺ حضرت مالك بن الحويرث رضي الله عنه اودهغه ملگرى خپلوكورونوته واپس اوليږل.اوځه چه ئې دلته كتلى وو.اوزده كړى وو. دا حكم ئې ورته اوكړو چه دا دخپلې علاقې خلقو ته اوښائي.

[۸۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي جَمْرَةَ قَالَ كُنْتُ أُتَرْجِمُ بَيْنَ ابْنِ عَبَّاسٍ (٣) وَبَيْنَ النَّاسِ فَقَالَ إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنِ الْوَفْدُ أَوْمَنِ الْقَوْمُ قَالُوا رَبِيعَةُ فَقَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ أَوْبِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى قَالُوا إِنَّا نَأْتِيكَ مِنْ شُقَّةٍ بَعِيدَةٍ وَبَيْنَنَا وَبَيْنَكَ هَذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ وَلَا نَسْتَطِيعُ أَنْ نَأْتِيَكَ إِلَّا فِي شَهْرٍ حَرَامٍ فَمُرْنَا بِأَمْرٍ نُخْبِرُ بِهِ مَنْ وَرَاءَنَا نَدْخُلُ بِهِ الْجَنَّةَ فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ أَمَرَهُمْ بِالْإِيمَانِ بِاللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَحْدَهُ قَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَا الْإِيمَانُ بِاللَّهِ وَحْدَهُ قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَإِقَامُ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ وَصَوْمُ رَمَضَانَ وَتُعْطُوا الْخُمُسَ مِنَ الْمَغْنَمِ وَنَهَاهُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ قَالَ شُعْبَةُ رُبَّمَا قَالَ النَّقِيرِ وَرُبَّمَا قَالَ الْمُقَيَّرِ قَالَ احْفَظُوهُ وَأَخْبِرُوهُ مَنْ وَرَاءَكُمْ [رقم: ٥٣]

## رجال الحديث

① محمدبن بشار: دا مشهورامام حديث محمدبن بشاربن عثمان بن عبدى بصرى رحمه الله دې.ددوى كنيت ابوبكراولقب ،،بندار،، دې.ددوى حالات مخكى په كتاب العلم كښې د ((باب ماكان النبى ﷺ يتخولهم بالموعظة والعلم كى لاينفروا)) لاندې تيرشوى دى.

② غندر: دا هم د حديثو مشهورامام ابوعبدالله محمدبن جعفرهذلى رحمه الله دې.چه د ..غندر.. په لقب سره مشهوردې.د دوى حالات په كتاب الايمان كښې د ((باب ظلم دون

---

(١) صحيح البخارى (٨٧/١١) كتاب الأذان باب من قال ليؤذن فى السفر موذن واحد رقم ٦٢٨) و(٨٨/١١) باب الأذان للمسافرإذا كانوا جماعة .. رقم ٦ ٣٠) و(٦٢١) و(٩٠/١١) باب إثنان فما فوقها جماعة رقم ٦٥٨) و(٩٥/١١) باب إذا استوو فى القراءة فليؤمهم أكبرهم رقم ٦٨٥. و(١١٣/١١) باب للمكث بين السجدتين رقم ٨١٩) و(٣٩٩/١١) كتاب الجهاد والسير.باب سفرالإثنين رقم ٢٨٤٨ و(٨٨/١٢) كتاب الأدب باب رحمة للناس والبهائم رقم ٦٠٠٨) وفاتحة كتب أخبارالآحاد باب ماجاء فى إجازة خبرالواحد الصدوق رقم ٧٢٤٦)

(٢) انظر التعليقة السابقة)_

(٣) ددې حديث تخريج په كشف البارى (١٢ ٦٩٦) ((كتاب الإيمان باب أداء الخمس من الإيمان)) لاندې تيرشوې دې)_

قلم» لاندې تیرشوی دی (۱)

③ شعبه: دا امير المومنين فى الحديث شعب بن الحجاج بن الورد العتكى بصرى دې.د دوی حالات په باب ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،، لاندې ذکرشوي دي(۲)

④ ابوجمره: دا ابو جمره نصر بن عمران ضُبعى بصرې دې.د دوی حالات په کتاب الايمان کښې د«باب أداء الخمس من الإيمان» لاندې تیرشوی دی.(۳)

⑤ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما: ددوی حالات په کتاب الايمان کښې د«باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې تیرشوی دی.(۴)

**قوله**: قَالُوا إِنَّا نَأْتِيكَ مِنْ شُقَّةٍ بَعِيدَةٍ: وفد عبدالقيس اووئيل.موتاسوته د لرې مسافت نه يا د لرې مزل کړې دې.اوراغلی يو.

«شقة» بضم الشين وبكسرها. ددې معنی ..بعد.. دې.بعضې حضرات فرمائی.چه «شقة» لرې سفريا مسافت بعيده ته وائی.په دې صورت کښې به دلته د «بعيدة» صفت.صفت كاشفه وی.

بعضې حضرات فرمائی.چه «شقة» سفرته وائی.وئيلی شی.«فلان بعيد الشقة» يعنی «بعيد السفر» دشقة معنی ناحية هم ده.

په دې صورتونوکښې به دا صفت احترازی وی.ځکه چه سفريا ناحيه کله نزدې وی.اوکله لرې وی.(۵)

**قوله**: وَنَهَاهُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ قَالَ شُعْبَةُ رُبَّمَا قَالَ النَّقِيرِ وَرُبَّمَا قَالَ الْمُقَيَّرِ: دامام شعبه رحمه الله دا مطلب نه دې.چه زما استاذ ابوجمره به کله د.دباء ,,حنتم.. او..مزفت.. ذکرکولونه پس نقيرذکرکولو.اوکله د..مقير.. لفظ وئيل.

بلکه مطلب دا دې.چه زما استاذ ابوجمره، درې څيزونه ،حنتم، دباء، او مزفت ذکرکول. اوکله به ئې د..النقير..زيادت هم کولو.اوکله به ئې د.. مزفت .. په ځائې ..مقير.. وئيل.ځکه چه ..مزفت.. او..مقير.دواړه يو څيز دې.(۶) والله اعلم بالصواب.

---

(۱) كشف البارى(۲۵۰/۲)_
(۲) كشف البارى(۶۷۸/۱)_
(۳) كشف البارى(۷۰۱/۲)_
(۴) كشف البارى(۲۰۵/۲)_
(۵) النهاية (۴۹۲/۲) ومجمع بحار الأنوار(۲۴۱/۳) تاج العروس (۳۹۶/۶)_
(۶) فتح البارى(۱۸۴/۱) وعمدة القارى(۱۰۰/۲)_

حديث عبدالقيس مكمله تشريح په كتاب الايمان كښې د «باب أداء الخمس من الإيمان» لاندې تيره شوې ده (۱) «فارجع إليه إن شئت».

## ۲۶=بَابُ الرِّحْلَةِ فِي الْمَسْأَلَةِ النَّازِلَةِ وَتَعْلِيمِ أَهْلِهِ

رحلة، بكسر الراء ،ارتحال اوسفرته وائي او ..رُحلة،، بالضم. طرف ته وائي كوم ته چه سفركولې شي حافظ فرمائي چه دلته ..رحلة.. ..رحلة.. بكسرالراء او ..رحلة بفتح الراء هم راغلې ده په معنى د «المرأة الواحدة» هم راغلې ده (۲)

**د مخكنى باب سره مناسبت** په تيرشوى باب كښې تحريض على العلم وو. دتحريض په نيتجه كښې طالب علم دمختلفوځايونوسفركوى.بياخاص كرچه كله څه واقعه اوواقعه پيښه شى.نوبيا وتل ضرورى شى.ددې وجې ئې دلته د «رحلة فى المسئلة النازلة» باب قائم كړو (۳)

**د تكرارفى الترجمة شبه اودهغې جواب** ددې نه وړاندې امام بخارى د «باب الخروج فى طلب العلم» باب قائم كړې وو. اواوس دوى «باب الرحلة فى المسئلة النازلة» قائم كړو په ظاهره دا تكرار دې.

ددې جواب دا دې چه سابقه باب عام وو.په مطلق خروج فى العلم باندې دال وو اودا ترجمه خاص ده.په دې كښې دڅه واقعې اوحادثې په پيښيدو باندې دتل مقصود دى. نو تكرار نشو. (۴)

**د ترجمې مقصد** حضرت شيخ الهندؒ فرمائى كه د يوې مسئلې ضرورت پيښ شى اوحكم معلوم نه وى.دعالم نه د معلومولوپاره دې سفراوكړى.اوخپلواهل علموته دې هم تعليم وركړى.دا نه چه سكوت اوختياركړى.اوكينى.ددې نه دتعليم اوتعلم تاكيداوضرورت معلوميږى.والله اعلم.(۵)

مطلب دا دې چه په احكام شرعيه كښې جهل چونكه عذرنه دې.ددې وجې كوشش كول پكاردى.اوعلم حاصلول پكاردى.«فإنما شفاء العي السوال»(۶)

تنبيه دلته تاسوګورئ چه د ترجمې په آخر كښې «وتعليم أهله» هم شته.دا صرف د كريمې په نسخه كښې دى.

---

۱)كشف البارى( ۶۹۴\۲و ۹۲۷)_

۲)فتح البارى(۱۸۴\۱)_

۳)عمدة القارى(۱۰۰\۲)_

۴)شرح الكرمانى(۳۷\۲و ۳۴)_

۵)الأبواب والتراجم (ص۵۲)_

۶)الكنزالمتوارى (۳۱۸\۲)_

حافظ ابن حجراوعلامه عينى رحمهما الله فرمائى چه ددې حذف كول صحيح دى.خكه چه دتعليم اهل په باره كښې امام بخارى وړاندې «باب تعليم الرجل أمته وأهله» مستقل باب قائموى (١)

خودلته دا ونيلى شى.چه هغه ترجمه كومه چه راتلونكې ده.عام ده. او مذكوره ترجمه خاص ده ددې مقصد خودا دې.چه دضرورى مسئلې دپاره چه كوم سفراوكړې شى.نود مسئلې معلوميدونه پس هغه خپل اهل ته هم خودل پكاردى.اوپه راروانه ترجمه كښې ئې مطلقاً دا خودلى دى.چه دخپلې وينځې اوبنځې دتعليم اهتمام كول پكار دى.والله اعلم.

[٨٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ (٢) أَنَّهُ تَزَوَّجَ ابْنَةً لِأَبِي إِهَابِ بْنِ عَزِيزٍ فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ إِنِّي قَدْ أَرْضَعْتُ عُقْبَةَ وَالَّتِي تَزَوَّجَ فَقَالَ لَهَا عُقْبَةُ مَا أَعْلَمُ أَنَّكِ أَرْضَعْتِنِي وَلَا أَخْبَرْتِنِي فَرَكِبَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ فَفَارَقَهَا عُقْبَةُ وَنَكَحَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ

[١٩٤٧ ٢٤٩٧و ٢٥١٦و ٢٥١٧و ٤٨١٦]

## رجال الحديث

① محمدبن مقاتل ابوالحسن: دا ابوالحسن محمدبن مقاتل مروزى بغدادى مكى دې.ددوى لقب «رخ» دې.ددوى حالات په كتاب العلم كښې د«باب ما يذكر في المناولة وكتاب أهل العلم بالعلم إلى البلدان» لاندې تيرشوى دى.

② عبدالله: دا امام عبدالله بن المبارك خنظلى رحمه الله دې.ددوى مختصر حالات په بدء الوحى كښې دپنځم حديث لاندې تيرشوى دى.(٣)

③ عمربن سعيدبن ابى حسين: دا عمربن سعيدبن ابى حسين قرشى نوفلى مكى دې(٤)

---

(١) فتح البارى(١\١٨٤) وعمدة القارى(٢\١٠٠)_

(٢) قوله عن عقبة بن الحارث: الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى (١\٢٧٦) كتاب البيوع باب تفسير المشبهات رقم ٢٠٥٢) و(١\٣٦٠) كتاب الشهادات باب إذا شهد شاهد أوشهود بشئ رقم ٢٦٤٠) و (١\٣٦٣) كتاب الشهادات باب شهادة الإماء والعبيد رقم ٢٦٥٩) وباب شهادة المرضعة رقم ٢٦٦٠) و(٢\٧٦٤و ٧٦٥) كتاب النكاح باب شهادة المرضعة رقم (٥١٠٤) والنسائى فى سننه ى كتاب النكاح باب الشهادة فى الرضاع رقم ٣٣٣٢) وأبوداود فى سننه فى كتاب القضاء باب الشهادة على الرضاع رقم ٣٦٠٣و ٣٦٠٤) والترمذى فى جامعه فى كتاب الرضاع باب ماجاء فى شهادة المرأة الواحدة فى الرضاع رقم ١١٥١)

(٣) كشف البارى(١\٤٦٢)_

(٤) تهذيب الكمال(٢١\٣٦٤)_

دوى دطاوس به كيسان، عبدالله بن ابى مليكه، القاسم بن محمد، عبدالرحمن بن القاسم بن محمد، محمدبن المنكدر، اوعطاء بن ابى رباح رحمهم الله وغيره نه روايت كوى

او ددوى نه روايت كونكوكښې سعيدبن سلام، سفيان ثورى، ورح بن عباده، ابوعاصم النبيل، عبدالله بن داود خريبى، عبدالله بن المبارك، عيسى بن يونس، اويحيى القطان رحمهم الله وغيره دى.[1]

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى: «ثقة من أمثل من يكتبونه منه»[2]

امام يحيى بن معين اوامام نسائى رحمهما الله فرمائى: «ثقة»[3]

امام عجلى، ابن البرقى اومحمدبن مسعود بن العجمى رحمهم الله هم ددوى توثيق كړې دې[4]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى: «صدوق»[5]

ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى.[6] رحمه الله رحمة واسعة

④ **عبدالله بن ابى مليكه:** دا ابوبكرعبدالله بن عبيدالله بن ابى مليكه زهيربن عبدالله بن جدعان تيمى قرشى دې، ابومحمد هم ددوى كنيت دې.[7]

⑤ **عقبه بن الحارث:** د عقبه بن الحارث بن عامربن نوفل قرشى نوفلى مكى رضي الله عنه دې، دفتح مكې په موقع باندې مسلمان شوې وو.

محدثين فرمائى چه ددوى كنيت ،،ابوسروعه،، دې، دعلم الانساب په عالمانوكښې دې علماء وائى چه ،،ابوسروعه،، دعقبه ورور وو، اودواړه د فتحې مكې په موقع مسلمانان شوى وو.

ابوحاتم رحمه الله فرمائى چه ابوسروعه عقبه بن الحارث د حضرت خبيب بن عدى رضي الله عنه قاتل وو، دې مقتدم دې، اوعقبه بن الحارث كوم چه دابن ابى مليكه رحمه الله ... روايت كوى، دا متاخردې.

بعضې حضراتو عقبه بن الحارث اوابوسروعه دواړه مورشريك ورونړه ګرخولى دى.

حافظ ابن حجر رحمه الله دمحدثينو رحمهم الله قول راجح ګرځولې دې چه ابو سروعه هم د عقبه كنيت دې، اودا يوكس دې.[8]

---

[1] دشيوخ اوتلامذة دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (۲۱\۳۶۵)_
[2] تهذيب الكمال (۲۱\۳۶۶)_
[3] تهذيب الكمال (۲۱\۳۶۶) وتهذيب التهذيب (۷\٤۵۳)_
[4] تهذيب الكمال (۷\٤۵۳)_
[5] المصدر السابق)_
[6] الثقات لابن حبان (۷\۱۶۶و ۱۶۷)_
[7] كشف البارى (۱۲\٥٤۸)_
[8] دتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (۲۰\۱۹۲و ۱۹٤) وتهذيب التهذيب (۷\۲۳۸و ۲۳۹) والإصابة (۱۲\٤۸۸) وتهذيب الأسماء واللغات (۱۱\۳۳۶)_

حضرت عقبه بن الحارث رضي الله عنه دنبي ﷺ نه علاوه دحضرت ابوبکرصديق اوحضرت جبيربن مطعم رضي الله عنهما نه هم روايت کوي.

اوددوي نه روايت کونکوکښې ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف،عبدالله بن ابي ابي مليکه.اوعبيدالله بن ابي مريم مکي رحمهم الله دي.[1]

ددوي نه په شماريوڅواحاديث مروي دي.امام بخاري رحمه الله ددوي درې حاديث نقل کړي دي اوامام مسلم رحمه الله د دوي څه حديث نه دې نقل کړې.[2]

دامام مسلم او ابن ماجه رحمهما الله نه علاوه باقي د اصول سته مصنفينو رحمهم الله ددوي د احاديثو تخريج کړې دې.

**قوله** <u>أَنَّهُ تَزَوَّجَ ابْنَةً لِأَبِي إِهَابِ بْنِ عَزِيزٍ</u>: حضرت عقبه بن ابي مليکه رضي الله عنه دابواهاب بن عزيز لورسره نکاح کړې وه.

ددې ميرمن نوم ،،غَنِيَّةُ دې.ام يحي ئې کنيت دې.[3] دا کنيت د کتاب الشهادات په يو روايت کښې راغلې دې.[4]

ابواهاب بن عزيزبن قيس تميمي .دا صحابي رضي الله عنه دې.وئيلې شي.چه په مسجد حرام کښې د ټولونه وړمبئ ددوي دجنازې مونځ شوې وو.[5]

عزيز ((بفتح العين المهملة وزايين منقوطين بينهما ياء تحانية)) په وزن د کريم دې.دا تصغيرنه دې.[6]

**قوله** <u>فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ</u>: يوه ښځه دې ته راغله.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه ددې نوم ماته معلوم نشو.[7]

**قوله** <u>فَقَالَتْ إِنِّي قَدْ أَرْضَعْتُ عُقْبَةَ وَالَّتِي تَزَوَّجَ</u>: هغې اوونيل.چه ماعقبه اودده جينئ ته چاسره چه ده نکاح کړې ده.تئ ورکړې دې.

مطلب دا چه دا دواړه په خپلو کښې رضاعي ورور خور دي.

**قوله** <u>فَقَالَ لَهَا عُقْبَةُ مَا أَعْلَمُ أَنَّكِ أَرْضَعْتِنِي وَلَا أَخْبَرْتِنِي</u>: عقبه اوونيل.چه ماته معلومه نه ده.چه تا ماته پئ راکړې دی.اونه ما ته تا خبر راکړې دې.

---

[1] دشيوخ اوتلامذة دپاره اوګورئ تهذيب الکمال (۱۹۳/۲۰)_

[2] ذخائرالمواريث في الدلالة على مواضع الحديث (۳۱۷/۲) وخلاصة الخزرجي (ص،۲۶۸)_

[3] فتح الباري (۱۸٤/۱)-

[4] صحيح البخاري (۳۶۳/۱) کتاب الشهادات باب شهادة الإماء والعبيد رقم ۲۶۵۹)_

[5] النظر الإصابة (۱۱٤و ۱۲)_

[6] فتح الباري (۱۸٤/۱و ۱۸۵) والإصابة (۱۱/٤)_

[7] فتح الباري (۱۸۵/۱)_

مطلب دا كه د رواج مطابق د رضاعت ضرورت پيښ شوې وو.اوماته دې پې راكړى وو.
نوكم ازكم ماته خوبه دې خودلې وو.چه زه ستا رضاعى مور يم.

**قوله** فَرَكِبَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ فَسَأَلَهُ: هغه مدينې منورې ته اورسول الله ته سفراوكړو.اواورسيدلو.اود نبى ﷺ نه ئې تپوس اوكړو.
چونكه په زړه كښې ئې شك شو.اوتسلى ورته نه ملاويده.ددې وجې هغوى دمكې معظمې نه چرته چه ډيره وو.دهغې نه مدينې منورې ته سفر اوكړو.چه د رسول الله ﷺ نه د مسئلې تپوس اوكړى.اوعمل پرې اوكړى.(١)

**قوله** فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ: نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.چه ته څنګه هغه ښځه په خپله نكاح كښې ساتې. حالانكه داسې خبره شوې ده.چه هغه ستا خور ده.

**ايا په رضاعت كښې د يوې ښځې ګواهى معتبرده؟** په دې خبره كښې اختلاف دې.ك مرضعه ګواهى وركړى.نويواځې ددې ګواهى معتبرده كه نه؟

امام احمد،امام اسحاق،امام اوزاعى،اوامام زهرى رحمهم الله فرمائى.چه دمرضعة ګواهى څخه هم معتبرده.دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما اوطاؤس رحمه الله نه هم دا منقول دى.

دامام اوزاعى رحمه الله نه يوقول دا هم معتبردې.كه مرضعه دتزويج نه وړاندې ګواهى وركړى.نومعتبرده ګنې نه ده.

امام مالك رحمه الله فرمائى.چه د رضاعت داثبات دپاره د دوو ښځوشهادت معتبردې.د سړى وجود په كښې ضرورى نه دې.

امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه د رضاعت په باب كښې كم ازكم د څلورو ښځوګواهى ضرورى ده.دا د امام شعبى اوعطاء رحمهما الله نه هم مروى دى.

امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.چه د رضاعت د اثبات دپاره هم دشهادت نصاب ضرورى دې.يعنى دوه سړى يا يوسړې اودوه ښځې،ددې نه بغيررضاعت نه ثابتيږى.(٢)

امام احمد رحمه الله وغيره دحديث باب نه استدلال كوى.چه دلته صرف د يوې ښځې ګواهى ده.اونبى ﷺ ددې په وجه دخپلې بى بى پريخودوحكم كوى.

احناف رحمهم الله په دې باب كښې په آيت كريمه ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ﴾ (٣)

تركومې پورې چه حديث باب تعلق دې.نوجمهوردا په تنزه.تورع اواحتياط باندې محمول كوى.ددې جواب حاصل دا دې.چه صرف د مرضعې په شهادت باندې بيلتون كول عام قانون نه دې.اونه شريعت حرمت ثابتوى. البته په دې سره يوقسم شك اوشبه ضرور پيدا

---

(١)فتح البارى(١١\١٨٥)_
(٢)عمدة القارى(٢٠\١٩٩) كتاب النكاح باب شهادة المرضعة)_
(٣)البقرة:٢٨٢)_

کیږی.ښکاره ده.چه دشبهې پیدا کیدو نه پس به دغه بی بی سره په مخالطت کښې انبساط نه وی چونکه دټول عمر معامله ده.نوهمیشه دپاره به انقباض باقی وی.دکوم چه په امور معاشرت اوتربیت اولاد باندې بداثرغورځیږی.نود «الحلال بین والحرام بین وبینهما مشتبهات» [۱] او «دع مایریبك إلى مالا یریبك» [۲] خیال نې اوساتل.

اونبی ﷺ ورته د تقوی اوورع په بناء باندې «کیف وقد قیل» او «دعها عنك» [۳] اوفرمائیل محقق ابن الهمام او علامه سرخسی رحمهماالله هم دا جواب اختیار کړې دې.[۴]

علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله د شیخ خیرالدین رملی رحمه الله بحرالرائق د حاشیة په حواله سره نقل کړی دی.چه هغوی لیکلی دی.صرف دیوې ښځې شهادت دیانة معتبر دې اوقضاء معتبر نه دې.په قضا اودیانت کښې فرق دا دې.چه ترڅوپورې معامله عدالت ته نه وی رسیدلې.نوترهغه وخته پورې به هم د دیانت اعتبار وی.اودمفتی نه که ددې په باره کښې استفتاء اوشی.نومفتی به د دیانت په اعتبارسره فتوی ورکوی.البته معامله عدالت ته اورسیده. نو قاضی به ددې اعتبارنه کوی.ځکه چه دقاضی فیصله صرف دښځې په ګواهۍ باندې نشی کولې.

په نبی ﷺ کښې دواړه حیثیونه وو.نبی ﷺ مفتی هم وو.اوقاضی هم.اوس دا کتل پکار دی.چه نبی ﷺ دا فیصله په کوم حیثیت سره ورکړې وه.که دقضاء په حیثیت سره نې ورکړې وی.نوبیشکه د جواب ورکولو ضرورت به وی. او قرائن ددې مقتضی دی.چه نبی ﷺ د قضاء په حیثیت سره دا فیصله نه وه کړې.بلکه د افتاء په حیثیت سره نبی ﷺ دا فیصله کړې وه.

که چرته دا فیصله قضاء وه.نوحضرت عقبه رضی الله عنه چه ورته ځنګه خبر ورکړو.نبی ﷺ به ترې اعراض نه کولو.بلکه سمدستی به نې فیصله کوله. حالانکه په روایاتوکښې دی.چه نبی ﷺ د خبرې اوریدونه پس اعراض اوکړو.[۵] کله چه دوی دوباره بلکه په بعضې روایاتوکښې دریم اوځلورم ځل اصرار اوکړو.نونبی ﷺ اوفرمائیل «کیف وقد قیل!» [۶]

دغه شان که دا فیصله قضاء وه.نونبی ﷺ به خامخا ګواهی مجلس ته راغوستې وه.اوبیا به نې حکم کولو.خودلته څه هم نه دی شوی.

---

[۱] صحيح البخاري (۱۳\۱) كتاب الإيمان باب فضل من إستبرأ لدينه رقم ۵۲)_

[۲] جامع الترمذي كتاب صفة القيامة باب (بدون ترجمة) رقم ۲۵۱۸) وسنن النسائي كتاب الأشربة باب الحث على ترك الشبهات رقم ۷۵۱٤)_

[۳] كما في رواية أخرجها البخاري في صحيحه (۳۶۳\۱) كتاب الشهادات باب شهادة المرضعة رقم ۲۶۶۰)_

[۴] المبسوط للسرخسي (۱۶۹\۱۰) كتاب الإستحسان وفتح القدير (۳۲٤\۳) وآخر كتاب الرضاع)_

[۵] ففي رواية البخاري في صحيحه (۳۶۳\۱) كتاب الشهادات باب شهادة الإماء والعبيد (فذكرت ذلك للنبي ﷺ فأعرض عني قال فتنحيت فذكرت ذلك له ...)_

[۶] كما في رواية الدارمي في سننه (۲۱۰\۲) كتاب النكاح باب شهادة المرأة الواحدة على الرضاع رقم ۲۲۵۵)

خلاصه دا شوه چه دعلامه خيرالدين رملي رحمه الله دقول مطابق دلته نبي ﷺ قضاء دا فيصله نه ده كړي بلكه ديانة ئې فيصله كړې وه لكه چه په داسې صورت كښې قضاء نه بلكه ديانة تفريق ضروري دې

اومحقق ابن الهمام رحمه الله په نيزدلته ديانة هم تفريق ضروري نه دې صرف تورعاً اوتنزيهاً ئې ورته د تفريق حكم كړې وو.(۱)

بيا امام سرخسي رحمه الله دا هم فرمائي چه په حديث باب كښې چه دكومې ښځې دګواهۍ ذكردې پكاردې چه دا دچا په نيز هم صحيح نشي خكه چه په رواياتوكښې راځي چه عقبه بن حارث رضي الله عنه فرمائي «تزوجت بنت أبي إهاب، فجاءت سوداء تستطعمنا فأبينا أن نطعمها فجاءت من الغد تشهد على الرضاع...» امام سرخسي رحمه الله فرمائي چه «ومثل هذه الشهادة تكون عن ضغن فلا تتم الحجة بها»(۲)

**قوله**: **فَفَارَقَهَا عُقْبَةُ رضي الله عنه**: نوحضرت عقبه رضي الله عنه خپله بي بي جدا كړه په «فارق» كښې دا احتمال هم شته چه نبي ﷺ تفريق وكړو اودا احتمال هم شته چه حضرت عقبه رضي الله عنه ورته طلاق وركړو اوجدا ئې كړه.(۳)

**قوله**: **وَنَكَحَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ**: اوددوي ښځې دبل چا سره نكاح وكړه.

ددغه كس نوم «ظُرَيب» خودلې شوې دې:(۴)

**د ترجمة الباب اثبات** دحديث باب نه ترجمة الباب ښكاره ثابتيږي «فركب إلى رسول الله ﷺ بالمدينة» يعني حضرت عقبه رضي الله عنه ته چه كومه مسئله پېښه شوې وه دهغې دحكم معلوملو دپاره دمدينې منورې سفر وكړو په اكثرونسخوكښې چونكه «باب الرحلة في المسئلة النازلة» دې اوزيادت په كښې نشته ددې وجې د حديث نه د ترجمة الباب بيخي ښكاره دې.

البته دكريمه په نسخه كښې د «وتعليم أهله» زيادت دې ددې وجې كه دا نسخه غلطه اوګرځولې شي لكه څنګه چه حافظ ابن حجراوعلامه عيني رحمهما الله كړې دی نوبيا د څه جواب ضرورت نشته.

اوكه دا زيادت صحيح اوګنړلې شي نوويلې شي چه حضرت عقبه رضي الله عنه چه واپس كورته راغلې وي نوهغوي به خامخا خپل كوروالو ته د نبي ﷺ دجواب نه خبر كړي وي اوبيا به ئې مفارقت اختياركړې وي والله اعلم وعلمه اتم واحكم.

---

(۱) فضل البارى(۸۸/۲و ۸۹)_
(۲) المبسوط للسرخسي(۱۶۹/۱۰) كتاب الإستحسان)_
(۳) فضل البارى(۸۹/۲)_
(۴) فتح البارى(۱۸۵/۱)_

## ۲۷=باب التناوب في العلم

تناوب د باب تفاعل مصدر دې.ددې معنى ده نوبت په نوبت يعنى وار په وار.نودتناوب فى العلم مطلب شو.دعلم حاصلولودپاره نوبت مقرركول.([1])

**د مخکنی باب سره مناسبت** په باب سابق کښې د طلب علم دپاره د رحلة ذکروو ښکاره خبره ده.چه دعلم دطلب دپاره سفرکول زيات حرص وى.په دې باب کښې واريه واريعنى نوبت مقرر کولوسره د علم دطلب دپاره تلل ذکردى.کوم چه شدت حرص فى طلب العلم باندې دليل دې.([2])

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت شيخ الهندرحمه الله فرمائى.چه ددې باب مقصد دا دې.که: ضرورى شغلونو په وجه د علم دحاصلولوفرصت نه وى.نوپه طريقه د تناوب علم زده کول پکار دى.اوکه عالم ته په خپله نشى ورتلې.نوديومعتمد په ذريعه دې علم حاصل کړى.([3])

حضرت شيخ الحديث رحمه الله صاحب فرمائى.چه زما په نيز دا هم ممکن ده.چه حضرت امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى.چه دعلم طلب اگرچه فرض دې.ليکن ددې فرضيت دا خبره نه لازموى.چه دنورو ضرورياتونه دې سړې بيخى فارغ وى.بلکه دنورو ضرورياتو سره سره هم علم حاصلول صحيح دى.دحافظ ابن حجررحمه الله دکلام نه ددې تائيد کيږى.حافظ فرمائى([4]) چه دطالب علم دپاره د علم په طلب کښې د معاش د طلب نه غافله کيدل نه دى پکار.خودې سره سره دې دا خبره هم ياده وى.چه په کومه ورځ دې د علم مجلس ته نشى تلې.نوچه په دغه ورځ چه کوم حالات پيښيږى.دهغې نه د خبريدو انتظام ئې کړې وى وجه دا ده.چه دحضرت عمرفاروق رضى الله عنه واقعه دلته ذکرده.ددې په يوطريق کښې دا تصريح ده.چه حضرت عمررضى الله عنه په دغه وخت کښې سوداگرى کوله.([5])

[۸۹]حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي ثَوْرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ([6]) قَالَ كُنْتُ أَنَا وَجَارٌ لِي مِنَ الْأَنْصَارِ فِي بَنِي أُمَيَّةَ بْنِ زَيْدٍ وَهِيَ مِنْ عَوَالِي

---

[1])فتح البارى(۱۸۵\۱)-

[2])المصدرالسابق)_

[3])الأبواب والتراجم (ص.۵۲)_

[4])فتح البارى(۱۸۶\۱)-

[5])الكنزالمتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى(۳۱۹\۲)_

[6])قوله عن عمررضى الله عنه:الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه (۳۳۴\۱) كتاب المظالم والغصب باب الغارفة والعلية المشرفة وغير المشرفة فى السطوح وغيرها رقم ۲۴۶۸ كتاب التفسير.سورة التحريم باب تبتغى مرضات أزواجک رقم ۴۹۱۳ وباب ((وإذ أسرالنبى إلى بعض أزواجه حديثا.. )) رقم ۴۹۱۴) و(۷۳۱\۲) باب قوله ﴿إن تتوبا إلى الله فقد صغت قلوبكما رقم ۴۹۱۵) فى (۷۸۰\۱۲و ۷۸۲) كتاب النكاح باب موعظة الرجل إبنته لحال زوجها رقم ۵۱۹۱ (۷۸۵\۲) ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

الْمَدِينَةِ وَكُنَّا نَتَنَاوَبُ النُّزُولَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْزِلُ يَوْمًا وَأَنْزِلُ يَوْمًا فَإِذَا نَزَلْتُ جِئْتُهُ بِخَبَرِ ذَلِكَ الْيَوْمِ مِنَ الْوَحْيِ وَغَيْرِهِ وَإِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ فَنَزَلَ صَاحِبِي الْأَنْصَارِيُّ يَوْمَ نَوْبَتِهِ فَضَرَبَ بَابِي ضَرْبًا شَدِيدًا فَقَالَ أَثَمَّ هُوَ فَفَزِعْتُ فَخَرَجْتُ إِلَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَدَثَ أَمْرٌ عَظِيمٌ قَالَ فَدَخَلْتُ عَلَى حَفْصَةَ فَإِذَا هِيَ تَبْكِي فَقُلْتُ طَلَّقَكُنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَا أَدْرِي ثُمَّ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ وَأَنَا قَائِمٌ أَطَلَّقْتَ نِسَاءَكَ قَالَ لَا فَقُلْتُ اللَّهُ أَكْبَرُ[٢٣٣٦و ٢٦٢٩و ٤٦٢٩و ٤٨٩٥و ٤٩٢٠و ٥٠٠٥و ٥٥٠٥ و ٦٨٢٩و ٦٨٣٥]

## رجال الحديث

① ابواليمان: دا ابواليمان الحکم بن نافع بهرانی حمصی رحمه الله دي. ددوی حالات وړاندې د باب بدء الوحی دشپږم حدیث لاندې تیرشوی دی.(١)

② شعیب: دا ابوبشر شعیب بن ابی حمزه قرشی اموی رحمه الله دي. ددوی مختصر حالات هم په باب بدء الوحی کښې د شپږم حدیث لاندې تیره شوې ده.(٢)

③ الزهري: دامام محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهري رحمه الله دي ددوی مختصر حالات په بدء الوحی کښې د دریم حدیث لاندې تیری شوی دی.(٣)

ابوعبدالله: ددوی نه مراد امام بخاری رحمه الله دي.

④ ابن وهب: دا امام عبدالله بن وهب مصری رحمه الله دي. ددوی حالات هم په کتاب العلم کښې د «باب من یردالله به خیراً یفقهه فی الدین» لاندې تیرشوی دی.

⑤ یونس: دا یونس بن یزید ایلی قرشی رحمه الله دي. ددوی حالات مختصراً د باب بدء الوحی کښې د پنځم نمبر حدیث لاندې تیرشوی دی.(٤) اوتفصیلاً په کتاب العلم کښې د

.....بقیه حاشیه د تیرمخ] کتاب النکاح باب حب الرجل بعض نسائه أفضل من بعض رقم (٥٢١٨) وفی (٨٦٨/٢و ٨٦٩) کتاب اللباس باب ما کان النبی صلى الله عليه وسلم یتجوز من اللباس والبسط رقم ٥٨٤٣) وفی (١٠٧٧/٢) کتاب أخبار الآحاد باب ما جاء فی إجازة خبرالواحد الصدوق رقم ٧٢٥٦) وفی (١٠٧٨/٢) کتاب أخبارالآحاد باب قول الله تعالى ﴿ لا تدخلوا بیوت النبی إلا أن یؤذن لکم ) رقم ٧٢٦٣) ومسلم فی سننه صحیحه فی کتاب الطلاق باب فی الإیلاء وإعتزال انساء وتخیرهن وقوله تعالى ﴿ وإن تظاهرا علیه ﴾ رقم ٣٦٩١و ٣٦٩٦) والنسائی فی سننه فی کتاب الصیام باب کم الشهر وذکر الإختلاف علی الزهری فی الخبر عن عائشة رضی الله عنها رقم ٢١٣٤ وفی کتاب الطلاق باب الإیلاء رقم ٣٤٨٥ والترمذی فی جامعه فی کتاب التفسیر باب ومن سورة التحریم رقم ٣٣١٨)_

١)کشف الباری(٤٧٩/١)_

٢)کشف الباری(٤٨٠)_

٣)کشف الباری(٣٢٦/١)_

٤)کشف الباری(٤٦٣/١)_

«باب من يرد الله به خيرا يفقهه في الدين» لاندې تيرشوې دی.

⑥ عبيدالله بن عبدالله بن ابى ثور: دا عبيدالله بن عبدالله بن ابى ثور قرشى مدنى دې د بنو نوفل سره د دوى تعلق دې.[1]
دوى د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما او حضرت صفيه بنت شيبه رضی الله عنها نه روايت كوى. او د دوى نه روايت كونكې محمد بن جعفر بن زبير او امام زهرى رحمهما الله دى.[2]
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. «وثق».[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «ثقة».[4]
ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى.[5]
**فائده** دا راوى د يو بل راوى عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رضی الله عنه سره په خپل نوم. د پلار او نيكه په نوم كښې شريك دې. او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په روايت كولو كښې هم شريك دې. البته د دغه دويم راوى په صحيحينو كښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه ډير روايتونه مروى دى. او په صحيحينو كښې عبيدالله بن عبدالله بن ابى ثور نه د دې حديث باب نه سوا بل حديث نشته.[6]
**يوه بله فائده** خطيب بغدادى ليكلى دى چه عبيدالله بن عبدالله بن ابى ثور د ابن عباس رضی الله عنه نه سوا د بل چا نه روايت نه دې كړې. او د دوى نه د زهرى نه سوا بل چا روايت نه دې كړې.[7]
خو د پورتنى تفصيل نه دا معلومه شوه چه دوى د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه علاوه د حضرت صفيه بنت شيبه نه هم روايت كړې دې. د دغه شان د دوى نه روايت كونكو كښې محمد بن جعفر بن الزبير رحمه الله هم دې.[8] والله اعلم. رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

⑦ عبدالله بن عباس رضى الله عنهما: د دوى حالات په باب بدء الوحى كښې د څلورم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.[9] په «كتاب الإيمان باب كفران العشير وكفر دون كفر»

---

[1] تهذيب الكمال (۱۹\۶۸)_
[2] د استاذانو او شاګردانو د تفصيل د پاره اوګورئ تهذيب الكمال (۱۹\۶۸)_
[3] الكاشف (۱۱\۶۸) رقم ۳۵۶۰)_
[4] تقريب التهذيب (ص. ۳۷۲) رقم ۴۳۰۷)_
[5] الثقات لابن حبان (۵\۶۵)_
[6] عمدة القارى (۲\۱۰۳) وفتح البارى (۱\۱۸۵)_
[7] قاله الخطيب فى المكمل انظر تهذيب التهذيب (۷\۲۱)_
[8] محمد بن جعفر الزبير عن صفيى بن شيبى.. د رواياتو د پاره اوګورئ ((سنن أبى داود كتاب المناسک باب الطواف الواجب رقم ۱۸۷۸) وسنن ابن ماجه من استلم الركن بمحجنه رقم ۲۹۴۷)_
[9] كشف البارى (۱\۴۳۵)_

لاندې تيرشوی دی. (۱) دغه شان څه حالات په «كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير؟» كښې اود «أنا يومئذ ناهزت الإحتلام» دتشريح لاندې تيرشوی دی.

⑧ عمر رضي الله عنه: دحضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه مختصرحالات هم په بدء الوحی كښې د اولنی حديث لاندې (۲) اوپه «كتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه» لاندې تيرشوی دی. (۳)

**قوله قال أبوعبدالله، وقال ابن وهب أخبرنا يونس:** امام بخاری رحمه الله دا حديث دلته په دوو سندونو سره نقل كړې دې. يوابواليمان عن شعيب عن الزهری په طريق سره. كوم چه موصول دې. اوبل د ابن وهب عن يونس عن الزهری په طريق سره كوم چه معلق دې.
دلته چه ئې كوم الفاظ ذكركړی دی. هغه د ابواليمان عن شعيب په طريقه سره نقل شوی الفاظ دی. دابن وهب عن يونس الفاظ نه دی. ځكه چه دلته اصل مقصود «كنت أنا وجار لي من الأنصار في بني أمية بن زيد وهي من عوالي المدينة، كنا نتناوب النزول على رسول الله ﷺ» الفاظ دی.
اودا ابواليمان عن شعيب په طريق سره منقول دی. دابن وهب عن يونس په طريق كښې «نتناوب» خبره موجود نه ده. بلكه هغوی «عن ابن عباس قال لم أزل حريصاً على أن أسأل عمربن الخطاب عن المرأتين...» الفاظونه شروع كړې ده. (۴)

د ابن ابی وهب دا تعليق ابن حبان په خپل صحيح كښې «محمدبن الحسن بن قتيبة عن حرملة بن يحيى عن ابن وهب» په سند سره موصولاً نقل كړې دې. (۵)
دلته يو سوال دا پيدا كيږی. چه هركله دلته د ابواليمان عن شعيب د طريق الفاظ دی. نود ابن وهب عن يونس د طريق تعليقاً ذكركولوڅه مقصد دې؟
ددې جواب دا دې. چه دا روايات ئې تعليقاً راوړلو. په دې كښې دا خودل مقصود دی. چه ددې روايت په پوره نقل كولوكښې شعيب متفرد نه دې. بلكه يونس بن يزيد هم ورسره شريك دې. (۶)
دا خبره دې هم پيش نظروی. چه دا روايت دلته مختصر دې. امام بخاری رحمه الله وړاندې په كتاب المظالم اوكتاب النكاح كښې دا ډيرپه تفصيل سره نقل كړې دې. (۷)

---

(۱) كشف الباری (۲۰۵/۲)_
(۲) كشف الباری (۲۳۹/۱)_
(۳) كشف الباری (۴۷۴/۲)_
(۴) نص على ذلک الذهلی والدارقطني والحاكم وغيرهم فتح الباری (۱۸۵/۱) وعمدة القاری (۱۰۳/۲)_
(۵) الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (۱۹۲/۷) كتاب النكاح باب معاشرة الزوجين ذكرالبيان باب المرء جائزله أن يؤدب إمرأته بهجرانها مدة معلومة رقم ۴۱۷۵)_
(۶) عمدة القاری (۱۰۳/۲) وفتح الباری (۱۸۵/۱)_
(۷) امام بخاری رحمه الله دا حديث تفصيلاً اومختصراً په كومو كوموځايونوكښې ذكركړې دې. دهغې ګوته كول په تيره حاشيه كښې شوی دی فارجعه ان شئت._

**قوله** قَالَ كُنْتُ أَنَا وَجَارٌ لِي مِنَ الْأَنْصَارِ فِي بَنِي أُمَيَّةَ بْنِ زَيْدٍ وَهِيَ مِنْ عَوَالِي الْمَدِينَةِ: حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي چه زه او زما يو انصاري ګاونډى. مونږ د بنو اميه بن زيد په عوالي مدينه کښې اوسيدو

**داګاونډي څوک وو؟** دا ګاونډي څوک وو. علامه قطب الدين القسطلاني رحمه الله فرمائي.(١) چه دا حضرت عتبان بن مالك وو. ابن قسطلاني رحمه الله خو څه دليل نه دې ذکر کړې. البته ابن بشکوال د دې قول د توجيه کوشش کړې دې. چه نبي ﷺ د حضرت عمراوحضرت عتبان بن مالك رحمهما الله په مينځ کښې د مواخاة رشته قائمه کړې وه. نوقوى امکان دې چه د دې ګاونډي نه مراد حضرت عتبان رضي الله عنه وى.

خوعلامه برمادي رحمه الله رمائي. چه ددې نه مراد حضرت اوس بن خولي بن عبدالله رضي الله عنه دې.(٢) ددوى دليل دا دې. چه دابن سعدپه روايت کښې دى. ((وكان عمرمواخياً أوس بن خولي لايسمع شيأإلا حدثه ولايسمع عمرشيأإلاحدثه)) تصريح راغلې ده.(٣)

علامه قسطلاني شارح بخاري رحمه الله فرمائي. چه ((لكن لايلزم من المواخاة الجوار)) (٤)يعني که د دواړو په مينځ کښې دمواخاة رشته وه. نوددې نه دا نه لازميږي. چه دواړه ګاونډيان هم وو. خوددې جواب دحافظ ابن حجر رحمه الله دکلام نه ملاويږي. چه د ابن سعد رحمه الله په روايت کښې د ((وكان عمر مواخياً أوس بن خولي)) مطلب د ((مواخاة)) معلومه رشته نه ده. بلکه مصادقه وملګرتيا ده. ځکه چه ابن سعد رحمه الله دحضرت عمر اوعتبان بن مالك رحمهما الله مواخاة اود حضرت اوس بن خولي او حضرت شجاع بن وهب رضي الله عنهما دمواخاة تصريح کړې ده.(٥)

بلکه حافظ ابن حجر رحمه الله د قسطلاني شارح بخاري پيش کړې دليل ددې خبرې دترديد دپاره استعمال کړې دې. چه ددې جارنه عتبان بن مالك مراد دې. دوى فرمائي. چه ((لكن لايلزم من الإخاء أن يتجاورا)) (٦)يعني که د حضرت عمر اوعتبان بن مالك رضي الله عنهما په مينځ کښې که د مواخاة رشته وه هم. نوبيا هم ددې نه دا نه لازميږي. چه دا دواړه ګاونډيان وو بيا خاص کرکله چه په يو روايت کښې د ((جار)) تصريح هم پکار دې.

١) داعلامه قطب الدين دحافظ ابن حجر رحمه الله نه وړاندې بزرګ دې اوعلامه شهاب الدين قسطلاني رحمه الله صاحب دارشاد الساري شرح بخاري دا بل صاحب دې اودوى دحافظ نه روسته دى. اودلته دغه متقدم بزرګ مراد دې

٢)فتح الباري(١١/١٨٥) كتاب النكاح باب موعظة الرجل إبنته لحال زوجها وإرشاد الساري (١١/١٨٨)_

٣)الطبقات لابن سعد(٨/١٩٠) ذكرالمرأتين التين تظاهر تا على رسول الله ﷺ وتخييره ونساءه)_

٤)ارشاد الساري(١١/١٨٨)_

٥)فتح الباري(٩/٢٨١) كتاب النكاح باب موعظة الرجل إبنته لحال زوجها)_

٦)المصدرالسابق)_

**قوله** بني امية بن زيد: دا د مديني منورې د يوې محلې نوم دې چرته چه دا قبيله آباده وه. د قبيلوپه نوم به کورنه وو.[1]

**قوله** عوالي مدينة: عوالي دعالية جمع ده. دعوالی نه هغه کلي مراد دی. کوم چه د مديني منورې پورته حصه يعنی مشرقی حصه کښې آباد وو. دعوالی شروع د دوو ميلونو نه تراته ميلو پورې کيږی.[2]

**قوله** وَكُنَّا نَتَنَاوَبُ النُّزُولَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْزِلُ يَوْمًا وَأَنْزِلُ يَوْمًا: مونږبه دنبی ﷺ په خدمت کښې په وار په وار باندې حاضريدو. يوه ورځ به هغه حاضريدو. اويوه ورځ به زه

**قوله** فَإِذَا نَزَلْتُ جِئْتُهُ بِخَبَرِ ذَلِكَ الْيَوْمِ مِنَ الْوَحْيِ وَغَيْرِهِ وَإِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ: په کومه ورځ چه به زه حاضريدم. نودهغه ورځې دوحی وغيره خبر به ما ورکول. اوکله چه به هغه حاضريدل. نودغه شان به وو.

مطلب دا که په دغه ورځ به څه وحی نازله شوه. يا به څه مسئله پيښه شوه. يا به نبی ﷺ څه لښکر ليږل. يا به نبی ﷺ د څه خبرې تعليم اوتبليغ کړې وو. نوما به خپل ملګری ته هغه بيانول. اوکله چه به زما ملګرې راغلو. نوهغوی به راته بيانول.

((فَنَزَلَ صَاحِبِي الْأَنْصَارِيُّ يَوْمَ نَوْبَتِهِ فَضَرَبَ بَابِي ضَرْبًا شَدِيدًا فَقَالَ أَثَمَّ هُوَ فَفَزِعْتُ فَخَرَجْتُ إِلَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَدَثَ أَمْرٌ عَظِيمٌ قَالَ فَدَخَلْتُ عَلَى حَفْصَةَ فَإِذَا هِيَ تَبْكِي فَقُلْتُ طَلَّقَكُنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَا أَدْرِي ثُمَّ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ وَأَنَا قَائِمٌ أَطَلَّقْتَ نِسَاءَكَ قَالَ لَا فَقُلْتُ اللَّهُ أَكْبَرُ))

زما انصاری ورور يوه ورځ په خپل نوبت کښې حاضرشوې وو. (کله چه واپس راغلو. نو) زما دروازه ئې ډيره په تيزه باندې اووهله. اووې ونيل. هغه (يعنی عمر) دلته دې. زه دکورنه وارخطا رابهرشوم. هغه اوونيل. چه يوه ډيره لويه حادثه پيښه شوه. حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه زه حفصې کره ورغلم. هغې ژړل. ماترې تپوس اوکړو. آيا رسول الله ﷺ تاسو ټولوته طلاق درکړې دې. هغې راته اوونيل. چه ماته معلومه نه ده. بيا زه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم. اواودريدم. عرض مې اوکړو. تاسو خپلوبيبيانوته طلاق ورکړې دې؟ نبی ﷺ اوفرمائيل. نه. نوما الله اکبراوونيل.

دا روايت دلته ډيره مختصر دې. وړاندې تفصيلی روايت راځی. چه دهغې خلاصه دا ده. حضرت عمر رضی الله عنه يوه ورځ په خپله څه مسئله کښې سوچ کولو چه دحضرت عمر رضی الله عنه بی بی راغله. اووې ونيل. چه تاسو داسې اوکړئ. د حضرت عمر رضی الله عنه په ذهن کښې دا خبره وه. چه په

---

[1] عمدة القاری (۲\۱۰٤)

[2] المصدر السابق)

مکه کښې به د قریشو دسړو وړاندې ددوی ښځې غلې اوسیدې.اومخامخ به نې ورته جواب نه ورکولو .خو دهجرت نه پس دلته په انصاروکښې معامله ددې په عکس وه.دلته ښځې لرې غوندې غالبې وې.اوخپلوخاوندانو ته به نې جوابونه ورکول.ددې وجې حضرت عمر رضي الله عنه خفه شو اووې وئیل چه تاسوښځې زمونږ په کارونوکښې دکوم وخت نه دخل اندازی کوئ ددوی ښځې ورته اووئیل.ته هم عجیبه سړې نې.ته دومره هم بد ګنړې چه مونږ تا سره په څه مسئله کښې بحث اوکړو.حالانکه ستا دلورخو دا حال دې چه دنبی ﷺ سره بحث کوی.اوکله ورسره ټوله ورځ خبرې اترې بندوی.

حضرت عمر رضي الله عنه اوواریدل.اودحضرت حفصې رضي الله عنها نه نې تپوس اوکړو چه تاسو نبی ﷺ ته دخبرې جواب ورکوئ.اوکله کله ورسره ټوله ورځ خبرې بندوئ.حضرت حفصې ورته اووئیل.آو حضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائیل. داسې مکوه.اودعائشې سره ځان مه برابره وه.هغه خو د نبی ﷺ د محبت په وجه بې فکره ده.دغه شان د نبی ﷺ نه زیات څه مه غواړه.چه دکوم څیز ضرورت وی.ماته وایه.

حضرت عمر رضي الله عنه ددې نه پس حضرت ام سلمې رضي الله عنها ته ورغلو.اوهم دا تپوس نې اوکړو حضرت ام سلمې رضي الله عنها اووئیل((واعجباه،ومالك وللدخول فى أمررسول الله ونسائه والله إنا لنكلمه فإن حمل ذلك كان أولى به وإن نهانا كان أطوع عندنا منك))حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی چه ((فندمت على كلامى لنساء النبى ﷺ بما قلت))[1]

بیا فرمائی.چه ما او زما یو ملګری په خپلو کښې دا فیصله کړې وه.چه د نبی ﷺ په خدمت کښې به نوبت په نوبت حاضری کوو.کوم کس چه په خپل نوبت کښې لاړشی.نوهغه به دهغه ورځې ټول واقعات خپل ملګری ته بیانوی.

یوه ورځ زما ملګری په خپل نوبت باندې حاضرشو.اوچه واپس راغلو.نو دروازه نې ډیره په تیزه باندې اوټکوله.زه په ویره باندې رابهرشوم.هغه اووئیل. یوه ډیره لویه واقعه پیښه شوې ده.په هغه ورځوکښې په مدینه کښې دا افواه خوره شوې وه.چه غسانی قبیله په مدینه د حملې کولوتیاریانې کوی.ددې افواه د وجې ما ترې تپوس اوکړو.چه آیا غسانی سردار حارث بن ابی شمر حمله اوکړه.هغه اووئیل.خبره ددې نه هم لویه ده.نبی ﷺ خپلو بیبیانوته طلاق ورکړې دې.

حضرت عمر رضي الله عنه اوویریدل.اوزر نې خپلې جامې وغیره بدلې کړې او راووتلو.دصبا مونځ نې په نبی ﷺ پسې اوکړو.نبی ﷺ چه دمانځه نه فارغ شو. نو بالاخانې ته نې تشریف یوړو.حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی.چه زه حفصې ته روغلم.هغې ژړل.ماترې د ژړا تپوس اوکړو او ورته مې اووئیل.چه ماتاته د وړاندې نه تاته تنبیه درکړې وه.بیا مې ترې تپوس اوکړو.چه آیا نبی ﷺ تاسو ټولو ته طلاق درکړې دې.هغې اووئیل.معلومه نه ده.نبی ﷺ په بالاخانه کښې تشریف فرما دې.زه دهغه ځانې نه راووتم.منبرطرف ته لاړم.څه صحابه

---

[1] طبقات ابن سعد(۱۸۹/۸) ذكرالمرأتين التين تظاهرتا على رسول الله ﷺ وتخييره نساءه)_

كرام رضي الله عنهم ناست وو .اوژړل ئې .هغوى سره مې څه وخت تيركړل.اوبيا بالاخانې طرف لاړم. هلته رباح نومې دنبى غلام ناست وو .ماهغه ته اوونيل.ته زما دپاره اجازت اوغواړه.زه نبى ﷺ سره ملاويدل غواړم.هغه اجازت اوغوښتلو.خونبى ﷺ سكوت اختياركړو.دغه شان په وقفه وقفه څو څو ځله داجازت غوښتلو نه پس اجازت ملاؤ شو.

حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى.چه زه داخل شوم.اوسلام مې اوكړو.تپوس مې اوكړو.چه تاسو ازواج مطهراتو ته طلاق وركړې دې؟ نبى ﷺ زما طرف ته اوكتل.اووې فرمائيل.نه.ما په زوره باندې الله اكبراوونيل.

حضرت عمر رضي الله عنه دلته د تعجب په طور په تيزه باندې الله اكبر اوونيل.چه خلقو د خبرې نه څه خبره جوړه كړې ده.خبره ئې خوره كړې ده.هم دا دامام بخارى رحمه الله رانې ده.څكه چه دوى په كتاب الادب كښې ((باب التكبير والتسبيح عندالتعجب)) قائم كړې دې.اودهغې لاندې ئې دحضرت عمر رضي الله عنه ددې روايت حواله پيش كړې ده.(١)

بعضې حضرات فرمائى.چه دوى د شكريه په طور دا الفاظ اوونيل.چه نبى ﷺ طلاق نه دې وركړې.ښكاره ده.كه چرته نبى ﷺ طلاق وركړې وو.نو د نورو ازواج مطهراتوسره به د حضرت عمر رضي الله عنه لوربه هم طلاق وه.

حضرت عمر رضي الله عنه ددې نه پس د نبى ﷺ دغم سپكولودپاره اود كوم د ناخوښه حالت چه پيدا شوې وو.دهغې د لرې كولودپاره نبى ﷺ سره څه داسې خبرې وكړې.چه نبى ﷺ مسكې شو.

په دې موقع باندې نبى ﷺ دخپلو ښيانونه پوره يوه مياشت معتزل اوسيدلې وو.يوكم ديرش ورځې پس كله چه مياشت پوره شوه.نو نبى ﷺ امهات المومنين سره ملاؤ شو.(٢)

## ٢٨=بَابُ الْغَضَبِ فِي الْمَوْعِظَةِ وَالتَّعْلِيمِ إِذَا رَأَى مَا يَكْرَهُ

**دمخكنى باب سره مناسبت:** په سابقه باب كښې د ((تناوب فى العلم)) ذكر وو.كوم چه د متعلمينو دصفات څنې وو.په دې باب كښې هم د متعلم د نفعې د بعضې صفاتو او احوالو ذكردې. چه معلم كله په متعلم كښې څه ناخوښه خبره محسوس كړى.نو دهغې اصلاح دې كوى.په دې طريقه په دواړو بابونوكښې مناسبت واضح كيږى.(٣)

---

(١)صحيح البخارى(٩١٨/٢) رقم الحديث (٦٢١٨)_

(٢) د روايت امام بخارى رحمه الله په خپل صحيح كښې (٣٣٤/١و ٣٣٥) كتاب المظالم والغصب باب الغرفة والعلية المشرفة وغيرالمشرفة فى السطوع وغيرها رقم ٢٤٦٨) و(٧٢٩/٢و ٧٣٠) كتاب التفسير سورة التحريم باب تبتغى مرضات أزواجك رقم ٤٩١٣ (٧٨٠/٢و ٧٨٢) كتاب النكاح باب موعظة الرجل إبنته لحال زوجها رقم ٥١٩١) و(٨٦٨/٢و ٨٦٩) كتاب اللباس باب ما كان النبى ﷺ يتجوز من اللباس والبسط رقم ٥٨٤٣) لاندې په تفصيل سره نقل كړې دې.دحديث پوره تشريح د باب په شروع كښې تيره شوې ده)_

(٣)عمدة القارى(١٠٥/٢)_

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي چه چونکه په احاديثوکښې منصوص دي چه نبي ﷺ به د تعليم او وعظ کښې نرمي او رفق خوښول کله چه يو اعرابي په جمات کښې متيازې اوکړې نو نبي ﷺ فرمائيي وو ((إنما بعثتم ميسرين ولم تبعثوا معسرين))[1]
دغه شان نبي ﷺ چه کله حضرت ابوموسى اشعرى او حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه يمن ته ليږل نوورته ئې فرمائيلي وو ((يسرا ولا تعسرا وبشرا ولا تنفرا))[2]
دغه شان نبي ﷺ فرمائيلي دي ((يسروا ولا تعسروا وبشروا ولا تنفروا))[3]
دغه شان حضرت معاويه بن الحكم سلمي رحمه الله فرمائي چه ((فلما صلى رسول الله ﷺ فبأبي هو وأمي ما رأيت معلماً قبله ولا بعده أحسن تعليماً منه فوالله ما كهرني ولا ضربني ولا شتمني...))[4]
دامام بخاري رحمه الله مقصد دا دې چه ددې نصوصو په کتلوسره دې دا نشي ګنړلې چه دغصې ګنجائش نشته. بلکه په بعضې ځايونوکښې غضب اوغصه يواځې دا نه جائز ده بلکه مستحسن ده.[5]
دا شدت دهغه رفق اوتيسيرمنافي نه دې. بلکه بعضې وخت د نارضئ اظهارمفيد وي. طالب علم په نيغه لاره شي. د آئنده دپاره احتياط شروع کړي.
ديرشارحين رحمهم الله لکه ابن المنير، علامه برماوى، اوعلامه عيني رحمهم الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله په دې باب کښې په وعظ تعليم اوقضاء کښې فرق بيانول غواړي. اودا ښائي. چه په وعظ اونصيحت کښې د غصې اظهارمقصود وي. چه په خلقوکښې بيدارى پيدا شي اوپه قضا کښې د غضب اجازت نشته.[6] ځکه چه نبي ﷺ فرمائيلي دي. ((لا يقضين حكم بين اثنين وهو غضبان))[7]
علامه بدرالدين دماميني رحمه الله دلته دا اعتراض کړې دې چه په وعظ کښې خو د غضب اظهارصحيح دې خوپه تعليم کښې دا مضردې. ځکه چه په دې سره قوت فکريه منتشر شي. طالب علم اوويريږي. هوش ئې په ځائې نه وي. اوعقل ئې صحيح کار نه کوي. نوځه چه د تعليم مقصددې يعنى چه طالب علم ته علم حاصل شي. د غضب په وجه هغه مقصد فوت کيږي.[8]

---

[1])صحيح البخارى(١١\٣٥) كتاب الوضوء باب صب الماء على البول فى المسجدرقم ٢٢٠) و(١٢\٩٠٤و ٩٠٥) كتاب الأدب باب قول النبى ﷺ يسروا ولا تعسروا رقم ٦١٢٨)_
[2])صحيح البخارى(١١\٤٢٦) كاب الجهاد والسير باب ما يكره من التنازع والإختلاف فى الحرب وعقوبة من عصى إمامه رقم ٣٠٣٨)_
[3])صحيح البخارى كتاب العلم باب ماكان النبى ﷺ يتخولهم بالموعظة والعلم كى لا ينفروا رقم ٦٩)_
[4])صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة باب تحريم الكلام فى الصلاة ونسخ ما كان من إباحته رقم ١١٩٩)
[5])الأبواب والتراجم(ص.٥٢)_
[6])ارشاد السارى(١١\١٨٨و ١٨٩)_
[7])صحيح البخارى (١٢\١٠٦٠) كتاب الأحكام باب هل يقضى الحاكم أو يفتى وهو غضبان رقم ٧١٥٨)_
[8])ارشاد السارى(١١\١٨٩)_

ددې جواب دا دې چه اول خو دا قاعده كليه نه ده.چه دهرماشوم وار خطا كيږي.اوبيا چه په چا باندې څه اثرپريوځي اوڅوك چه د استاذ د خفګان نه زيات ويريږي دهغه قوت فكريه اګرچه په دغه وخت كښې كار نه كوي. خو دده دپاره په آئنده زمانه كښې غصه فائده منده وي.هغه به دا سوچ كوي كه آئنده دپاره كه بې توجه اوبې احتياطي اختيار كړې شي.نو د استاذ سزا به راته ملاويږي.اودهغه خفګان به برداشت كولې شي.نوهغه به د اول نه احتياط كول شروع كړي.

امام بخاري رحمه الله دا نه دي فرمائيلي.چه په هره موقع باندې د غصې اظهار كول پكار دي بلكه كله چه د غضب صحيح موقع وي.نوپه هغه موقع باندې دهغې اظهار كولې شي.

تنبيه دلته اګرچه شارحينو رحمهم الله د قضاء مسئله ذكركړې ده.خوحقيقت دا دې چه دامام بخاري رحمه الله دلته په قضاء اوتعليم كښې فرق كول په ظاهره مقصود نه دې.دلته خو هغوي صرف دا خودل غواړي.چه معلم او واعظ د ضرورت په وخت دغضب اظهار كولې شي.

پاتې شوه د قضاء مسئله نودا به په كتاب الاحكام كښې راشي.هلته امام بخاري رحمه الله مستقل طورباندې باب قائم كړې دې.«هل يقضى الحاكم أو يفتى وهو غضبان» (١)بيا ئې په دې معنى كښې دا حديث نقل كړې دې.كوم چه اوس وړاندې تيرشو.

پاتې شوه دا مسئله چه قاضي د غصې په حالت كښې د فيصلې كولونه ولې منع كړې شوې دې؟

نوددې جواب دا دې.چه دانسان قوت فكريه مفلوج شي.دسړي قوت ادراك صحيح كار نه كوي.كه هم په دغه حال كښې فيصله اوكړې شي.نوكيدې شي.چه د مسئلې صحيح جواب اودمقدمې صحيح فيصله اونشي.ددې وجې منع اوكړې شوه.

[٩٠]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ قَالَ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ ابْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا أَكَادُ أُدْرِكُ الصَّلَاةَ مِمَّا يُطَوِّلُ بِنَا فُلَانٌ فَمَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَوْعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنْ يَوْمِئِذٍ فَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ مُنَفِّرُونَ فَمَنْ صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيهِمْ الْمَرِيضَ وَالضَّعِيفَ وَذَا الْحَاجَةِ

## رجال الحديث

① محمدبن كثير: دا محمدبن كثيرعبدي بصري دې.ابوعبدالله ئې كنيت دې.سليمان بن كثير د دوي ورور دې.هغه دده نه پنځوس كاله مشر وو.(٢)

معلومه دې وي.چه دمحمدبن كثيرپه نوم باندې يوبل راوي هم دې.هغه صنعاني دې. دهغوي په صحيحينوكښې څه روايت نشته.البته په سنن نسائي. ابوداود اوترمذي كښې

---

(١)صحيح البخاري (١٢\١٠٦٠)_

(٢)تهذيب الكمال(٢٦\٣٣٤و ٣٣٥)_

شته (۱) اومحمدبن كثيرعبدى رحمه الله روايتونه نه صرف په صحيحينو كښې دى.بلكه ددې نه علاوه په سنن اربعه كښې هم دى.(۲)

دوى د ابراهيم بن نافع مكى.اسرائيل بن يونس.اسماعيل بن عياش. جعفربن سليمان ضبعى.سفيان ثورى.دخپل ورور سليمان بن كثير.شعبه بن الحجاج. عمروبن مرزوق واشحى.همام بن يحيى اوابوعوانه رحمهم الله نه روايت كوى.

اوددوى نه روايت كونكوكښې امام بخارى.ابوداود.مسلم بن ابراهيم بن عبدالله كجى.امام دارمى.عبدبن حميد.على بن المدينې.امام محمد بن يحيى ذهلى.ابوحاتم رازى. اوابوزرعه رازى. رحمهم الله وغيره حضرات دى.(۳)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.«صدوق»(۴)

ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى. اوليكلى ئې دى. «وكان تقياً فاضلاً..»(۵)

امام احمد رحمه الله فرمائى.«ثقة»(۶)

سليمان بن قاسم رحمه الله فرمائى.«لابأس به»(۷)

البته امام يحى بن معين رحمه الله فرمائى.«لاتكتبوا عنه لم يكن بالثقة»(۸)

دغه شان دوى فرمائى.«لم يكن يتساهل أن يكتب عنه»(۹)

حافظ ذهبى رحمه الله په «تهذيب» كښې ليكى دى.چه دامام يحيى بن معين رحمه الله اولنې قول چه «لا تكتبوا عنه لم يكن بالثقة» د دوى په باره كښې نه دې.بلكه د يوبل راوى محمدبن كثير فهرى (۱۰) په باره كښې دې.(۱۱) البته دويم قول چه «لم يستأهل أن يكتب عنه» د دوى نه ثابت دې.خودوى فرمائى. «الرجل ممن طلب القنطرة وماعلمناله شيأ منكرا يلزق به» (۱۲)

---

۱)تهذيب الكمال(۳۲۹\۲۶)_
۲)تهذيب الكمال(۳۲۹\۲۶)_
۳)دشيوخ اوتلامذهٔ دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(۳۳۶\۲۶)_
۴)تهذيب الكمال(۳۳۶\۲۶)_
۵)الثقات لابن حبان (۱۹\الثقات لابن حبان (۷۷\۹و ۷۸۰)-
۶)تهذيب الكمال(۴۱۸\۹)_
۷)المصدرالسابق)_
۸)تهذيب الكمال(۳۳۶\۲۶) وميزان الإعتدال(۱۸\۴) رقم ۸۰۹۹)_
۹)سيرأعلام النبلاء (۳۸۴\۱۰)_
۱۰)انظر ترجمته وقول ابن معين فيه في ميزان الإعتدال(۲۰\۴) رقم ۸۱۰۱)_
۱۱)حاشية السبط ابن العجمى على الكاشف (۲۱۳\۲) رقم ۵۱۲۷)_
۱۲)سيرأعلام النبلاء(۳۸۴\۱۰)_

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ثقة لم يصب من ضعفه»[۱]
په ۲۲۳ هـ کښې دلس کم سلو کالو په عمر کښې وفات شوې وو.[۲] رحمه الله تعالیٰ رحمة واسعة
④ سفيان: دا اميرالمومنين فى الحديث امام سفيان بن سعيدثورى رحمه الله دې.ددوی حالات په کتاب الايمان کښې د «باب علامة المنافق» لاندې تيرشوی دی.[۳]
③ ابن ابى خالد: دا اسماعيل بن ابى خالد احمسى بجلى كوفى رحمه الله دې.ددوی مختصر حالات په کتاب الايمان کښې د «باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوی دی.[۴]
④ قيس بن ابى حازم: دا مخضرم تابعى قيس بن ابى حازم احمسى بجلى كوفى دې.ددوی حالات هم په کتاب الايمان کښې د «باب قول النبى ﷺ الدين النصيحة لله ولرسوله ولأئمة المسلمين وعامتهم» لاندې تيرشوی دی.[۵]
⑤ حضرت ابومسعودانصاري رضي الله عنه: دا مشهور صحابى حضرت ابومسعود بدرى انصارى رضي الله عنه دې.ددوی نوم عقبه بن عمرو دې.ددوی حالات هم په کتاب الايمان کښې د «باب ما جاء أن الأعمال بالنية والحسبة ولكل إمرئ ما نوى» لاندې تيرشوی دی.[۶]

**قوله: قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَارَسُولَ اللّٰهِ لَا أَكَادُ أُدْرِكُ الصَّلَاةَ مِمَّا يُطَوِّلُ بِنَا فُلَانٌ:** حضرت ابومسعودانصارى رضي الله عنه فرمائى.يوكس عرض اوكړو.يا رسول الله ماته د جماعت مونځ ادا کول ګران دی.ځکه چه فلانې کس مونږ ته اوږد مونځ کوی.

**دا کس څوک وو؟** حافظ ابن حجر رحمه الله خوپه دې مقام کښې ددوی نوم حزم بن ابى بن كعب رضي الله عنه ذکرکړې دې.[۷] خو وړاندې چه کله کتاب الاذان ته رسيدلې دې.نوددې نوم ترديد ئې کړې دې.اودا ئې وئيلی دی.چه ددې کس نوم معلوم نه نشو.[۸]
دغه شان د «فلان» يعنى امام په باره کښې بعضې حضراتو دحضرت معاذبن جبل رضي الله عنه نوم

---

[۱] تقريب التهذيب (ص.٥٠٤) رقم ٢٦٥٢)_
[۲] تهذيب الكمال(٣٣٦\٢٦)_
[۳] كشف البارى(٢٧٨\٢)_
[۴] كشف البارى(٦٧٩\١)_
[۵] كشف البارى(٧٦١\٢)_
[۶] كشف البارى(٧٤٨\٢)_
[۷] فتح البارى(١٨٦\١)_
[۸] فتح البارى(١٩٨\٢) كتاب الأذان باب تخفيف الإمام فى القيام وإتمام الركوع والسجود)_

اخستې دې حالانکه صحیح دا ده.چه دلته امام ابی بن کعب رضی الله عنه وو.(١) دحضرت معاذ رضی الله عنه واقعه د ماسخوتن دمانځه په باره کښې ده.(٢) حالانکه دحدیث باب واقعه د صبا د وخت ده.(٣) دغه شان د حضرت معاذ رضی الله عنه واقعه د بنوسلمه دجمات ده.اودحضرت ابی رضی الله عنه واقعه د مسجد قبا ده.(٤)

دلته شکایت کونکې وانی چه «لا أكاد أدرك الصلاة مما يطول بنا فلان» چه د فلانی سړی د تطویل په وجه زه مونځ نشم کولې.

په دې باندې اشکال دې چه تطویل خو دادراك سبب دې.د فوت کیدو سبب خو نه دې

قاضی عیاض رحمه الله فرمائی.چه دلته تصحیف شوې دې.په اصل کښې «لأكاد أترك الصلاة» وو چا د «لأكاد» د لام تاکید نه پس د«أكاد» همزه د متکلم په الف سره بدل کړې دې.اوددې نه پس ئې د «أكاد» همزه زیاتی کړې ده.اود «أترك» نه ئې «أدرك»جوړ کړې دې.د «لأكاد أترك الصلاة» مطلب به دا شی.چه دفلانی د تطویل په وجه ما دجماعت مونځ پریخودل شروع کړو.(٥) د دې تائید د بل طریق د الفاظو نه کیږی.«إنى لأتأخر عن صلاة الغداة من أجل فلان مما يطيل بنا»(٦) حافظ رحمه الله فرمائی.دا معنی ښه ده.خوروایت ددې تائید نه کوی.(٧)

ابوالزناد بن سراج وانی.چه ددې مطلب دا دې.چه د فلانی د تطویل په وجه زه دهغه سره مونځ نشم کولې.د طول قیام د وجې ستړې کیږم.که هغه رکوع ته ځی.نو زه د ستړی والی دوجې رکوع ته نشی تلې.دغه شان کله چه سجدې ته ځی.نوزه د ستړی والی د وجې سجدې ته نشم تلې.لکه چه «لا أكاد أدرك الصلاة» معنی ده.«لا أكاد أتم الصلاة مع الإمام» (٨)دا معنی هم صحیح ده.خوچونکه په بل طریق د «إنى لأتأخر عن الصلاة» الفاظ راغلی دی.(٩) دهغې په رڼا کښې دحدیث باب «لا أكاد أدرك الصلاة» جملې مطلب به دا وی.چه «لا أقرب من الصلاة فى الجماعة بل أتأخر عنها أحياناً من أجل التطويل»(١٠)

---

(١)المصدر السابق)_
(٢)المصدر السابق)_
(٣)صحيح البخارى (١\٩٧) كتاب الأذان باب تخفيف الإمام فى القيام ... رقم (٧٠٢)_
(٤)فتح البارى(٢\١٩٨) كتب الأذان باب تخفيف الإمام فى القيام..)_
(٥)فتح البارى(١\١٨٦)_
(٦)صحيح البخارى (١\٩٧) كتاب الأذان باب تخفيف الإمام .. رقم (٧٠٢)_
(٧)فتح البارى(١\١٨٦)_
(٨)فتح البارى(١\١٨٦)_
(٩)كما سبق تخريجه آنفاً)_
(١٠)فتح البارى(١\١٨٦)-

**قوله** فَمَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَوْعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنْ يَوْمِئِذٍ: ما نبى ﷺ په هيڅ وعظ كښې هم ددغه ورځ نه زيات غصه نه وو ليدلې.

چونكه نبى ﷺ وړاندې د تطويل صلاة نه منع كړې وه اوخودلې ئې وو.چه په دې طريقه به خلق متنفر شى.ددې باوجود شكايت كيږى.نوددې وجې نبى ﷺ سخت خفه شو.(١)

ددې نه د ترجمة الباب اثبات كيږى.كوم چه ښكاره دې.

**قوله** فَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ مُنَفِّرُونَ فَمَنْ صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ: نبى ﷺ اوفرمائيل.اې خلقوتاسونفرت پيداكوئ.كوم كس چه خلقو ته مونځ وركوى.نوتخفيف دې كوى.

نبى ﷺ دعاموخلقو د فائدې دپاره دغه شان چه مخاطب مخصوص ملامته نشى.دخاص خطاب په ځائې به ئې عام خطاب كولو.(٢) نودلته هم نبى ﷺ عام خطاب اوكړو اوتنبيه ئې وركړه.چه په داسې تطويل سره به خلق متنفرشى.نوپكارده.چه مونځ مختصر وى.

دتخفيف مطلب دا دې.چه په كوموكومومونځونوكښې كوم كوم سورتونه مسنون وى.هغه اووئيلې شى.مسنون سورتونه په منهى عنه تطويل كښې داخل نه دى.(٣)

**قوله** فَإِنَّ فِيهِمُ الْمَرِيضَ وَالضَّعِيفَ وَذَا الْحَاجَةِ: ځكه چه په دوى كښې مريض كمزورې او حاجتمند خلق وى.

المريض.. اوددې معطوفات «إن» دپاره اسم دې.ځكه منصوب دى.

په يوروايت كښې د «ذالحاجة» په ځائې «ذوالحاجة» دې.په دې صورت كښې به دا يا خو مستقله جمله استينافيه اوګرځولې شى.اويا به دا د «المريض» او «الضعيف» په محل باندې عطف كولې شى.(٤) والله اعلم.

[٩٠] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حدثنا أبوعامر قال حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ الْمَدِينِيُّ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ اللُّقَطَةِ فَقَالَ اعرف وِكَاءَهَا أَوْ قَالَ وِعَاءَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اسْتَمْتِعْ بِهَا فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ قَالَ فَضَالَّةُ الْإِبِلِ فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ أَوْ قَالَ احْمَرَّ وَجْهُهُ فَقَالَ وَمَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاؤُهَا وَحِذَاؤُهَا تَرِدُ الْمَاءَ وَتَرْعَى الشَّجَرَ فَذَرْهَا حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا قَالَ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ [٢٢٤٣، ٢٢٩٥، ٢٢٩٧، ٢٣٠٤، ٢٣٠٦، ٤٩٨٦، ٥٧٦١]

---

١) المصدر السابق)_

٢) عمدة القارى (٢/١٠٦)_

٣) فضل البارى (٢/٩٣)_

٤) فتح البارى (١/١٨٦)_

## رجال الحديث

① عبدالله بن محمد: دا ابوجعفرعبدالله بن محمد مسندی جعفی بخاری رحمه الله دي. ددوی حالات په کتاب الایمان کښې د «باب أمورالإیمان» لاندې تیرشوی دی.[1]

② ابوعامر:دا ابوعامرعبدالملك بن عمروبن قیس عقدی بصری رحمه الله دې.ددوی مختصر حالات هم دکتاب الایمان په ذکرشوی باب کښې تیرشوی دی.[2]

③ سلیمان بن بلال مدینی:دا ابومحمد یا ابوایوب سلیمان بن بن بلال قریشی تیمی مدنی رحمه الله دی. ددوی مختصرحالات په کتاب الایمان کښې د «باب رفع العلم وظهورالجهل» لاندې تیرشوی دی.[3]

④ ربیعه:دا امام ربیعه بن ابی عبدالرحمن المعروف به «ربیعة الرای» رحمه الله دې د دوی حالات هم په کتاب العلم کښې د «باب رفع العلم وظهورالجهل» لاندې تیرشوی دی.

⑤ یزیدمولی المنبعث: دا یزیدمولی المنبعث.((بضم المیم وسکون النون وفتح الموحدة وکسر المهملة بعدها مثلثة)) ([4]) مدنی رحمه الله دې.

دوی دحضرت ابوهریره او حضرت زیدبن خالد جهنی رضی الله عنهما نه روایت کوی.
ددوی نه روایت کونکوکښې د دوی خوئي عبدالله بن یزید نه علاوه بسربن سعید.ربیعه بن ابی عبدالرحمن .عبدالملك بن عیسی ثقفی اویحیی بن سعیدانصاری رحمهم الله دی.[5]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«صدوق»[6]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«ثقة»[7]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی.[8]

ددوی روایات په اصول سته کښې موجود دی.[9] رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

---

[1])کشف الباری(۶۵۷\۱)_
[2])کشف الباری(۶۵۸\۱)_
[3])المصدرالسابق)_
[4])تهذیب الکمال(۶۰۶) رقم ۷۷۹۸)_
[5])داستاذانواوشاګردانودپاره اوګورئ مخکنئ حواله)_
[6]) تهذیب التهذیب (ص.۶۰۶) رقم ۷۷۹۸۰)_
[7])الکاشف (۳۹۲\۲) رقم ۶۳۷۳)
[8])الثقات لابن حبان(۵۳۳\۵)_
[9])تهذیب الکمال (۲۹۱\۳۲)_

⑥ زيدبن خالد جهنی رضی الله عنه: دا مشهورصحابی زیدبن خالد جهنی رضی الله عنه دی.ددوی په کنیت کښې اختلاف دې ابوزرعه.ابوعبدالرحمن اوابوطلحه کنیتونه منقول دی.[1]
په غزوه حدیبیه کښې شریك شوی وو.دفتح مکې په موقع د جهینیه قبیلې بیرغ هم ددوی په لاس کښې وو [2]
دوی دنبی صلی الله علیه وسلم نه علاوه دحضرت عثمان.حضرت ابوطلحه انصاری. او حضرت ام المومنین عائشې رضی الله عنها نه روایت کوی.
ددوی نه روایت کونکوکښې بشربن سعید.خالدبن زیدبن خالد جهنی. خلادبن السائب. سعیدبن المسیب.سعیدبن یسار.صالح مولی التوامة .یزید مولی المنبعث.عبدالله بن یزید مولی المنبعث.عطاء بن ابی رباح.ابوسالم جیشانی.اوابوعمره مولی زیدبن خالد جهنی رحمهم الله وغیره حضرات دی.[3]
ددوی نه تقریباً یواتیا احادیث مروی دی.په دې کښې پنخه احادیث متفق علیه دی اوپه درې حدیثونوکښې اما مسلم متفرد دې.[4]
ددوی وفات کوم ځائې کښې شوې دې.په دې کښې مختلف اقوال دی مدینه منوره کښې یا په مصرکښې یا په کوفه کښې.دا درې اقوال دی.[5]
دغه شان نې د وفات په کال کښې هم متعدد اقوال دی.٦٨ھ یا ٧٨ ھ کښې د پنځه اتیا کالو په عمر کښې وفات شوی وو.[6] رضی الله عنه وارضاه.

**قوله** أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ اللُّقَطَةِ: دنبی کریم صلی الله علیه وسلم نه یوکس دلقطة په باره کښې تپوس اوکړو.

**په حدیث باب کښې د ،،رجل،، نه څوک مراد دې؟** ابن بشکوال اود دوی بعضې متبعینو د ،،رجل،، نه مراد حضرت بلال رضی الله عنه اخستې دې.اودا نې ابوداود طرف ته منسوب کړې دې.[7]
خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ماته دابوداود په هیڅ یوه نسخه کښې دا تصریح نه ده ملاؤ شوې.هسې هم په دې مقام کښې دحضرت بلال رضی الله عنه کیدل بعید دی.ځکه چه په یو روایت کښې د «جاء أعرابي..» الفاظ راغلی دی.[8] ظاهره ده.چه حضرت بلال رضی الله عنه په اعرابی سره موصوف کول بعیده خبره ده.[9]

---

[1] الإستیعاب بهامش الإصابة (٥٥٨/١ و ٥٥٩) والإصابة (٥٦٥/١)_
[2] المصادر السابقة)_
[3] داستاذانواوشاګردانودپاره اوګورئ تهذیب الکمال(٦٣/١٠ و ٦٤)_
[4] خلاصة الخزرجی(١٢٨)_
[5] الإستیعاب بهامش الإصابة (٥٥٩/١)_
[6] تهذیب الکمال (٦٤/١٠) وتقریب التهذیب (٢٢٣) رقم ٢١٣٣)_
[7] فتح الباری(٨٠/٥) کتاب اللقطة باب ضالة الابل رقم ٢٤٢٧) رقم ٢٤٢٧)_
[8] صحیح البخاری (٣٢٧/١) کتاب اللقطة باب ضالة الابل رقم ٢٤٢٧)_
[9] فتح الباری(٨٠/٥)_

بعضې حضرات فرمائي چه دا کس هم پخپله راوی یعنی حضرت زیدبن خالد جهنی رضی الله عنه دې.(١) ددې قول مستند دا دې چه د طبرانی په یو روایت کښې کوم چه هم د ربیعه په واسطه سره مروی دې دهغې الفاظ دا دی.«أنه سأل النبی صلی الله علیه وسلم..»(٢)
خودا دلیل زیاته فائده نه ورکوی ځکه چه ددې روایت په یوطریق کښې کوم چه امام احمد رحمه الله نقل کړې دې.«أنه سأل النبی صلی الله علیه وسلم أو أن رجلاً سأل..» الفاظ دی.(٣) یعنی په شك سره مروی دې.
دغه شان په یو روایت کښې د«أتی رجل رسول الله صلی الله علیه وسلم وأنا معه..» الفاظ دی(٤) ددې نه معلومه شوه چه سائل حضرت زیدبن خالد جهنی رضی الله عنه نه دې بیا په دې کښې په دې اعتبار سره هم بعد دې چه روسته په یو روایت کښې «جاء أعرابی» الفاظ راغلی دی ښکاره ده چه دخپل خان نه په اعرابی سره تعبیرکول ډیره بعیده خبره ده.
په یوحدیث کښې د لقطۀ سوال د حضرت ابوثعلبه خشنی رضی الله عنه نه (٥)اوپه یوحدیث کښې هم دغه شان سوال د حضرت عمیر رضی الله عنه نه (٦)اوپه دریم حدیث کښې دحضرت جارود عبدی رضی الله عنه نه هم منقول دې.(٧) په دې کښې اګرچه دا احتمال شته.چه په حدیث باب کښې د ..رجل.. مصداق دا حضرات وی. خو ددې څه قرینه موجودنه ده.
حافظ رحمه الله فرمائي.چه سائل هم حضرت سویدالجهنی رضی الله عنه دې.ځکه چه حمیدی. بغوی. ابن السکن.باروډی.اوطبرانی ټولوحضراتو د «محمدبن معن الغفاری عن ربیعة عن عقبة بن سوید عن أبیه» په طریق سره نقل کړې دې.«قال سألت رسول الله صلی الله علیه وسلم عن اللقطة» (٨)
امام ابوداود رحمه الله هم ددې روایت یوه حصه تعلیقاً نقل کړې ده.خوددې بعینه الفاظ نې نه دی نقل کړی.(٩)
حاظ فرمائي.چه چونکه حضرت سویدجهنی رضی الله عنه دحضرت زیدبن خالد جهنی رضی الله عنه د قبیلې سره تعلق ساتی.نوغالب ګمان دا دې چه دحدیث باب رجل مبهم هم دا وی.(١٠) والله اعلم.

---

(١)المصدرالسابق)_
(٢)المصدرالسابق)_
(٣)مسندأحمد(١١٥\٤)_
(٤)صحیح مسلم کتاب اللقطة باب معرفة العفاص والوکاء وحکم ضالة الغنم والإبل رقم ٤٥٠٠) و(٤٥٠١)_
(٥)مجمع الزوائد(١٦٨\٤) کتاب البیوع باب اللقطة وفتح الباری (٨١\٥)_
(٦)رواه الإسماعیلی فی الصحابة کذا فی فتح الباری (٨١\٥)_
(٧)مجمع الزوائد(١٦٧\٤) وفتح الباری (٨١\٥)_
(٨)فتح الباری (٨٠\٥ و٨١) ومجمع الزوائد(١٦٨\٤)_
(٩)سنن أبی داود کتاب اللقطة باب التعریف باللقطة رقم ١٧٠٨)_
(١٠)فتح الباری(٨١\٥)_

**دلقطه لغوی تعریف** ..لقطه. غورځیدلې څیزته ونیلی شی.چه راوچت کړې شی (١)
امام خلیل بن احمد اولیث رحمهما الله فرمائی چه ..لقطه.. «بضم اللام وتسکین القاف» غورځیدلی څیزته وائی او ..لقطه.. «بضم اللام وفتح القاف» راوچتونکی ته وائی (٢)
خوامام ازهری رحمه الله فرمائی چه خلیل کوم تحقیق کړې دې د تحقیق قیاس تقاضا هم دا ده.څکه چه د «فعلة» وزن په عربئ ژبه کښې بفتح العین وی.نود فاعل په معنی کښې وی لکه «ضحکة» کثیرالضحك ته وائی. او «صرعة» کثیرالصرع (زیات راپرځونکی) ته وائی دغه شان «همزة» او «لمزة» دی.اوکه هم دا وزن بسکون العین وی.نوبیه دې کښې د مفعول معنی پرته وی.لکه «ضحکة» چا پورې چه خندا شوې وی.«صرعة» څوك چه راپرځولې شوې وی.البته په دې لفظ یعنی لقطه کښې چه د اهل عربونه څه اوریدلې شوی دی هغه خلاف القیاس دی.یعنی «لقطه» بفتح القاف شئ ملقوط په معنی کښې دی (٣). هم دا وجه ده چه ابن بری رحمه الله فرمائی.چه دمفعول معنی ورکوی.نوبیه دې صورت کښې په عین کلمه باندې فتحه نادره ده.(٤)

دغه شان علامه زمخشری وائی.چه «لقطة» بفتح القاف ده.کوم چه عوام په سکون القاف سره وائی.(٥)
لکه چه دوی دا خودل غواړی.چه په سکون القاف سره وئیل غلط دی.دا دعوام د غلطوخنی ده.والله اعلم.
**دالتقاط لقطه حکم**. په دې کښې اختلاف دې.چه التقاط د لقطه غوره دې.اوکه پریخودل ئې؟ احناف رحمهم الله فرمائی.که د لقطة د ضائع کیدو ویره وی.نومالك ته د واپس کولوبیه نیت د دې التقاط مندوب اومستحب دې. اوکه ددې د ضائع کیدو څه ویره نه وی.نوبیه داسې صورت کښې داحنافو رحمهم الله په نیزددې التقاط مباح دې.اوکه التقاط دمالك په ځائې دخپل ځان دپاره وی.نودا حرام دی.(٦)
دامام شافعی رحمه الله په نیزکه د ضیاع ویره وی.اوبیه خپل ځان باندې ئې اطمینان وی.نود یوقول مطابق پرې التقاط واجب دې.اودیوقول مطابق التقاط مستحب دې (٧)

---

(١)تاج العروس (٥\٢١٦)_
(٢)فتح الباری(٥\٧٨) فاتحة کتاب اللقطة وتاج العروس (٥\٢١٦و ٢١٧)_
(٣)المصادر السابقة)-
(٤)فتح الباری(٥\٧٨)_
(٥)الفائق للزمخشری (١\٣٩١) ضمن ..مادة. . خلی.. تحت شرح قوله ﷺ فی مکة ((لایختلی خلاهاولا تحل لقطتها إلا لمنشد)_
(٦)بدائع الصنائع (٦\٢٠٠) کتاب اللقطة فصل: وأما بیان أحوالها..)_
(٧)المغنی لابن قدامة (٦\٣) کتاب اللقطة)_

دامام مالك په نيزكه دغه څيز قيمتي وي نوالتقاط غوره دې.[١]

دامام احمد رحمه الله په نيزترك التقاط مطلقاً غوره او افضل دې.(١)

**قوله** فَقَالَ اعْرِفْ وِكَاءَهَا أَوْقَالَ وِعَاءَهَا وَعِفَاصَهَا: نبي ﷺ اوفرمائيل ددې سربند يا ئې اوفرمائيل ددې لوښې اوددې تيلۍ اوپيژنه.

«وكاء» تيلۍ چه په كوم څيزباندې تړلی شي.هغه ته «وكاء» وئيلی شي .او «وعاء» لوښی اوظرف ته وئيلی شي. «عفاص» تيلۍ اوظرف ته هم وئيلی شي.اود بوتل د بندولوكاك ته هم «عفاص» وئيلی شي.(٢)

**قوله** ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً: بيا تريوكاله پورې ددې اعلان كوه.

مدت تعريف څومره پكار ده.دامام مالك،امام شافعي،امام احمد اوامام ابوحنيفه او جمهورو عالمانو رحمهم الله په نيز مدت تعريف يوكال پكار دې.(٣)

امام محمد رحمه الله په «مبسوط» كښې دقليل اوكثيرد فرق نه بغيرهم داحنافو رحمهم الله هم دا مذهب نقل كړې دې.اوهم دا ظاهر روايت دې.(٤)

امام قدوري رحمه الله داحنافو رحمهم الله يو روايت نقل كړې دې.په هغې كښې په قليل او كثيركښې فرق شوې دې.نوكه لقطه د لسو درهمو نه كمه وي.نو څو ورځې پورې.اوكه د لسو روپو يا ددې نه د زيات قيمت وي.نوتريوكاله پورې به تعريف كولې شي.(٥)

علامه شمس الائمه سرخسي رحمه الله فرمائي.چه داحنافو په نيز د ..تعريف.. څه حد مقرر نه دې.كه لقطه مال قليل وي اوكه مال كثير،تر هغه وخته پورې ..تعريف.. ضروري دې.ترڅو پورې چه دا يقين ونشي .چه اوس به ئې مالك نه لټوي.(٦) صاحب د هدايه رحمه الله هم ددې روايت تصحيح كړې ده.او په دې باندې فتوى ده.(٧)

بيا د شوافعو رحمهم الله په نيز د اصح ترين مذهب مطابق په معمولي او قيمتي څيزكښې فرق شته.كه معمولي څيز وي.نو تريوكاله پورې تعريف ضروري نه دې.بلكه دومره ورځو پورې تعريف ضروري دې.چه لټونكې عام طور باندې اعراض اوكړي.اوبه قلاركيني.اوكه قيمتي څيزوي.نوپوره يوكاله پورې تعريف ضروري دې.(٨)

---

[١])المصدرالسابق)_ .

[٢])عمدة القارى(١٢\١٠٨و ١٠٩)_

[٣])المغنى لابن قدامة (٦\٤) كتاب اللقطة)-

[٤])الهداية(٤\١٣٦٨) طبعة إدارة القرآن كتاب اللقطة)_

[٥])مختصرالقدورى(ص.١٤١) كتاب اللقطة (قديمى كتب خانه كراچى)

[٦])المبسوط للسرخسى(١١\٣) كتاب اللقطة و ردالمحتار مع الدرالمختار (٣٥٠١٣) كتاب اللقطة)_

[٧])الهداية (٤\١٣٦٩) كتاب اللقطة و ردالمحتار (٣٥٠١٣) كتاب اللقطة)_

[٨])تكملة فتح المهلهم (٢\٦٠٧) كتاب اللقطة نقلاً عن مغنى المحتاج (٢\٤١٤)_

په معمولي او قيمتي څيزكښې تفريق ما به الامتياز څه دى؟ په دې باره كښې څه متعين معيار موجود نه دې بلكه د ملتقط د ګمان مطابق چه د كوم څيز په وركيدوباندې افسوس زيات نه وى.اوچه د هغې د لټولوعمل ډيرې مودې پورې نه وى.نوهغه به معمولي څيز وى.ګنى قيمتي به وى.(۱) هم دا د مالكيه وْ داكثروفقهاوْ مذهب دې.(۲)

دحضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دى.چه تر درې كالو پورې تعريف كول ضرورى دى.(۳) ځكه چه د صحيحينو په روايت كښې كوم چه د حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه مروى دې.د درې كالو تعريف منقول دې.(۴)

كوم حضرات چه ديوكاله پورې دتعريف قائل دى.هغوى په حديث باب باندې استدلال كوى.

داحنافو دمختار قول مطابق لكه څنګه چه مخكې بيان شو.دتعريف څه موده مقرر نه ده.اونه په مال قليل او كثيركښې فرق شته.

ددې رائې وجه دا ده.چه په رواياتوكښې د تعريف په سلسله كښې مختلفې مودې منقول دى.(۵) ددې نه معلوميږى.چه دا منصوص او متعين نه دى.بلكه په غالبې رائې باندې مبنى دى.يعنى ملتقط به ترهغه وخته پورې دهغه څيز تعريف كوى.ترڅو پورې چه ده ته دا اطمينان نه وى شوې.چه اوس به ئې لټونكې نه راځى.(۶)

ددې تائيد دهغه روايت نه كيږى.كوم چه امام عبدالرزاق صنعانى رحمه الله په خپل مصنف كښې نقل كړې دې.چه حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى «إذا وجدت لقطة فعرفها على باب المسجد ثلاثة أيام فإن جاء من يعترفها وإلا فشأنك بها» (۷)

---

۱)المصدرالسابق)_

۲) تكملة فتح الملهم (۲\۶۰۷) كتاب اللقطة نقلاً عن مواهب الجليل للحطاب (۶\۷۳)_

۳)المغنى (۶\۴) وفتح البارى (۵\۷۹) كتاب اللقطة باب إذا أخبره رب اللقطة بالعلامة دفع إليه)_

۴)فلقال وجدت صرة على عهد النبى صلى الله عليه وسلم فيها مائة دينارفأتيت بها النبى صلى الله عليه وسلم فقال عرفها حولاً فعرفتها حولاً ثم أتيت فقال عرفها حولاً فعرفتها حولاً ثم أتيته فقال عرفها حولاً فعرفتها حولاً ثم أتيته الرابعة فقال أعرف عدتها ووكاءها ووعاءها فإن جاء صاحبها وإلا إستمتع بها صحيح البخارى (۱\۳۲۹) كتاب اللقطة باب هل يأخذ اللقطة ولا يدعها تضيع حتى لا يأخذها من لا يستحق رقم ۲۴۳۷) وانظر صحيح مسلم كتاب اللقطة باب معرفة العفاص والوكاء وحكم ضالة الغنم والإبل رقم ۴۵۰۶و ۴۵۰۸)..

قال ابن الجوزى فى ..التحقيق.. ولا تخلوا هذه الروايات من غلط بعض الرواة بدليل أن شعبة قال فيه فسمعته يقول بعد عشر سنين عرفها عاماً واحداً أو يكون عليه السلام علم أنه لم يقع تعريفها كما ينبغى فلم يتحسب له بالتعريف الأول والله أعلم إنتهى كلامه (نصب الرأية (۳\۴۶۷) كتاب اللقطة رقم ۶۱۳۵)-

۵) په حديث باب كښې يوكال دهزاودحضرت ابى بن كعب رضي الله عنه په حديث كښې درې كاله دى.وقد سبق تخريجه آنفاً )_

۶)النظرالمبسوط للسرخسى(۱۱\۵)_

۷)المصنف لعبدلارزاق (۱۰\۱۳۶)_

بل طرف ته په مصنف عبدالرزاق کښې يوبل روايت دې.چه سفيان بن عبدالله ثقفى ته يوه تيلئ ملاوه شوه.چه په هغې کښې ډير مال وو.هغه حضرت عمر رضي الله عنه ته ورغلو.نوهغه په يو کال باندې د څلوروکالو د تعريف حکم ورکړو .اوددې نه پس ئې بيا په بيت المال کښې جمع کړل.(١)ددې نه ښکاره کيږى.چه په دې سلسله کښې څه متعينه موده مقرر نه ده.والله اعلم وعلمه اتم واحکم.

**قوله ثُمَّ اسْتَمْتِعْ بِهَا**:بيا ته ددې نه فائده اخله.

**د انتفاع باللقطه حکم** امام شافعى رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائى.که د تعريف نه پس مالك رانغلو.نودا ملتقط په خپل استعمال کښې راوستې شى.که غنى وى اوکه فقير.(٢)

امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.چه ملتقط ئې په خپل استعمال کښې په هغه وخت کښې راوستې شى.چه دې پخپله فقير وى.اوکه غنى وى.نوپه دې صورت کښې پرې تصدق لازم دې.بيا د صدقه کولونه پس که مالك راشى. نو هغه ته اختياردې.که هغه صدقه نافذوى. اوکه غواړى.نو د ملتقط نه دې ضمان واخلى.د ضمان اخستلو په صورت کښې به د صدقې اجر ملتقط طرف ته منتقل کيږى.(٣)

هم دا د سفيان ثورى او حسن بن صالح رحمهما الله مذهب دې.داامام احمد رحمه الله يو روايت هم ددې مطابق دې.(٤)

امام مالك نه د ذکرشوو دوو مذاهبوکښې دهريو مطابق يويوقول منقول دې.د مالکيانو رحمهم الله په کتابونو کښې دا ذکردى.چه د تعريف نه پس ملتقط ته درې قسمه اختيار حاصل دى.يا خودې د مالك دپاره د امانت په طور محفوظ اوساتى.يا دې صدقه کړى.يا دې خپله مالك جوړ شى.اوپه خپل استعمال کښې دې راولى.بيا چه صدقه ئې کړى.يا ئې په خپل استعمال کښې راولى.نوضمان ادا کول به پرې وى.(که مالك ئې پيدا شى.اومطالبه کوى) (٥)والله اعلم.

شوافع اوحنابله رحمهم الله د خپل مذهب دپاره په حديث باب باندې استدلال کوى.په دې کښې د تعريف نه پس نبى صلى الله عليه وسلم «ثم استمتع بها» فرمائيلى دى.

دغه شان په يو طريق کښې «فشأنك بها» راغلى دى.(٦)اوپه يو طريق کښې «وإلا فاستنفقها» راغلى دى.(٧)

---

(١)منصف عبدالرزاق (١٠\١٣٥و ١٣٦)_
(٢)المغنى لابن قدامة (٦\٧) كتاب اللقطة)_
(٣)بدائع الصناع(٦\٢٠٢)_
(٤)المغنى (٦\٧)_
(٥)تكملة فتح الملهم (١٢\٦١٠) نقلاً عن التاج والإكليل للمواق ومواهب الجليل للخطاب (٦\٧٤)_
(٦)صحيح البخارى (١\٣٢٨) كتاب اللقطة باب إذا لم يوجد صاحب اللقطة بعد سنة فهى لمن وجدها رقم ٢٤٢٩)
(٧)صحيح البخارى (١\٣٢٧) كتاب اللقطة باب ضالة الإبل (٢٤٢٧)_

ددې حضراتو استدلال د حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه په واقعه باندې دې په كومه كښې چه ذكر دى چه دوى ته يوه تيلئ ملاو شوه چه په هغې كښې سل ديناره وو.نبى ﷺ ورته د تعريف نه پس د هغې نه د فائدې اخستلو اجازت وركړو.(١) حالانكه د امام شافعى رحمه الله د قول مطابق حضرت ابى رضي الله عنه مالدار صحابو رضي الله عنهم كښې وو.(٢)

دغه شان ددوى استدلال دحضرت على رضي الله عنه په يوه واقعه باندې دې چه هغوى ته يو دينار ملاو شو نبى ﷺ ورته د هغې د استعمال اجازت وركړې وو.(٣) حلانكه دحضرت على رضي الله عنه دپاره صدقه حلاله نه وه.

احناف رحمهم الله دحضرت عياض بن حمار رضي الله عنه په مرفوع روايت باندې استدلال كوى.چه ((من أصاب لقطة فليشهد ذا عدل أو ذوى عدل، ولايكتم ولا يغيب فإن وجد صاحبها فليردها عليه وإلا فهو مال الله يؤتيه من يشاء))(٤)

په دې حديث كښې استدلال د ((فهو مال الله يؤتيه من يشاء)) جملې باندې دې.دا تعبير عموماً دهغه څيز دپاره وى.دكوم مستحق چه فقيران وى نه چه مالداران (٥)

داحنافو رحمهم الله يواستدلال دحضرت عبدالله بن الشخير رضي الله عنه په حديث باندې دې.((قال قال رسول الله ﷺ ضالة المسلم حرق النار))(٦)

---

(١)صحيح البخارى (٣٢٩\١١) كتاب اللقطة باب هل يأخذ اللقطة .. رقم ٢٤٣٧) وصحيح مسلم كتاب اللقطة باب معرفة العفاص. والوكاء وحكم ضالة الغنم والإبل رقم ٤٥٠٦و ٤٥٠٨)_

(٢)جامع ترمذى كتاب الأحكام باب ما جاء فى اللقطة وضالة الإبل والغنم رقم ١٣٧٢)_

(٣) داواقعه ابوداود د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه نه نقل كړې ده.چه ((أن على بن ابى طالب دخل على فاطمة وحسن وحسين يبكيان فقال ما يبكيما؟ قالت الجوع فخرج على فوجد ديناراً بالسوق فجاء إلى فاطمة وأخبرها فقالت إذهب إلى فلان اليهودى فخذ لنا دقيقاً فجاء اليهودى فاشترى به دقيقاً فقال اليهودى أنت ختن هذا الذى يزعم أنه رسول الله ﷺ قال فخذ دينارك ولك الدقيق فخرج على حتى جاء فاطمة فأخبرها فقالت إذهب إلى فلان الجزار فخذ لنا بدرهم لحماً فذهب فرهن الدينار بدرهم لحم فجاء به فعجنت ونصبت وخبزت وأرسلت إلى أبيها فجاءهم فقالت يا رسول الله ﷺ أذكر لك فإن رأيته لنا حلالا أكلناه وأكلت معنا من شأنه كذا وكذا قال كلوا بسم الله فأكلوا فبيناهم مكانهم إذ غلام ينشد الله والإسلام الدينارفأمر رسول الله ﷺ فدعى له فسأله فقال سقط منى فى السوق فقال النبى ﷺ يا على إذهب إلى الجزار فقل له إن رسول الله ﷺ يقول لك أرسل إلى بالدينار ودرهمك على فأرسل به فدفعه رسول الله ﷺ إليه سنن أبى داود كتاب اللقطة باب التعريف باللقطة رقم ١٧١٦)_

(٤) السنن لأبى داود كتاب اللقطة باب التعريف باللقطة رقم ١٧٠٩) والسنن الكبرى للنسائى (٤١٨\٣) كتاب اللقطة باب الإشهاد على اللقطة رقم ٥٨٠٨) و(٥٨٠٩) والسنن لابن ماجه كتاب اللقطة باب اللقطة رقم ٢٥٠٥) ورواه إسحاق بن راويه فى مسنده كما فى نصب الراية (٤٦٦\٣) كتاب اللقطة رقم ٦١٣٣)_

(٥) تكملة فتح الملهم (٦١٠\١٢)_

دغه شان د حضرت جارود ﷺ نه يو اوږد حديث منقول دې.چه «ضالة المسلم حرق النار فلا يقربنها ضالة المسلم حرق النار فلا يقربنها» (٢)خودا درې واړه حديثونه صريح نه دى.

داحنافو ﷺ يو دليل د حضرت يعلى بن مره ﷺ مرفوع روايت دې. «من التقط لقطة يسيرة ثوباً أو شبهه فليعرفه ثلاثة أيام ومن التقط أكثر من ذلك ستة أيام فإن جاء صاحبها وإلا فليتصدق بها فإن جاء صاحبها فليخيره» (٣) په دې حديث كښې «فليصدق بها» اګرچه په مدعى باندې صريح دې.خودا حديث د سند په اعتبار سره ضعيف دې.ځكه چه په دې كښې عمربن عبدالله بن يعلى دې.كوم چه ضعيف دې.(٤)

دغه شان د حضرت ابوهريره ﷺ نه مرفوع روايت دې.«لا تحل للقطة من التقط شيأ فليعرفها فإن جاء صاحبها فليردها إليه ،فإن لم يأت فليتصدق بها فإن جاء فليخيره بين الأجر وبين الذى له»(٥)

خوپه دې حديث كښې ديوسف بن خالد سمتي واسطه ده.كوم چه بالاتفاق ضعيف دې.(٦)

لكه چه ټول پنځه مرفوع احاديث دى.په دې كښې دا آخرى دوه دسند په اعتبار سره صحيح نه دى.اوباقىٔ درې احاديث اګرچه د سند په اعتبار سره صحيح دى.خوصريح نه دى.

البته احناف دا وئيلى شي.چه دحضرت ابوهريره ﷺ اوحضرت يعلى بن مره روايتونه چه په كښې ضعف دې.هغه موئد د صحابوٌ په آثارو اوتعامل سره دى.لكه چه دا دواړه حديثونه هم بې اصل نه دى.

دحضرت عمر(٧)حضرت على (٨) حضرت ابن مسعود ،(٩) حضرت ابن عباس،(١٠)حضرت عبدالله بن عمر. (١١)

---

(١)أخرجه ابن ماجه فى سننه فى كتاب اللقطة باب ضالة الإبل والبقر والغنم رقم ٢٥٠٢)_

(٢)رواه أحمد فى مسنده (٨٠١٥) والطبرانى فى الكبير انظر مجمع الزوائد (١٦٧\٤)_

(٣)رواه الطبرانى فى الكبيرمجمع الزوائد (١٦٩\٤)_

(٤)وهو من رجال أبى داود وابن ماجه انظر تقريب التهذيب (٤١٤) رقم ٤٩٣٣)_

(٥)رواه الطبرانى فى الصغير والأوسط مجمع الزوائد (١٦٨\٤)_

(٦)الكاشف (٣٩٩\٢) رقم ٦٤٣٢)_

(٧) المصنف لإبن ابى شيبة (٤١٩\٤) كتاب البيوع والأقضية باب ما يصنع بها رقم ٢١٦٢٩) و(٢١٦٣٠٠) والمصنف لعبدالرزاق (١٣٩\١٠) كتاب اللقطة رقم ١٨٦٣٠)_

(٨) انظرجامع المسانيد (٧٦\٢) الباب العشرون فى الفرض والتقاضى والوديعة والعارية والآبق واللقيط واللقطة والسنن الكبرى للبيهقى (١٨٨\٦) كتاب اللقطة باب اللقطة يأكلها الغنى والفقير إذا لم تعترف بعد تعريف سنة)

(٩)المصنف لإبن أبى شيبة (٤١٨\٤) كتاب البيوع والأقضية باب فى اللقطة ما يصنع بها رقم ٢١٦٢٣) والمصنف لعبداللرزاق (١٣٩\١٠) رقم ١٨٦٣١)_

(١٠)المصنف لإبن أبى شيبة (٤١٨\٤) رقم ٢١٦٢٢) والمصنف لعبدالرزاق (١٤٠\١٠)_

(١١) المصنف لعبدالرزاق (١٣٧\١٠) رقم ١٨٦٢٣) والسنن الكبرى للبيهقى (١٨٨\٦)_

حضرت عبدالله بن عمرو. (١) حضرت عائشې. (٢) حضرت ام سلمې رضي الله عنهم (٣). دا اته صحابه كرام رضي الله عنهم دي. ددوى دآثارونه ثابته ده چه دوى ملتقط دلقطه نه فائدې اخستلواوپه خپل استعمال كښې د راوستلو اجازت نه دې وركړې بلكه دا حكم ئې وركړې دې چه يا خو دې دا صدقه كړي.اويا دې د امانت په طور خپل خان سره محفوظ كړى.

احاديث مباركه او مذكوره آثارو په رنړاكښې احناف دا وائى.چه د حضرت زيدبن حارث جهنى.اوحضرت ابى بن كعب رضي الله عنهما په احاديثو كښې چه د «الانتفاع باللقطة» اجازت ذكرشوې دې.هغه په دې صورت محمول دې.چه ملتقط مستحق وى.

تركومې پورې چه د امام شافعى رحمه الله دا فرمائيل دى.چه حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه په مالدارو صحابو رضي الله عنهم كښې وو.نو ددې جواب دا دې.چه دا د بعضې رواياتونه معلوميږى.چه حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه په مالدارانوصحابو رضي الله عنهم كښې وو.دحضرت انس رضي الله عنه نه مروى دى.چه «لما نزلت هذه الآية لن تنالوا البرحتى تنفقوا مما تحبون، قال أبوطلحة أرى ربنا يسألنا من أموالنا فاشهدك يا رسول الله إنى قد جعلت أرضى بيرحاء لله قال فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم اجعلها فى قرابتك قال فجعلها فى حسان بن ثابت وأبى بن كعب رضي الله عنهما» (٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه د ذكر شوى حديث اودامام شافعى رحمه الله د قول په مينځ كښې دجمعې صورت دا دې.چه هغه په اول كښې فقيروو.روسته د فتوحاتو نه دې مالدارشو.دامام شافعى قول د دغه آخرى زمانې سره متعلق دې.لكه چه په دغه زمانه كښې دلقطه واقعه پيښه شوې وه. اونبى صلى الله عليه وسلم هغوى ته په حالت دمالدارئ كښې د فائدې اخستلو اجازت وركړې وو. (٥)

خودحافظ رحمه الله دا جواب فائده نه وركوى.خكه كه چرته دا اومنلې شى.چه دې په مالدارانو صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې وو.نوبيا هم په دې باندې څه دليل نشته.چه دا واقعه دهغوى د مالدارئ د زمانې ده. (٦) «فإن قضايا الأحوال متى تطرق إليها الاحتمال سقط منها الاستدلال» (٧)

---

(١) المنصف لابن أبى شيبة (٤١٨\١٤) رقم (٢١٦٢٥)_

(٢)المصنف لابن أبى شيبة (٤٢١\١٤) باب ما رخص فيه من اللقطة رقم ٢١٦٥١) والمصنف لعبدالرزاق (١٤٠\١٠) رقم ١٨٦٣٤)-

(٣)المصنف لابن أبى شيبة (٤٢٠\١٤) رقم ٢١٦٣٧)_

(٤)صحيح مسلم كتاب الزكاة باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد والوالدين ولوكانوا مشركين رقم ٢٣١٦) و صحيح البخارى (٣٨٥\١١) كتاب الوصايا باب إذا وقف أو أوصى لأقاربه ومن الأقارب)

(٥)قال الحافظ :ويجمع بأن ذكل كان فى أول الحال وقول الشافعى رحمه الله بعد ذلک حين فتحت الفتوح التلخيص الحبير(٧٦\٣) كتاب اللقطة رقم ١٣٣٧)_

(٦)انظر تكلمة فتح الملهم (٦١٤\١٢)_

(٧)نصب الراية (٤٦٩\٣) كتاب اللقطة رقم ٦١٤٧)_

ترکومې پورې چه دحضرت علی رضی الله عنه دواقعه تعلق دې.نوپه دې کښې سنداً اومتناً کلام شوې دې.

ددی په سند کښې موسی بن یعقوب زمعی مدینی دې.دې مختلف فیه راوی دې.ابن معین رحمه الله دده توثیق کړې دې.اوامام نسائی ددې په باره کښې فرمائی.«لیس بالقوی» ([1]) حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«فیه لین» ([2])حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«صدوق سیئ الحفظ» ([3]) نوپه دې حدیث کښې دسند په اعتبارسره ضعف دی.

دغه شان دا واقعه عبدالرزاق په خپل مصنف کښې ([4]) اسحاق بن راهویه ،ابویعلی موصلی او بزار رحمهم الله په خپلو مسانیدوکښې ([5])نقل کړی دی.([6])

ددې په سند کښې ابوبکر بن عبدالله نومې یو راوی دې.دده په باره کښې امام بزار رحمه الله فرمائیلی دی.«لین الحدیث» ([7]) اوعبدالحق په «الأحکام» کښې فرمائی.«متروك»([8])دمتن په اعتبار سره په دې کښې دا کلام دې.چه د ابوداود د حضرت سهل بن سعد په روایت کښې د تعریف ذکر نشته.اودلقطه د تعریف ډیراحادیث ثابت دی.لکه چه دا روایت د باقی ټولو روایاتو دپاره کوم چه موجبه للتعریف دی.دهغې سره معارض دې.

بیا ددې په متن کښې اضطراب هم شته.د ابوداود په روایت کښې دی. چه حضرت علی رضی الله عنه ته کله دا دینارملاؤ شول.نوپه هغې باندې ئې دخوراك لوازمات حاصل کړل.اوروټئ ئې تیاره کړه.اونبی صلی الله علیه وسلم ته ئې خبرورکړو.

اودعبدالرزاق وغیره په روایت کښې دی.چه څنګه ئې دینار اوموندهٔ.نو نبی صلی الله علیه وسلم ته ئې خبر ورکړو.بیا د ابوداود په روایت کښې د تعریف څه ذکر نشته. او د عبدالرزاق وغیره په

---

[1])مختصر سنن أبی داود للمنذری (٢\٢٧٢) کتاب اللقطة رقم ١٦٤٢)_

[2]) الکاشف (٢\٣٠٩) رقم ٥٧٤٤)_

[3])تقریب التهذیب (٥٥٤) رقم ٧٠٢٦)_

[4])مصنف عبدالرزاق (١٠\١٤٢) کتاب اللقطة باب أحلت اللقطة الیسیرة رقم ١٨٦٣٧)_

[5])نصب الرأیة (١٣\٤٧٠) رقم ٦١٤٩)_

[6])عبدالرزاق عن أبی بکر عن شریک بن عبدالله عن عطاء بن یسار.عن أبی سعید الخدری أن علیاً جاء النبی صلی الله علیه وسلم بدینار وجده فی السوق فقال له النبی صلی الله علیه وسلم عرف ثلاثاًففعل فلم یجد أحداً یعترفه فرجع إلی النبی صلی الله علیه وسلم فأخبره فقال له النبی صلی الله علیه وسلم کله أو شأنکم به فصرفه النبی صلی الله علیه وسلم بإثنی عشر درهماً فابتاع منه بثلث شعیر أو بثلاثة تمر وبدرهم زیتاً وفضل عنده ثلاثة حتی إذا أکله بعض ما عنده جاء صاحبه فقال له علی قد أمرنی النبی صلی الله علیه وسلم بأکله فانطلق به إلی النبی صلی الله علیه وسلم یذکرذلک له فقال النبی صلی الله علیه وسلم لعلی أده قال ما عندنا شئ نأکله فقال النبی صلی الله علیه وسلم إذا جاء نا شئ أدیناه إلیه فجعل أجل الدینار وأشباهه ثلاثة یعی ن ثلاثة أیام لهذا الحدیث مصنف عبدالراق (١٠\١٤٢، ١٤٣) کتاب اللقطة باب أحلت اللقطة الیسیرة رقم ١٨٦٣٧)_

[7])کشف الأستار عن زوائدالبزار (٢\١٣٢) کتاب للقطة بب تعریف اللقطة رقم ١٣٦٨)_

[8])نصب الرأیة (١٣\٤٧٠)_

روایت کښې دتعریف ذکرهم شته.(۱)

ابن الهمام رحمه الله فرمائی که د حضرت سهل بن سعد روایت قابل احتیاج هم اومنلې شي.نوبیا هم ددې نه زیات نه زیات دا ثابتیږی چه د امام په اجازت باندې استقراض جائز دې اودا خبره محل دنزاع نه ده.ددې نه نه ثابتیږی چه که ملتقط مالدار وی.نوپخپله دقرض په حیثیت نې په خپل استعمال کښې راوستې شی.(۲)

که د ابوداد دحضرت سهل بن سعد رضي الله عنه روایت صحیح تسلیم کړې شی. نوبیا هم ددې نه د غنی دپاره د لقطه نه د انتفاع جواز نه معلومیږی.ځکه چه دا روایت صراحة دا بنائی چه ورځ ورته یهودی هبه کړې وو.اوغوښته هغه په قرض حاصل کړې وو.البته د قرض حاصلولودپاره هغه دګانړې په طوربانع سره هغه دینارکیخودې وو.نوکه نبی ﷺ دحلت طعام فتوی ورکړې وه.نودا خو محل دنزاع نه دې.ځکه چه محل دنزاع خو لقطه ده.(۳)

حضرت ګنګوهي فرمائی.چه دغه دینار کوم چه حضرت علی رضي الله عنه راوچت کړې وو.هغه هډو د لقطه په حکم کښې وو نه،ددې تفصیل دا دې.چه د لقطه اوچتول کله د حفاظت په غرض وی.نوپه داسې صورت کښې هغه د ملتقط په قبضه کښې امانت ګڼړلې شی.اوپه داسې موقع باندې فوری تعریف ضروری دې.اولکه چه لقطه اوچتول د حفاظت په غرض باندې نه وی.بلکه په خپل ضرورت کښې دخرچ کولو دپاره وی.دا په دې صورت کښې ممکن ده.چه د مالك په باره کښې دا یقین وی.چه هغه به پرې راضی وی.په داسې صورت کښې قبضه د امانت وی.بلکه قبضه دضمان وی.

دلته ګورئ حضرات حسنین رضي الله عنهما د لوږې دوجې ژړل.دهغوی د مور پلارهم ډیر بد حالت وو.چه په مدینه منوره کښې به داسې کس نه وو.چه حضرت علی رضي الله عنه دهغه دینار استعمال کړی.نوهغه به پرې خفه کیدلو.خاص کربیا په دې نیت چه هغوی د تاوان ادا کولوپه نیت دا راوچت کړې وو.نواوس دا دینار د لقطه په حکم کښې نه دې.بلکه ددې مثال داسې شو.چه د یو کس سره دده د دوست مال موجود وی.هغه پوهیږی.که زه ددې نه د خپل ضرورت دپاره خرچ کړم.بیا خاص کرد لوږې ختمولوپه موقع.نوهغه به خامخا راضی وی.نوپه دې غیرصریحی اذن باندې هغوی بهروسه اوکړه.که زه دا خرچ کړم.نوپه دې کښې به څه حرج نه وی.دلته هم دغه شان صورت حال دې.چه یهودی کوم چه دمسلمانانو سخت ترین دشمن وو.هغه هم حضرت علی رضي الله عنه ته بغیردڅه عوض نه په اورو ورکولوباندې راضی وو.نو نور مسلمانان به پرې راضی نه وو؟ (۴)

حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی.چه دا حدیث د انتفاع باللقطه د جواز دپاره پیش کول صحیح نه دی.ځکه چه صدقه دلقطه صدقه نافله وی. او صدقات نافله د اکثرواحنافو رحمهم الله

---

(۱)فتح القدير (٥\٣٦٠) كتاب اللقطة قبيل كتاب الإباق)_

(۲)المصدر السابق)_

(۳)تكملة فتح الملهم (٢\٦١٥)_

(۴)بذل المجهود(٨\٢٨٣و ٢٨٤)_

فقهاؤ په نيز دبنو هاشم دپاره حلال وى. والله اعلم. (١)

**قوله** فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ: بيا كه ددې مالك راشى. نوهغه ته ئې وركړه.

**كه لقطه ختمه شى اومالك ئې پيدا شى نو تاوان به وى كه نه؟** جمهورعالمان ﷫ فرمائى. كه ټول كال د لقطه تعريف اوكړې شى. او د لقطه ذات باقى وى. اوددې نه پس ئې مالك پيدا شى. نو واپس كول ورته واجب دى. اوكه هغه دغه لقطه استعمال كړې وى. اوختمه شوې وى. نوتاوان واجب دې.

په شوافعوكښې كرابيسى، داود ظاهر، او امام بخارى ﷫ په نيزكه لقطه باقى وى. نوواپس كول ضرورى دى. اوكه ختمه شوې وى. نوضمان واجب نه دې. (٢)

دكرابيسى اوداود ظاهرى رحمهما الله استدلال د حديث باب په يوطريق كښې «فإن جاء صاحبها وإلا فشأنك بها» الفاظ دى. (٣)

دغه شان د زيدبن خالد ﷛ دا روايت سعيد بن منصور﷫ هم روايت كړې دې. په هغې كښې «وإلا فتصنع بها ما تصنع بمالك» الفاظ دى. (٤)

دجمهورواستدلال خو په حديث باب كښې «فإن جاء ربها فأدها إليه» په مطلق الفاظو باندې دې. يعنى كه لقطه باقى وى اوكه استعمال شوې وى. په دواړو صورتوكښې دمالك په مطالبه باندې ادا كول ضرورى دې.

دغه شان د جمهورو يودليل دحضرت زيدبن خالد ﷛ په يوطريق كښې دا الفاظ هم دى. «وكانت وديعة عنده» (٥)

دغه شان دحضرت زيد بن خالد جهنى ﷛ په يو روايت كښې دا الفاظ دى. «فاعرف عفاصها ووكاءها ثم كلها فإن جاء صاحبها فأدها إليه» (٦) په دې كښې د «كلها» نه پس «فإن جاء صاحبها» راغلى دى. دا دخپل ظاهرپه اعتبارسره په دې خبره دلالت كوى. چه د خوړلونه پس هم واپس كول واجب دى.

دغه شان د ابوداود روايت د جمهورو يو مضبوط او صريح دليل دې. چه الفاظ ئې دا دى. «عرفها سنة فإن جاء باغيها فأدها إليه، وإلا فاعرف عفاصها ووكاءها ثم كلها فإن جاء باغيها فأدها

---

(١) العرف الشذى (٢٥٧\١١) كتاب الأحكام باب اللقطة وضالة الإبل والغنم)_
(٢) عمدة القارى (٢٧٢\١٢) كتاب اللقطة باب إذا لم يوجد صاحب اللقطة بعد سنة فهى لمن وجدها)_
(٣) صحيح بخارى (٣٢٨\١١) كتاب اللقطة باب إذا لم يوجد صاحب اللقطة بعد سنة فهى لمن وجدها)-
(٤) عمدة القارى (٢٧٢\١٢)_
(٥) صحيح بخارى (٣٢٨\١١) كتاب اللقطة باب ضالة الغنم رقم ٢٤٢٨)_
(٦) صحيح مسلم كتاب اللقطة باب معرفة العفاص والوكاء وحكم ضالة الغنم والإبل رقم ٤٥٠٤)_

إليه»)[1] په دې روايت كښې د ادا، حم «قبل الإذن لى الأكل» او «بعد الإذن لى الأكل» دواړو صورتونو كښې دي

ددې احاديثو په رڼا كښې «ولاتشأنك بها» يا «ولاتصنع بها ما تصنع بمالك» غوندې الفاظو محمل به دا وى.كه دتعريف نه پس كه مالك رانشى.نو د تصرف كولواجازت به وى.خو ددې نه پس د ضمان په باره كښې دا روايات ساكت دى.اونور رواياتوكښې په لقطه كښې دتصرف كولونه پس دجوب ضمان حكم وارد دې.نو دا مطلق روايات به په مقيد رواياتو باندې محمول كولى شى.([2]) والله اعلم.

**د صاحب لقطه په ذمه د لقطه واپس كول كله واجب دى؟** دلته يوه مسئله دا ده.چه په صاحب لقطه باندې د لقطه واپس كول كله واجبيږى؟كه د لقطه مالك گواهان قائم كړى.نو دټولوپه نيزد لقطه واپس كول واجب دى.

خوكه څوك گواهان پيش نكړې شى.البته د لقطه صفات او نښې اوښائى. نو په دې كښې اختلاف دې.

امام مالك اوامام احمد رحمهما الله فرمائى.چه په داسې صورت كښې د لقطه واپس كول واجب دى.او د احنافو او شوافعو ﷺ په نيز په داسې صورت كښې واپس كول جائز دى.خو واجب نه دى([3])

مالكيه اوحنابله ﷺ په «فإن جاء أحد يخبرك بعددها ووعائها ووكائها فأعطها» باندې استدلا ل كوى.([4]) په دې حديث كښې ئې د اوصافوپه بيان باندې ادا كول متفرع كړى دى.

احناف او شوافع ﷺ فرمائى.چه په دې كښې چه د اعطاء كوم حكم دې.نودا په اباحت باندې محمول دې.گني بيا خود دې اود حديث «البينة على المدعى واليمين على من أنكر» مينځ كښې تعارض راځى.دلته چونكه صاحب لقطه مدعى دې.-نو دده په ذمه گواهان لازم دى.

اوكه په «فأعطها إياه» كښې امرپه وجوب باندې محمول كړې شى.نوددې مطلب به دا وى.چه د گواهانونه بغيرچه صرف اوصاف بيان كړى.نوپه دې به هم د لقطه واپس كول واجب وى.

حالانكه «والبينة على المدعى»([5])حديث ښائى.چه مدعى كله گواهان قائم كړى.نودهغې نه پس به ده ته دخپل مدعا وركول واجب گنړلې شى.ددې وجې په دواړو كښې د جمع كولو صورت

---

[1])سنن أبي داود كتاب اللقطة باب التعريف باللقطة رقم ١٧٠٦)-

[2])فتح البارى(٨٥\٥) كتاب اللقطة باب إذا لم يوجد صاحب اللقطة بعد سنة فهى لمن وجدها)_

[3])فتح القدير(٣٥٧\٥) كتاب للقطة)_

[4])صحيح مسلم كتاب اللقطة باب معرفة العفاس والوكاء وحكم ضالة الغنم والإبل رقم ٤٥٠٨)_

[5]) السنن للبيهقى (٢٥٢\١٠) كتاب الدعوى والبينات باب البينة على المدعى واليمين على المدعى عليه وسنن الدرافطنى (٢١٨\٤) كتاب فى الأقضية والأحكام فى المرأة تقتل إذا إرتدت رقم ٥١و ٥٢) وانظر نصب الرأية (٩٥\٤و ٩٦) كتاب الدعوى باب اليمين رقم ٦٦٤٣و ٦٦٤٦)-

هم دا دي چه «فادفعها إليه» كښې امرداباحت دپاره وي.اوپه حديث مشهوركښې په وجوب باندې محمول كړې شي.(١) والله اعلم.

**قوله: قَالَ فَضَالَّةُ الْإِبِلِ فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ أَوْقَالَ احْمَرَّوَجْهُهُ فَقَالَ مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاؤُهَا وحِذَاؤُهَا تَرِدُ الْمَاءَ وَتَرْعَى الشَّجَرَفَذَرْهَا حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا:** تپوس كونكي تپوس اوكړو.د ورك شوى اوښ رانيول جائز دى كه نه. نبى ﷺ غصه شو.تردې چه د نبى ﷺ د اننګودواړه راپورته حصې سرې شوې.يا ئې داسې اوفرمائيل.چه د نبى ﷺ مخ مبارك سور شو.وې فرمائيل.ستا ددې سره څه كاردې؟دهغه سره دهغه مشكيزه او څپلئ وى.هغه به د اوبو چينوته راځى.اواوبه به څكى.اوپه ونوكښې به څريږى.دې پريږده.تردې چه دده مالك راشى.

«وجنتان» د «وجنة» تثنيه ده.دخرمنې راپورته حصې ته وائى.(٢)

«سقاء» مشكيزۀ ته وائى.(٣) چونكه اوښ په يوځل ډيرې اوبه څكى. او په خپل بدن كښې هغه ذخيره كوى.هم دا وجه ده.چه هغه ته د باربار اوبوڅكلو ضرورت نه پيښيږى.ددې وجې نبى ﷺ اوفرمائيل.«معها سقاؤها»

دغه شان الله تعالى ده ته دوه خپرې (د پښوتلى) داسې وركړى دى.چه په هغې سره دې په شګو او غرونوكښې ګرځى.لكه چه دده په پښوكښې څپلئ موجود دى.

چونكه دا لوې ځناور دې.خپل حفاظت كولې شى.او ده ته دخوراك څكاك تكليف هم نه وى. ددې وجې دې لقطه ګرځولوته څه ضرورت نشته.دې هم په خپل حالت باندې پريږده. مالك به ئې پخپله لټوى.اوهغه ته به راورسى.

**داوښ التقاط صحيح دې كه نه؟** دحديث باب نه معلومه شوه.چه د «ضالة الإبل» التقاط صحيح نه دې:هم په دې حكم كښې فرس او بقر هم دى.د مالكيانو او شوافع اوحنابلو ﷺ په نيزددې ا التقاط په ځائې ددې پريخودل غوره دى.اوداحنافو ﷺ په نيزد نوورو ځيزونو پشان داوښانو ،غواګانووغيره التقاط هم صحيح دې.(٤)

تركومې پورې چه په حديث باب كښې د نفى تعلق دې.نوددې په باره كښې احناف ﷺ وائى.چه دا حكم په هغه وخت كښې وو.چه خلقوكښې نيكان زيات وو.خيانت عام نه وو.په هغه زمانه كښې كه به اوښ وغيره پريخودې شو.نو مالك به موندل.خو په زمانه كښې د

---

(١)فتح القدير(٥\٣٥٧)-

(٢)هدى السارى(٢٠٤) الفصل الخامس)_

(٣)هدى السارى(١٣٣) الفصل الخامس)_

(٤)هدايه مع فتح القدير(٥\٣٥٤) كتاب اللقطة)_

تغير راتلو نه پس اوس حكم هم بدل شو اوس خيانت عام شوې دې.نو د اوښ وغيره التقاط هم افضل دې.([1])

ددې تائيد دموطا ددې روايت نه كيږي په كوم كښې چه امام زهري رحمه الله فرمائي.«إن ضوال الإبل كانت فى زمن عمر رضي الله عنه إبلا مرسلة تناتج لا يمسها أحد حتى إذا كان زمن عثمان بن عفان رضي الله عنه أمر بمعرفتها وتعريفها ثم تباع فإذا جاء صاحبها أعطى ثمنها» ([2])

ددې نه معلومه شوه.چه په پخوانۍ زمانه كښې به اوښ آزاد ګرځيدل.ددې به بچي وو.چا به ورته تعرض نه كول.معلومه شوه.چه اوس دا خبره نشته.نو التقاط كول پكار دى.ددې تعريف دې اوكړې شي.اومالك ته ئې اورسولې شي.

**قوله: قَالَ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ لَكَ أَوْلِأَخِيكَ أَوْلِلذِّئْبِ:** تپوس اوشو چه د وركې شوې چيلۍ څه حكم دې؟ نبي صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.هغه ستا ده يا ستا د ورورده يا د شرمخ ده.

د «اخ» نه يا بل مسلمان مراد دې.يا ترې مالك مراد دې.([3])

د ..ذئب.، نه مراد يا شرمخ دې.يا هردرنده دې.([4])

مطلب دا دې.كه وركه شوې چيلۍ وي.نوهغه خويا ستا ده.كه ته ئې اونيسې.نواوس دا ستا ذمه واري ده.چه ته ددې حفاظت اوكړې.تعريف ئې اوكړې.تردې چه مالك ته اورسي.ياهغه ستا د مسلمان ورور ده.يعنى كه ته ئې لقطه جوړه نكړې.نو ستا بل مسلمان ورور به هغه لقطه جوړه كړي.او حسب معمول به ئې تعريف كوي.يا دا كه ته ئې اونه نيسې.نومالك به ئې پخپله باندې لټون كوي.اوآخر به ئې اومومي.اوكه څوك ئې هم اونه نيسي.نو بيا به د درنده ښكارشي.([5])

دحديث باب هم ددې الفاظو نه استدلال كوى.امام مالك رحمه الله دا رائې ښكاره كړې ده چه د «غنم» په التقاط سره ملتقط مالك جوړيږي.تردې كه مالك راشي.نو بيا هم په ده باندې ضمان نشته.([6]) ځكه چه دحديث باب الفاظ دى.«لك أو لأخيك أو للذئب» ظاهر دا دې چه دا «لام» د تمليك دپاره دې.دحديث باب په يوطريق كښې نورهم ښكاره الفاظ دى.«ثم قال كيف ترى فى ضالة الغنم؟ قال النبى صلى الله عليه وسلم خذها فإنما هى لك أو لأخيك أو للذئب» ([7])

---

[1] المبسوط للسرخسي(١١\١١)_
[2] موطاء امام محمد (٣٦٥) كتاب اللقطة رقم ٨٤٧) موطا امام مالک (٦٤٨٠) كتاب الأقضية باب القضاء فى الضوال )
[3] فتح البارى(٨٢\٥) كتاب اللقطة باب ضالة الإبل)_
[4] المصدر السابق)_
[5] عمدة القارى(١١٠\١٢)_
[6] فتح البارى(٨٢\٥) كتاب اللقطة باب ضالة الإبل )_
[7] صحيح بخارى(٣٢٨\١١) كتاب اللقطة باب ضالة الغنم)_

دامام مالك رحمه الله استدلال په دې خبره هم دې چه په دې حديث كښې ئې ملتقط اوذنب دواړه برابر ګرځولى دى.نولك څنګه چه په ذنب باندې څه تاوان نشته.دغه شان به د ملتقط په ذمه هم څه تاوان نه وى.(١)

ددې په مقابله كښې د جمهورو په دې خبره باندې اتفاق دې.كه د لقطه داستعمال نه وړاندې مالك راغلو.نو هغه خپل مالك ته واپس كول لازمى دى.ددې نه معلومه شوه چه په لقطه ملكيت داصلى مالك برقرار دې.(٢)

تركومې چه د امام مالك رحمه الله د استدلال تعلق دې.نوددې جواب دا دې چه دلته «لام» د تمليك دپاره نه دې.ښكاره ده چه دا «لام» په ذنب باندې هم داخل دې.خو په ذنب مالك نشى جوړيدې.نودغه شان به ملتقط هم مالك نه وى.

البته دالتقاط اجازت شته.اوبيا د تعريف نه پس كه هم مالك ملاؤ نشى.نو په دې صورت كښې كه فقير اومحتاج وى.نوپه دې شرط ئې پخپله استعمالولى شى.اويا به ئې څا محتاج ته د صدقه په طور وركړى.خوكه مالك ئې پيدا شى.اوهغه د ضمان مطالبه كوى.نود ضمان ادا كول به ضرورى وى.(٣)

[٣٠]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى (٤)قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَشْيَاءَ كَرِهَهَا فَلَمَّا أُكْثِرَ عَلَيْهِ غَضِبَ ثُمَّ قَالَ لِلنَّاسِ سَلُونِي عَمَّا شِئْتُمْ قَالَ رَجُلٌ مَنْ أَبِي قَالَ أَبُوكَ حُذَافَةُ فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ مَنْ أَبِي يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ أَبُوكَ سَالِمٌ مَوْلَى شَيْبَةَ فَلَمَّا رَأَى عُمَرُ مَا فِي وَجْهِهِ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نَتُوبُ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ [٦٨٦١]

## رجال الحديث

① محمدبن العلاء: دا ابوكريب محمدبن العلاء بن كريب همدانى كوفى رحمه الله دې.ددوى حالات په كتاب العلم كښې د «باب فضل من علم وعلّم» لاندې تيرشوى دى.

② ابواسامه: دا ابواسامه حمادبن اسامه بن زيد قرشى كوفى رحمه الله دې.د دوى حالات هم په كتاب العلم كښې د «باب فضل من علم وعلم» لاندې تيرشوى دى.

---

١)فتح البارى(٨٢\٥)_

٢)المصدر السابق)_

٣)المصدر السابق)_

٤)قوله :عن أبى موسى رضي الله عنه الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه (١٠٨٣\٢) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب ما يكره من كثرة السوال وتكلف ما يعنيه رقم (٧٢٩١) ومسلم فى صحيحه كتاب الفضائل باب توقيره صلى الله عليه وسلم وترك إكثار سؤاله عما لا ضرورة إليه أولا يتعلق به تكليف وما لا يقع ونحو ذلك رقم (٦١٢٥)_

③ بريد: دا ابوبرده بريد بن عبدالله بن ابى برده بن ابى موسى اشعرى ﷺ دې.ددوى حالات اجمالاً په كتاب الايمان كښې د «باب أى الإسلام أفضل» لاندې (١) او په كتاب العلم كښې د«باب فضل من علم وعلم» لاندې تيرشوى دى

④ ابوبرده: دا ابوبرده بن ابى موسى اشعرى دې.ددوى حالات په «كتاب الإيمان باب أى الإسلام أفضل» لاندې تير شوى دى.(٢)

⑤ ابوموسى اشعري ﷺ: ددوى حالات هم په «كتاب الإيمان باب أى الإسلام أفضل» لاندې تيرشوى دى.(٣)

**قوله قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَشْيَاءَ كَرِهَهَا**: حضرت ابوموسى اشعرى ﷺ فرمائى.چه د نبى ﷺ نه د داسې څيزونو په باره كښې تپوسونه اوشول. چه دهغې په باره كښې د نبى ﷺ تپوسونه كول خوښ نه وو.

**قوله فَلَمَّا أُكْثِرَ عَلَيْهِ غَضِبَ**: كله چه د نبى ﷺ نه تپوسونه زيات شول.نونبى ﷺ خفه شو.

**قوله ثُمَّ قَالَ لِلنَّاسِ سَلُونِي عَمَّا شِئْتُمْ**: بيانبى ﷺ اوفرمائيل.چه زما نه خو څه سوال خوښ وى.تپوس كوئ.

ددې مقصد د خفګان اظهار وو.خوبعضې صحابه كرام ﷺ پوهه نشو. د حضرت انس ﷺ په روايت كښې دى.چه صحابه كرامو ﷺ سرونه ټيټ كړل.اوبه ژړا شول.(٤)

**قوله قَالَ رَجُلٌ مَنْ أَبِي**: يوسړى تپوس اوكړو.زما پلار څوك دې؟ نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.ستا پلار حذافه دې.

دا تپوس كونكې عبدالله بن حذافه ﷺ وو.(٥) په يو روايت كښې راځى.چه دهغوى به كله هم دچا سره جګړه وه.نوخلقوبه دې دخپل پلارنه علاوه بل چاته منسوب كولو.ددې وجې هغوى د نبى ﷺ نه ددې تپوس اوكړو.(٦)

دمسلم شريف په يو روايت كښې دى.چه ددوى مور دوى ته اووئيل.«ما سمعت بابن قط أعق منك آأمنت أن تكون أمك قد قارفت بعض ما تقارف نساء أهل الجاهلية فتفضحها على أعين الناس»

---

(١)كشف البارى(٦٩٠/١١)_
(٢)كشف البارى(٦٩٠/١١)_
(٣)كشف البارى (٦٩٠/١١)_
(٤)صحيح بخارى (٦٦٥/٢) كتاب التفسير سورة المائدة باب ((لاتسئلوا عن أشياء إن تبد لكم تسؤكم )) رقم (٤٦٢١)
(٥)وقد ورد في طريق من رواية أنس فقام عبدالله بن حذافة فقال من أبى يا رسول الله؟ أنظرصحيح البخارى (١٠٨٤/٢) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب ما يكره من كثرة السوال وتكلف مالا يعنيه رقم (٧٢٩٤)-
(٦)صحيح مسلم كتاب الفضائل باب توقيره ﷺ وترك إكثارسواله عما لا ضرورة إليه.. رقم (٦١٢٣)_

په دې باندې حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه جواب ورکړو. «والله لو ألحقني بعبد أسود للحقته»[1]

**قوله**: قَالَ أَبُوكَ حُذَافَةُ فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ مَنْ أَبِي يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ أَبُوكَ سَالِمٌ مَوْلَى شَيْبَةَ: بیا یوکس پاسیدو. اوتپوس ئې اوکړو. یارسول الله زما پلار څوک دې؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. ستا پلار دشیبه آزاد شوې غلام سالم دې.

ددې سوال کونکې سعدبن سالم رضی الله عنه وو.[2]

**ایا دا دعلم غیب دعوه نه ده؟** دلته دا سوال کیږی. چه دا خودعلم غیب ادعاء ده. چه نبی؟ اوفرمائیل «سلوني عما شئتم» دغه شان نبی ﷺ بنائی. چه د عبدالله پلار حذافه دې. اود سعد پلار سالم دې.

ددې جواب دا دې. چه په صحیح بخاری کښې دحضرت انس رضی الله عنه په یو طریق کښې دی. چه نبی ﷺ اوفرمائیل. «من أحب أن يسأل عن شئ فليسأل عنه فوالله لا تسألوني عن شئ إلا أخبرتكم به ما دمت في مقامي هذا»[3]

ددې نه معلومه شوه. چه دامعجزه وه. چه په دغه مقام کښې نبی ﷺ ترڅو پورې تشریف فرما وو. نوددغه وخت دپاره نبی ﷺ فرمائیلی وو. چه تاسو کوم سوال کوئ. زه به د هغې جواب درکوم. نودا په اطلاق باندې حمل کول اوددې نه د نبی ﷺ دپاره علم غیب ثابتول صحیح نه دی.

**قوله**: فَلَمَّا رَأَى عُمَرُ مَا فِي وَجْهِهِ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نَتُوبُ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ:

کله چه حضرت عمر رضی الله عنه هغه آثار اولیدل. کوم چه د نبی ﷺ په مخ مبارک باندې وو. نوعرض ئې اوکړو. یا رسول الله مونږ الله تعالی ته توبه اوباسو.

په یوبل روایت کښې دی. چه حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل. «رضينا بالله رباً وبالإسلام ديناً وبمحمد نبياً»[4]

مطلب دا دې. چه حضرت عمر رضی الله عنه چه کله اوکتل. چه نبی ﷺ خفه کیږی. او هسې نه چه ددوی د خفګان د وجې څه عذاب نازل شی. ددې وجې حضرت عمر رضی الله عنه د تواضع اظهار اوکړو. او دوه خبرې ئې عرض کړې. چه «رضينا بالله رباً» او «إنا نتوب إلى الله عزوجل»[5]

---

[1] صحیح مسلم کتاب الفضائل باب توقره ﷺ وترک إكثارسؤاله عما لا ضرورة إليه. رقم (۶۱۲۱)_

[2] فتح البارى (۱۱/۱۸۷)_

[3] صحیح بخارى (۱۰۸۴/۱۲) کتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب ما يكره من كثرة السوال وتكلف ما لا يعنيه رقم ۷۲۹۴) وانظر صحيح مسلم كتاب الفضائل باب توقيره ﷺ .. رقم (۶۱۲۱)_

[4] صحیح البخارى (۲۰/۱۱) كتاب العلم باب من برک على ركبتيه عندالإمام أوالمحدث رقم ۹۳)_

[5] فتح البارى (۱۱/۱۸۷)_

كورئ دلته غلطي د نورڼه شوې ده خودا د حضرت عمر رضي الله عنه فهم او فراست او شفقت على الاصحاب دليل وو چه هغوى د نبي ﷺ دخفگان لرې كولو داسې كوشش اوكړو لكه چه غلطي ددوى نه شوې وى. والله اعلم بالصواب

## ٢٩ = بَابُ مَنْ بَرَكَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ عِنْدَ الإِمَامِ أَوِ الْمُحَدِّثِ

«برك يبرك بروكاً» د اوښ د كينولو دپاره استعماليږى.(١) خودلته مجازاً د انسان كونډې ماتولو ته يا په ښنډو كيناستو دپاره استعماليږى.(٢)

**مخكنى باب سره مناسبت** د مخكنى باب سره مناسبت ددې باب ښكاره دې په دې طريقه چه په مخكنى باب كښې د ادب تقاضې نه پوره كولو په وجه دسوال كونكى نه د استاذ دخفگان بيان وو. اوپه دې باب كښې متعلم ته دعالم مخامخ څنگه كيناستل پكار دى؟ ددې ذكردې.(٣)

**د ترجمة الباب مقصد** ددې خائې نه د ترجمة الباب مقصد هم ثابت شو. كه محدث خفه شى. نومتعلم دپاره د ادب طريقه اختيارول پكار دى. اودهغه راضى كول پكار دى.

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى. چه دا ترجمه د «باب فى باب» د قبيلې څنې ده. ددې مطلب دا دې. چه د مخكنى باب په حديث كښې د باب نه علاوه نوې فائده هم ذكرده په دې باندې د تنبيه وركولو دپاره ئې ترجمه قائمه كړه.(٤)

دلته هم د باب سابق دآخرى حديث پشان حديث موجود دې. خوچونكه ددې نه يوه بله فائده مستنبط كيده. په دې فائدې باندې د خبر وركولو دپاره ئې پرې دلته د «من برك على ركبتيه عندالإمام أو المحدث» ترجمه قائمه كړه.(٥)

[٩٠] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ (٦) أَنَّ

---

(١) مختار الصحاح (٤٩)_

(٢) فتح البارى(١\١٨٨) وعمدة القاى(٢\١١٤)_

(٣) عمدة القارى(٢\١١٤)_

(٤) الكنز المتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى (مقدمة لامع الدرارى (١\٣٥٤) الفائدة الثالثة فى تفاصيل الأصول الأصل السادس دغه شان كشف البارى (١\١٧٢)_

(٥) الكنز المتوارى (٢\٣٢٣)_

(٦) قوله أنس بن مالك :الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه أيضاً (١\٧٧) فى كتاب مواقيت الصلاة باب وقت الظهرعند الزوال رقم ٥٤٠) و(١\١٠٣) كتاب الأذان باب رفع البصر إلى الإمام فى الصلاة رقم ٧٤٩) و(٢\٦٦٥) كتاب التفسيرسورة المائدة باب ﴿لا تسألوا عن أشياء إن تبدلكم تسؤكم﴾ رقم ٤٦٢١) و(٢\٩٤١) كتاب الدعوات باب التعوذ من الفتن رقم ٦٣٦٢) و(٢\٩٥٧) كتاب الرقاق باب القصد والمداومة على العمل رقم ٦٤٦٨) و(٢\٩٦٠) كتاب الرقاق باب قول النبى ﷺ لو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلاً ولبكيتم كثيراً رقم ٦٤٨٦) و(٢\١٠٥٠) كتاب الفتن باب التعوذ من الفتن رقم ٧٠٨٩ و ٧٢٩٥) و(٢\١٠٨٣) كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب ما يكره من كثرة السوال وتكلف ما لا يعنيه رقم ٧٢٩٤ و ٧٢٩٥) ومسلم فى صحيحه فى كتاب الفضائل باب توقيره ﷺ وترك إكثار سواله عما لا ضرورة إليه .. رقم ٦١١٩و ٦١٢٤) والترمذى فى جامعه فى كتاب التفسير سورة المائدة رقم ٣٠٥٦) وابن ماجه فى سننه فى كتاب الزهد باب الحزن والبكاء رقم ٤١٩١)_

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حُذَافَةَ فَقَالَ مَنْ أَبِي فَقَالَ أَبُوكَ حُذَافَةُ ثُمَّ أَكْثَرَ أَنْ يَقُولَ سَلُونِي فَبَرَكَ عُمَرُ عَلَى رُكْبَتَيْهِ فَقَالَ رَضِينَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيًّا فَسَكَتَ [٥١٥ و ٦٨٦٤ و ٣٣٤٥]

## رجال الحديث

① ابواليمان رحمه الله: دا ابواليمان الحكم بن نافع بهراني حمصي رحمه الله دي.ددوى حالات مختكي په بدء الوحى كښې د شپږم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.(١)

② شعيب رحمه الله: دا شعيب بن ابى حمزه اموى قرشي رحمه الله دي.ددوى مختصر حالات هم په بدء الوحى كښې د شپږم حديث لاندې تيرشوى دى.(٢)

③ الزهري رحمه الله: دا امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دې ددوى مختصر حالات په بدء الوحى كښې د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.(٣)

④ انس بن مالك رضي الله عنه: حضرت انس بن مالك رضي الله عنه ددوى حالات په كتاب الايمان كښې د «باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه» لاندې تيرشوى دى.(٤)

**قوله**: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فَقَامَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حُذَافَةَ فَقَالَ مَنْ أَبِي فَقَالَ أَبُوكَ حُذَافَةُ: نبى صلى الله عليه وسلم بهرته تشريف راورو.حضرت عبدالله بن حذافه رضي الله عنه اودريدلو.او تپوس ئې اوكړوزما پلار څوك دې؟ نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.حذافه دې. دلته په روايت كښې اختصار دې.لكه څنګه چه دبل روايت نه معلوميږى .چه د نبى صلى الله عليه وسلم نه خلقو تپوسنه كول.نو نبى صلى الله عليه وسلم خفه شو.بيا ئې هم په دغه حال كښې اوفرمائيل.«سلونى» په دې موقع باندې حضرت عبدالله بن حذافه رضي الله عنه اودريدو.او عرض ئې اوكړو.زما پلار څوك دې.(٥)

**قوله**: ثُمَّ أَكْثَرَ أَنْ يَقُولَ سَلُونِي: بيا نبى صلى الله عليه وسلم ډير زيات اوفرمائيل.زما نه تپوسونه كوئ.

**قوله**: فَبَرَكَ عُمَرُ عَلَى رُكْبَتَيْهِ: حضرت عمر په خپلو زنګونونو باندې كيناستو. ددې جملې نه امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب اثبات كوى.كوم چه بيخى ښكاره دې.

حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى.چه دلته د «بروك» ظاهرى مطلب دا جوړيږى.چه حضرت عمر رضي الله عنه چه د وړاندې نه په مجلس كښې موجود وو.هغه په زنګونونو باندې اودريدو.

---

(١) كشف البارى (٤٨٠/١)_
(٢) كشف البارى(٤٨٠/١)_
(٣) كشف البارى(٣٢٦/١)_
(٤) كشف البارى(٤/٢)_
(٥) فتح البارى(١٨٨/١)_

چونکه دا هیئت د ادب نه خلاف محسوسیږی.ددې وجې امام بخاری رحمه الله ددې جواز ثابت کړو.چه د ویرې په موقعه داسې کول صحیح دی.دلته چونکه د نبی ﷺ دخفګان سخته مرحله راغلې وه.خکه حضرت عمر رضی الله عنه دا هئیت اختیار کړو.

حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی.چه دلته دا هم امکان شته.چه د «بروك» نه مراد هیئت تشهد وی.یعنی دحضرت عمر په دواړو زنګونونو باندې کیناستل مقصود وی.که دا معنی وی.نو بیا خبره ښکاره ده.چه امام ته مخامخ په دې کیفیت باندې کیناستل پکار دی.

خوبه دې باندې دا اشکال کیږی.چه امام ته مخامخ د کیناستو کیفیت او ادب چه دا شی.نوحضرت عمر رضی الله عنه د اول نه په دې کیفیت ولې نه کیناستل.

ددې جواب دا ورکړې شوې دې.چه عام طور ادب خو دا دې.چه امام ته په دواړو زنګونونو باندې کیناستل.خود نورو هیئتونو اجازت هم شته.ددې اجازت په وجه حضرت عمر رضی الله عنه اول په بل هیئت باندې ناست وو.خوچه د نبی ﷺ د خفګان واقعه پېښه شوه.اوهغه د څه درخواست کولوضرورت محسوس کړو.نوخپل هیئت ئې بدل کړو.اوپه دواړو زنګونونو باندې کیناستو.اوعرض ئې اوکړو.«رضینا بالله رباً..الخ» (١)

عامو شارحینو رحمهم الله په دې مقام کښې د «بروك»نه په دواړو پنډو باندې ناسته مراد اخستې ده.(٢)

**قوله**: فَقَالَ رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيًّا فَسَكَتَ: او عرض ئې اوکړو.چه مونږ الله تعالی رب اواسلام دین اومحمد ﷺ نبی منو. او خوشحاله یو.

ابن بطال رحمه الله فرمائی.چه چونکه حضرت عمر رضی الله عنه دا ګڼړل.چه داسې قسم تپوسنه بعضې وخت د تعنت،شکوکو او شبهاتوپه وجه کیږی.اوپه دې باندې عذاب نازلیږی.ددې ویرې هغوی د تسلیم او رضا اظهاراوکړو.او عرض ئې اوکړو.چه «رضینا بالله رباً..الخ»(٣)

ددې حاصل داې دې.چه الله تعالی مونږ ته کوم کتاب راکړې دې.اودنبی ﷺ په واسطه چه ئې مونږ ته کومه طریقه خودلې ده.چه هغه وی.نودڅه سوال ضرورت نشته.(٤)

**قوله**: فسکت: نونبی ﷺ چپ شو.

په بعضې روایاتوکښې دی.چه «فسکن غضبه»(٥) یعنی دنبی ﷺ غصه سړه شوه.یعنی کله چه

---

(١)لامع الدراری (٢\٣٢٣و ٣٢٤)_
(٢)الکنز المتواری (٢\٣٢٤)_
(٣)شرح ابن البطال (١\١٧١)_
(٤)عمدة القاری(٢\١١٤)_
(٥)عمدة القاری(٢\١١٥)_

حضرت عمر رضي الله عنه د ټولو حاضرينو د طرفه نمائندګي اوکړه. او د پوره تسليم اورضا اظهار ئې اوکړو. او دا يقين ئې ورکړو چه دا تپوسونه د څه تعنت يا شك او شبهٔ په بنياد باندې نه دى. نو نبى صلى الله عليه وسلم راضى شو.

**تنبيه** دمخکنى باب په روايت کښې دى. چه حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل. «إنا نتوب إلى الله عزوجل» او په دې روايت کښې دى. چه هغوى «رضينا بالله ربا...» اوفرمائيل. نو ونيلى به شى چه په دواړو روايتونو کښې اختصار دې. حضرت عمر رضي الله عنه دواړه خبرې کړې وې. په اولنى روايت کښې يوه حصه مذکور ده. او په بل روايت کښې بله حصه مذکور ده. والله أعلم.

## ٣٠=بَابٌ مَنْ أَعَادَ الْحَدِيثَ ثَلَاثًا لِيُفْهَمَ عَنْهُ فَقَالَ أَلَا وَقَوْلُ الزُّورِ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ بَلَّغْتُ ثَلَاثًا [ر: ٢٥١١] [ر: ٤١٤١]

زمونږ په نسخو کښې په «ليفهم» باندې ترجمة الباب ختم دې. وړاندې د «عنه» لفظ نشته. په دې صورت کښې به دا د باب «إفعال» نه دمعروف صيغه هم کيدې شى. يعنى «لِيُفْهِمَ» او دمجهول صيغه هم کيدې شى. يعنى «لِيُفْهَمَ»

خو داصيلى او کريمى په نسخو کښې د «عنه» زيادت دې. نو په دې صورت کښې د مجهول صيغه متعين ده.[1]

**دمخکنى باب سره مناسبت** ددې باب دمخکنى باب سره مناسبت په دې طريقه دې. چه په سابقه باب کښې د سائل متعلم حال ذکر وو. او په دې باب کښې هم د متعلم دحال رعايت مذکور دې. ځکه چه نبى صلى الله عليه وسلم به د سائلينو او متعلمينو رعايت کولو. او درې درې ځله به ئې دکلام اعاده کوله. چه متعلمين ښه پوهه شى.[2]

**د ترجمة الباب مقصد** ابن المنير رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب سره په هغه کسانو باندې رد کوى. څوك چه دحديث اعاده بده ګڼړى. او کوم طالب علم چه داعادې مطالبه کوى. هغه غبى او کندذهن ګڼړى. دغه شان دوى فرمائى چه چونکه طبيعتونه مختلف وى. که طالبعلم پوهه نشى. نو د اعادې مطالبه دهغه دپاره څه عيب نه دې. دغه شان پکار ده چه معلم دپاره هم داعادې نه څه عذر مانع نشى.[3]

---

[1] فتح البارى(١٨٨\١) وعمدة القارى(١١٥\٢)_
[2] عمدة القارى(١٨٨\٢)_
[3] فتح البارى(١٨٩\١)_

خود ترجمة الباب دا مقصد د راتلونكى «باب من سمع شيأ فلم يفهمه ، فراجعه» سره زيات مناسب دي.

حضرت گنگوهي فرماني چه د ترجمة الباب نه دا مقصود دي چه مواضع د ضرورت اوحاجت كښي پكارده چه كلام دري دري خله اعاده كړي شي.لكه چه په روايت كښي كوم خاني كښي د تثليث ذكراغلي دي.نودهغي نه افهام مقصود دي.يا زيات اهتمام په وجه .اويا د دې ويرې چه د گنړې دوجې سامعين نه اوري.په ترجمة الباب كښي د «ليفهم...»قيد په دې باندې دلالت كوي.(١)

حضرت شيخ الهند رحمه الله هم د حضرت گنگوهي اتباع كړې ده. اوفرماني.چه په كومو مواقعو كښي د اعادې ضرورت اوحاجت وي.نواعاده به نې كوله.گنى په بعضې مواقعو كښې صرف اشاره هم ثابته ده.«كما مرسابقاً» ددې نه هم په تبليغ اوتفهيم كښې اهتمام طرف ته اشاره معلوميږي.معلم ته پكار دى.چه مقامات مشكله دوه دري خله مكرر كړي.چه اوريدونكو په پوهه كښې كمې پاتې نشي.(٢)

علامه سندهي رحمه الله هم تقريباً هم دا خبره كړې ده.هغوى فرماني.چه دا تكرار دهغه خايونوسره مخصوص دي.په كوموكښې چه د اعادۀ حاجت وو.گنى مطلقاً اعاده مقصود نه ده. خكه چه مونږ گورو په ډيرو مقاماتوكښې صحابه كرام رضي الله عنهم د نبي ﷺ ارشاد نقل كوي. اووائي. «قالها ثلاثاً» كه دنبي ﷺ عادت دا وو.چه هره خبره به نې دري خله كوله.نوبيا ددې تصريح څه وجه نه وه.(٣)والله أعلم.

**قوله**: فَقَالَ أَلَا وَقَوْلُ الزُّورِ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا: نبى ﷺ اوفرمائيل. واورئ.اود دروغو خبره،اونبى ﷺ مسلسل ددې خبرې تكراركولو.

دا دحضرت ابوبكره رضي الله عنه دحديث يوه حصه ده.كوم چه په كتاب الشهادات ،كتاب الادب، كتاب الاستيذان اوكتاب استتابة المرتدين كښې موصولاً مروى دي.(٤)

«ألا أنبئكم بأكبر الكبائر؟ ثلاثاً قالوا بلى يا رسول الله قال الإشراك بالله وعقوق الوالدين ، وجلس وكان متكئاً فقال ألا وقول الزور قال فما زال يكررها حتى قلنا ليته سكت»

---

(١) لامع الدرارى(١٢/٣٢٥و ٣٢٦)_

(٢) الأبواب والتراجم(ص٥٣،)_

(٣) الكنز المتوارى(١٢/٣٢٦)_

(٤) صحيح البخارى(١١/٣٦٢) كتاب الشهادات باب ما قيل فى شهادة الزور رقم (٢٦٥٤) و(١٢/٨٨٤) كتاب الأدب باب عقوق الوالدين من الكبائر رقم (١٢/٩٢٨) كتاب الإستيذان باب من إتكأ بين أصحابه رقم ٦٢٧٣ و ٦٢٧٤ (١٢/١٠٢٢) فاتحة كتاب إستتابة المرتدين والمعاندين وقتالهم باب إثم من أشرك بالله وعقوبته فى الدنيا والآخرة رقم ٦٩١٩)_

په دې روایت کښې ((ألا وقول الزور)) په باره کښې ذکردي.چه نبی ﷺ باربار ددې تکرار کولو. نبی ﷺ ددې د غټوالي په وجه دا باربار وئیل.معلومه شوه.که ضرورت وی.نود یوې خبرې د اهیمت اوغټوالي دوجې هغه مکرر بیانولې شی.

دلته یوسوال دا دې.چه امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې دې.((باب من أعاد الحديث ثلاثاً)) اوپه استدلال کښې ذکرکوی.((ألا وقول الزور فما زال يكررها)) چه نبی ﷺ ددې قول تکرار اوکړو. ددې نه خو ترجمة الباب نه ثابتیږی.

ددې یوجواب دا دې.چه دلته ((فما زال يكررها)) مذکور دې.د ((ثلاث)) مفهوم په دې کښې دننه پروت دې.نومدعا ثابته شوه.

ددې دویم جواب دا دې.چه په حقیقت کښې امام بخاری رحمه الله په ((فما زال يكررها)) سره استدلال نه دې کړې.بلکه دا حصه ئې ذکرکړې ده.اوپه دې سره ئې ددې حدیث اولنۍ حصې ته اشاره کړې ده.په کومه کښې چه نبی ﷺ فرمائیلي دی.((ألا أنبئكم بأكبر الكبائر ثلاثاً)) په دې صورکښې به د ترجمة الباب اثبات صریحي شی.((والله أعلم))

**قوله** وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ بَلَّغْتُ ثَلَاثًا: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی.چه نبی ﷺ درې خله اوفرمائیل.آیا ما رسول اوکړو.دا تعلیق د امام بخاری رحمه الله په مدعا باندې منطبق دې.

بیا دا تعلیق د نبی ﷺ د حجة الوداع د خطبې یوه ټکړه ده.کومه چه امام بخاری رحمه الله په مختلفو مقاماتوکښې ذکرکړې ده.([1]) البته ((ألا هل بلغت ثلاثاً)) ددې تصریح په کتاب الحدود کښې موصولاً مذکورده.([2])((والله أعلم))

[۹۵\۹۴]حَدَّثَنَا عَبْدَةُ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسٍ ([3])عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَلَّمَ سَلَّمَ ثَلَاثًا وَإِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا

[1])صحيح البخاری (۲۳۵\۱) كتاب الحج باب الخطبة أيام منى رقم ۱۷۴۲ و(۶۳۲\۲) كتاب المغازی باب حجة الوداع رقم ۴۴۰۳ (۸۹۲\۲ و ۸۹۳) كتاب الأدب باب قول الله تعالى ﴿يا أيها الذين آمنوا لايسخر قوم من قوم عسى أن يكونوا خيراً منهم..﴾) رقم ۶۰۴۳) و(۹۹۱\۲) كتاب الأدب باب ما جاء فی قول الرجل ويلك رقم ۶۱۶۶) (۱۰۰۳\۲) كتاب الحدود باب ظهر المؤمن حمى إلا فی حد أوحق رقم ۶۷۸۵) (۱۰۱۴\۲) كتاب الديات باب قول الله تعالى ﴿ومن أحياها..﴾) رقم ۶۸۶۸) (۱۰۴۸\۲) كتاب الفتن باب قول النبی ﷺ لاترجعوا بعدی كفاراً يضرب بعضكم رقاب بعض)) رقم ۷۰۷۷)_

[2])صحيح البخاری(۱۰۰۳\۲) كتاب الحدود باب ظهر المؤمن حمى إلا فی حد أو حق رقم ۶۷۸۵)_

[3]) قوله عن أنس رضي الله عنه :الحديث أخرجه البخاری فی نفس الباب رقم ۹۵ وفی (۹۲۳\۲) كتاب الإستيذان باب التسليم والإستيذان ثلاثاً رقم ۶۲۴۴ والترمذی فی جامعه فی كتاب الإستيذان باب ما جاء فی كراهية أن يقول عليك السلام مبتدئاً رقم ۲۷۲۳ وفی كتاب المناقب باب قول أنس رضي الله عنه كان رسول الله ﷺ يعيد الكلمة ثلاثاً ) رقم ۳۶۴۰)

# رجال الحديث

① عبدة رحمه الله: دا ابوسهل بن عبده بن عبده بن عبدالله بن عبده الخزاعى الصفار بصرى رحمه الله دې.[1]
دوى د حسين بن على جعفى ،روح بن عباده،ابوعاصم النبيل، عبدالصمد بن عبدالوارث، محمدبن بشرعبدى،يزيدبن هارون ،ابوداود حفرى ، اوابوداود طيالسى رحمهم الله وغيره نه علم حديث حاصل کړې دې.
ددوى نه حديث حاصلونکو کښې امام بخارى،امام ابوداود ،امام ترمذى، امام نسائى،امام ابن ماجه ،ابواسحاق ابراهيم بن فهد ساجى،يحيى ساجى، ابوحاتم محمدبن ادريس رازى،اوامام ابن خزيمه رحمهم الله وغيره ډيرحضرات دى.[2]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((صدوق))[3]

امام نسائى رحمه الله فرمائى.((ثقة))[4]

امام ابن حبان رحمه الله فرمائى.((مستقيم الحديث))[5]

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى.((ثقة))[6]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((ثقة))[7]

۲۵۸ه کښې يا دې ته نزدې نزدې دوى وفات شوى دى.[8]

② عبدالصمد رحمه الله: دا عبدالصمدبن عبدالوارث بن سعيدبن ذكوان تميمى عنبرى تنورى ،بصرى رحمه الله دې.ددوى کنيت ابوسهيل دې.[9]
دوى دخپل پلارعبدالوارث بن سعيد نه علاوه د ابان بن يزيد عطار ، ابراهيم بن سعد زهرى،هشام الدستوائى،عكرمه بن عمار،ابوخالدبن دنيار ،اسماعيل بن مسلم عبدى،ربيعه بن كلثوم ،شعبه بن الحجاج،همام بن يحيى، حرب بن شداد ،اوحماد بن سلمه رحمهم الله وغيره نه دحديث روايت کوى

---

1) تهذيب الكمال(۵۳۷\۱۸)_
2) دشيوخواوتلامذو دپاره اوګورئ.((تهذيب الكمال (۵۳۷\۱۸و ۵۳۸)_
3) تهذيب الكمال(۵۳۸\۱۸)_
4) المصدر السابق)_
5) الثقات لابن حبان(۴۳۷\۸)-
6) تهذيب التهذيب(۴۶۰\۶)
7) تقريب التهذيب(۳۶۹) رقم ۴۲۷۲)_
8) الكاشف (۶۷۷\۱۱) رقم ۳۵۲۸) وتهذيب التهذيب(۴۶۱\۶)_
9) تهذيب الكمال(۹۹\۱۸) وسير أعلام النبلاء(۵۱۶\۹)_

اودوى نه روايت كونكوكښي ،امام يحيى بن معين،امام اسحاق بن راهويه،امام احمدبن حنبل،امام محمدبن بشاربندار،،هارون بن عبدالله حمال ، عبد بن حميد ،محمدبن يحيى ذهلى،حجاج بن الشاعر،ابوقلابه رقاشى، او ددوى خونړ عبدالوارث بن عبدالصمد ﷺ وغيره حضرات دى.[1]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.«صدوق صالح الحديث»[2]

ابن سعد رحمه الله فرمائى.«وكان ثقة إن شاء الله»[3]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.«حجة»[4]

دغه شان دوى فرمائى«الإمام الحافظ الثقة»[5]

ابن معين رحمه الله فرمائى.«وكان والله ثقة»[6]

امام حاكم فرمائى.«ثقة مأمون»[7]

امام قانع رحمه الله فرمائى.«ثقة يخطئ»[8]

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى.«عبدالصمد ثبت فى شعبة»[9]

ابن نمير رحمه الله هم ددوى توثيق كړې دې.[10]

ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړې دى.[11]

په ۲۰۷ھ كښې وفات شوى وو.[12] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

③ عبدالله بن المثنى رحمه الله: دوى ابوالمثنى عبدالله بن المثنى بن عبدالله بن انس بن مالك انصارى رحمه الله دى.[13]

---

[1]) دشيوخو اوتلامذو دپاره اوګورئ(تهذيب الكمال (١٨\١٠٠و ١٠٢) وسير أعلام النبلاء(٩\٥١٦و ٥١٧)

[2])تهذيب الكمال(١٨\١٠٢)_

[3])الطبقات لابن سعد(٧\٣٠٠)_

[4])الكاشف(١\٣٥٣) رقم ٣٣٧٦)-

[5])سير أعلام ا لنبلاء(٩\٥١٦)_

[6])تعليقات تهذيب الكمال(١٨\١٠٢)_

[7])تهذيب التهذيب(٦\٣٢٨)-

[8])المصدر السابق)_

[9])المصدر السابق)_

[10])المصدر السابق)_

[11])الثقات لابن حبان(٨\٤١٤)_

[12])تهذيب الكمال(١٨\١٠٢)_

[13])تهذيب الكمال(١٦\٢٥)_

دوی دخپل تره ثمامه بن عبدالله بن انس،ثابت بنانی،حسن بصری، عبدالله بن دینار،علی بن زید بن جدعان،فضاله بن حصین عطار،موسی بن انس بن مالک،اونضربن انس بن مالك رحمهم الله نه دحدیث روایت کړې دې.

ددوی نه عبدالصمد،عبدالوارث محمدبن عبدالله انصاری،مسددبن مسرهد،مسلم بن ابراهیم،معلی بن اسد اوخالدبن خداش رحمهم الله وغیره حضراتو روایت کړې دې.[1]

امام یحیی بن معین،ابوزرعه،اوابوحاتم رحمهم الله فرمائی.«صالح»[2]

ابوحاتم ورسره د«شیخ»زیادت هم کړې دې.[3]

امام ترمذی رحمه الله فرمائی.«ثقة»[4]

امام عجلی رحمه الله فرمائی.«ثقة»[5]

امان ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی.اولیکلی ئې دی.«ربما أخطأ»[6]

دابن معین رحمه الله نه ددوی په باره کښې «لیس بشیئ» هم منقول دی.[7]

زکریا ساجی رحمه الله فرمائی.«فیه ضعف لم یکن من أهل الحدیث روی مناکیر»[8]

امام نسائی رحمه الله فرمائی«لیس بالقوی»[9]

امام ابوداود رحمه الله فرمائی.«لاأخرج حدیثه»[10]

امام ابوداود ددوی په باره کښې د ابوسلمه نه نقل کړی دی.«وکان ضعیفاً منکر الحدیث»[11]
البته امام دارقطنی رحمه الله دوی ته یوځل ثقه وئیلی دی.اوبل ځل ئې ضعیف ګرځولې دې.[12]

امام عقیلی رحمه الله فرمائی«لایتابع علی أکثر أحادیثه»[13]

---

[1])دشیوخُ اوتلامذهُ دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۱۶\۲۵و ۲۶)_
[2])تهذیب الکمال(۱۶\۲۶)_
[3])المصدرالسابق)_
[4])جامع الترمذی کتاب العلم باب ما جاء فی الأخذبالسنة وإجتناب البدعة رقم ۲۶۷۸)_
[5])تهذیب الکمال(۱۶\۳۸۸)_
[6])تهذیب الکمال(۱۶\۲۷)_
[7])میزان الإعتدال(۲\۵۰۰) رقم(۴۵۹۰)_
[8])تهذیب الکمال(۵\۳۸۸) ومیزان الإعتدال(۲\۴۹۹) رقم ۴۵۹۰)_
[9])تهذیب الکمال(۱۶\۲۷)_
[10])المصدرالسابق)_
[11])الضعفاء الکبیرللعقیلی(۲\۳۰۴) رقم ۸۸۲)_
[12])تهذیب الکمال(۵\۳۸۸)_
[13])الضعفاء للعقیلی(۲\۳۰۴) رقم ۸۸۲)_

خلاصه دا شوه.چه عبدالله بن مثنى بعضې حضراتومثلاً امام ترمذى، امام عجلى وغيره مطلقاً ثقه گرخولې دې.اوبعضې حضراتومثلاً ابن معين،ابوزرعه،اوابوحاتم وغيره د ده توثيق کړې دې البته د توثيق اعلىٰ الفاظ ئې نه دى استعمال کړې.اوبعضې حضراتو ددوى تضعيف کړې دې.

چه دې ټولواقوالوته اوکتلې شى.نوصحيح رائې هغه ده.کومه چه حافظ ابن حجر رحمه الله قائمه کړې ده.يعنى ((صدوق كثير الغلط))(١)

يعنى ددوى په عدالت کښې خوځه کمې نشته.البته د ضبط د کمى په وجه ضعيف گرخولې شوې دې.

ترکومې پورې چه په صحيح بخارى کښې د داسې راوى د روايت تعلق دې.نواگرچه عبدالله بن مثنى رحمه الله د صحيح بخارى د عامو راويانوپشان مضبوط نه دې.خوبعضې وخت امام بخارى رحمه الله په خپل اجتهاد سره د بعضې داسې راويانوبعضې داسې مخصوص روايتونه قبلوى.په کوموکښې چه انکار نه وى.(٢) بيا خاص کرچه متابع موجود وى.دلته هم داسې ده.

چه په صحيح بخارى رحمه الله کښې د عبدالله بن مثنى رحمه الله په رواياتوباندې غور اوکړې شى.نومعلومه به شى.چه ددوى زيات روايات دخپل تره ثمامه نه دى.اوسړې دخپل خاندان داحاديثو زيات اهتمام کوى.ددې وجې ددوى نه ئې روايت قبول کړې شوى دى.(٣) حالانکه يو روايت د ثابت بنانى رحمه الله نه نقل کوى.په هغې کښې ددوى تره ثمامه هم شريك دې.او د هغوى متابع روايت هم موجود دې.دغه شان يو روايت دعبدالله بن دينار رحمه الله نه نقل دې دهغې متابع هم موجود دې.(٤)

ذکرشوى تقرير په رڼا کښې د امام ابن معين قول چه ((ليس بشئ))دامام نسائى قول ((ليس بالقوى)) مونږ ديومخصوص روايت سره خاص کوو .(٥) ددې رواياتوپه بناء امام بخارى رحمه الله د دوى روايتونه قبول کړى دى.والله اعلم.

دامام بخارى رحمه الله نه علاوه امام ترمذى،امام ابن ماجه رحمهما الله هم ددوى په احاديثو احتجاج کوى.(٦) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

---

(١)تقريب التهذيب (ص.٣٢٠) رقم ٣٥٧١٠)_

(٢)قال الحافظ رحمه الله وقد تقرر أن البخارى حيث يخرج لبعض من فيه مقال لا يخرج شيأ مما أنكر عليه فتح البارى (١٨٩\١٢)-

(٣)والذى أنكر عليه إنما هو من روايته عن غيرعمه ثمامة، والبخارى إنما أخرج له عن عمه هذا الحديث وغيره ولاشک أن الرجل أضبط لحديث آل بيته من غيره فتح البارى(١٨٩\١١)_

(٤)هدى السارى(ص.٤١٦)_

(٥)قال الحافظ فى فتح البارى(١٨٩\١١) وقال النسائى ليس بالقوى قلت القائل الحافظ لعله أراد فى بعض حديثه .. وقول ابن معين رحمه الله ليس بشئ أراد فى حديث بعينه سل عنه)-

(٦)هدى السارى(٤١٦)_

④ ثمامه بن عبدالله رحمه الله: دا ثمامه بن عبدالله بن انس بن مالك انصارى بصرى رحمه الله دي. دوى دبصرې قاضى هم پاتې شوى دى.[1]

دوى دخپل نيكه انس بن مالك رضي الله عنه نه علاوه دحضرت براء بن عازب. اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه هم دحديث روايت كړې دې. اګرچه ددوى د حضرت ابوهريره رضي الله عنه سره ملاقات نه وو شوې.

ددوى نه په روايت كونكوكښې حبيب بن الشهيد، حسين بن واقد مروزى، حمادبن سلمه، حميدالطويل، عبدالله بن عوان، ددوئ ورارهٔ عبدالله بن مثنى، عزره بن ثابت انصارى. عوف الاعرابى، قتاده بن دعامه، «وهومن أقرانه» مالك بن دينار، اومعمربن راشد رحمهم الله وغيره دى.[2] امام احمدبن حنبل اوامام نسائى رحمهما الله فرمائى. «ثقة»[3]

امام عجلى رحمه الله فرمائى. «تابعى ثقة»[4]

ابن شاهين رحمه الله هم ددوى توثيق كړې دې.[5]

ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى[6]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. «ثقة»[7]

دغه شان دوى فرمائى. «وكان من العلماء الصادقين ولى قضاء البصرة وكان يقول صحبت جدى ثلاثين سنة»[8]

البته حافظ ابن عدى رحمه الله دابويعلى په واسطه د امام يحيى بن معين رحمه الله نه ددوى تضعيف ته اشاره كړې ده.[9]

په اصل كښې د امام يحى بن معين رحمه الله تضعيف مطلقاً نه دې بلكه د بخارى د يو روايت په باره كښې دې. كوم چه د «كتاب الصدقات» په نوم سره مشهور دې. دا مكتوب حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه حضرت انس رضي الله عنه ته په هغه وخت كښې وركړې وو كله چه ئې هغه بحرين ته ليږل.[10]

---

[1] تهذيب الكمال(٤٠٥\٤)_
[2] د استاذانو اوشاګردانودتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(٤٠٥\٤ و ٤٠٦)_
[3] تهذيب الكمال(٤٠٦\٤)_
[4] تهذيب الكمال(٢٩\٢)_
[5] تعليقات تهذيب الكمال(٤٠٨\٤)_
[6] الثقات لابن حبان (٩٦\٤)_
[7] الكاشف(٢٨٥\١) رقم ٧١٦)_
[8] سير أعلام النبلاء(٢٠٥\٥)_
[9] الكمال لابن عدى(١٠٨\٢)_
[10] صحيح بخارى (١٩٥\١ و ١٩٦)_ كتاب الزكاة باب زكاة الغنم رقم ١٤٥٤)_

ددې كتاب په باره كښې د بعضې محدثينو ﷺ وينا ده.چه دحضرت انس رضی الله عنه نه دوی ته ددې سماع حاصله نه ده.دغه شان دعبدالله بن مثنی نه ثمامه ته ددې باقاعده سماع حاصله نه ده.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله په مقدمه د فتح البارى كښې ددې كافى اوشافى جواب ليكلې دې.(٢) حاصل دا چه امام يحيى بن معين رحمه الله خو اول د ثمامه به عبدالله مطلقاً تضعيف نه دې كړې.بلكه دهغوى دا تضعيف ديوخاص روايت سره مختص دې.بيا په دغه خاص روايت كښې هم ددوى تضعيف معتبر نه دې.هم دا وجه ده.چه حافظ ابن عدى رحمه الله ددوى په ترجمة كښې ليكى.((ولثمامة عن أنس أحاديث وأرجو أنه لابأس به وأحاديثه قريبة من غيره وهو صالح فيما يرويه عن أنس عندى))

خلاصه دا چه ثمامه بن عبدالله ثقه راوى دې.چا هم ددوى تعضيف نه دې كړې.نوحافظ چه دوى صرف ((صدوق)) گرخولې دې.دا خبره قابل د غورده.(٣) رحمه الله تعالى رحمةً واسعةً.

⑤ انس رضی الله عنه: دحضرت انس رضی الله عنه حالات په كتاب الايمان كښې د((باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه)) لاندې ذكركړې دې.(٤)

**قوله عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَلَّمَ سَلَّمَ ثَلاثًا:** حضرت انس رضی الله عنه دنبى ﷺ په باره كښې نقل كوى.چه كله به نبى ﷺ سلام كولو.نودرې خله به ئې سلام كولو.

علامه خطابى رحمه الله فرمائى.چه دنبى ﷺ درې خله سلام كول د استيذان په موقع باندې وو يعنى كله چه به نبى ﷺ چاته تشريف يوړلو.نواول به ئې سلام كولو.كه اجازت به ورته ملاو نشو.نوپه دويم ځل به ئې سلام كولو.اودهغه شان كه په دويم ځل به هم اجازت ملاو نشو.(يعنى چا به د سلام جواب ورنكړو) نو نبى ﷺ به په دريم ځل سلام اوكړو.(٥) ددى تائيد د نبى ﷺ ددې ارشاد نه هم كيږى.په كوم كښې چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.((إذا إستأذن أحدكم ثلاثاً ألم يؤذن له فليرجع))(٦)

دغه شان دحضرت سعدبن عباده رضی الله عنه واقعه ده.چه نبى ﷺ ددوى كورته تشريف يوړو.سلام

---

(١)قاله الدارقطنى انظرهدى السارى.(ص.٣٥٧و ) الفصل الثامن الحديث الحادى والعشرون)_

(٢)هدى السارى( ٣٥٧) الفصل الثامن الحديث الحادى والعشرون وفتح البارى (٣١٨\٣) كتب الزكاة باب زكاة الغنم )_

(٣)تقريب التهذيب( ١٣٤) رقم ٤٥٣)_

(٤)كشف البارى(٤١٢)_

(٥)أعلام الحديث(٢٠٨\١)-

(٦)صحيح بخارى(٩٢٣\٢) كتاب الإستيذان باب التسليم والإستيذان رقم (٥١٨٥)_

نې اوکړو خوجواب ورته ملاو نشو.نبی ﷺ دوباره سلام اوکړو.خوجواب ملاو نشو.په دريم خل نې سلام اوکړو.خوجواب ملاو نشو.نبی ﷺ واپس روان شو.حضرت سعد رضی الله عنه په نبی ﷺ پسې ورمنډه کړې.اوعرض نې اوکړو.يا رسول الله مابه هرخل په خپلو غوږونوستاسو سلام اوريدل.اوپه مزه به مې جواب درکولو.په زوره مې جواب نه درکولو.دې دپاره چه ستاسود سلام برکتونه راته زيات نه زيات حاصل شي.دغه شان نبی ﷺ دوباره هغوی سره دهغوی کور ته واپس شو.(١)

امام اسماعيلی رحمه الله هم دا ذکرکړی دی.چه دا سلام،سلام داستيذان دې.(٢)

علامه سندهی رحمه الله هم دا قول اختيارکړې دې.(٣)

خوپه دې باندې اشکال دا دې.چه داستيذان دپاره چه کله سلام اوکړې شي.اوپه اول خل اجازت ملاؤ شي.نودوباره د سلام کولوحاجت نشته.(٤)

ددې جواب دا دې.چه درې خله د استيذان مطلب دا نه دې.چه هميشه دپاره به درې خله سلام اچوی.بلکه مطلب دا دې.چه د نبی ﷺ د استيذان آخری حد درې خله وو که په اول خل به اجازت ملاؤ شو.هغه به کافی وو.کنی په دويم خل به نې سلام اچولو.که اجازت به ملاؤ شوتيك به وه.کنی په دريم خل به نې سلام اچولو.که اجازت به ورته ملاؤ شو.نوديره به کنی واپس به شو.(٥)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه په درې سلامونوکښې به اول د استيذان دپاره وو اودويم به د تحيه دپاره وو.يعنی د ملاقات سلام وو.اودريم به د توديع يعنی د رخصتی سلام وو.(٦)

خوحضرت کنګوهی رحمه الله فرمائی.چه دا سلامونه په استيذان،تحيه او توديع باندې حمل کول اګرچه د معنی په اعتبارسره صحيح دی.خو دباب په مناسبت سره صحيح نه دی.(٧)

شاه ولی الله رحمه الله فرمائی.چه دلته په هره موقع باندې درې خله سلام کول مراد نه دی.بلکه چه کله به جمع عفيره وه.اوخلق به خوارة وارة وو.نو نبی ﷺ به د سلام د رسولودپاره درې خله سلام کولو.يوه مخامخ،دويم ښی طرف ته اودريم ګس طرف ته،ځکه چه د نبی ﷺ دسلام به تپولوارمانی وو.(٨)

حضرت کشميری رحمه الله فرمائی.چه کله به نبی ﷺ لوی جمعې ته ورداخليدو.نويوسلام خو به نې د داخليدو په وخت کښې کولو.دويم سلام چه کله به د مجلس مينځ ته اورسيدو او

---

(١)سنن أبی داود كتاب الأدب بَب كم مرة يسلم الرجل فی الإستيذان رقم (٥١٨٥)_

(٢)فتح الباری(١١\١٨٩)_

(٣)حاشية السندی علی البخاری(١\٥١)-

(٤)شرح الكرمانی(٢\٨۶)_

(٥)إيضاح البخاری(۶\١٢٤)_

(٦)شرح الكرمانی(٢\٨۶)_

(٧)لامع الدراری(٢\٣٢٧و ٣٢٨)_

(٨)إيضاح البخاری(۶\١٢٥)_

دريم سلام چه كله به د مجلس آخرته اورسيدو كولو (١)

**قوله** وَإِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا: اوكله چه به نبى ﷺ څه خبره كوله نوهغه به نې درې ځله كوله. د كلمې نه مراد نحوى كلمه مراد نه ده بلكه خبرې اترې مراد دى.

په وړاندينى حديث كښې د «حتى تفهم عنه» قيد هم موجود دې. دهغې په رڼړا كښې دا معلومېږى. چه دنبى ﷺ په هرخانې كښې دتكرار عادت نه وو. بلكه تكراربه نې په هغه موقع كولو. په كومه چه به افهام مقصود وو. مثلاً چه نبى ﷺ سره به ويره وه. كه خبره يوځل واورى. نوزده به نې نكړى. يا به نبى ﷺ په هغه موقع باندې تكراركولو. په كومه موقعه چه به نې ابلاغ. تعليم اوتبليغ مقصود وو. يا چه به كله مجمع زياته وه. اوآواز به خلقو ته نه رسيدل. يا به زجرمقصود وو. نونبى ﷺ به تكراركولو.

كه دائمى عادت وو. نوصحابه كرامو ﷺ چه دنبى ﷺ ارشادات نقل كول. نودا به نې ولې ونيل. چه «قالها ثلاثا» يا «كررها ثلاثا» وغيره. په مخصوص مواقعو كښې تكراردې خبرې دليل دې. چه تكرار دائمى عادت نه وو. بلكه په اهمو مواقعو كښې به نې تكراركولو. والله اعلم.

**تنبيه** دا خبره دې معلومه وى. چه دا حديث زمونږ د پاك وهند په نسخو كښې موجود نه دې. بلكه په مصرى نسخو كښې دې. (٢)

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى. چه دا روايت د ابن عساكراوابوذر په نسخو كښې نشته. حالانكه راوران حديث هم دا حديث دې. دهغې سند هم دا دې. نود دويم حديث په وجه د اولنى حديث نه استغناء هم كيدې شى. (٣) والله اعلم.

[٩٥] حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنَا ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسٍ (٤) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا حَتَّى تُفْهَمَ عَنْهُ وَإِذَا أَتَى عَلَى قَوْمٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثًا [ر: ٥٨٩٠]

دا سند داولنى حديث لاندې بعينه تيرشوې دې. هلته تراجم رجال ليكلى شوى دى.

**قوله** عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا حَتَّى تُفْهَمَ عَنْهُ: دنبى كريم ﷺ په باره كښې نقل كوى. چه كله به دوى خبرې كولې. نودرې ځله به نې خبرې كولې. دې دپاره چه ددوى خبرې ښه زده كړې شى

---

١) فيض البارى (١٩٢/١)_

٢) النزالمتوارى فى معادن لامع الدرارى وصحيح البخارى (٣٢٥/٢)_

٣) ارشاد السارى للقسطلانى (١٩٢/١)_

٤) قوله عن أنس قد سبق تخريج هذا الحديث آنفاً)-

**قوله** وَإِذَا أَتَى عَلَى قَوْمٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثًا: اوكله چه به نبى ﷺ يوقوم ته تشريف اوړلو .اوسلام به ئې كولو .نودرې خله به ئې سلام كولو
دحديث تشريح دمخكنى حديث لاندې تيره شوې ده.
ترجمه- الباب دحديث الباب نه ښكاره واضح دې.والله اعلم

[٩٦] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو(١) قَالَ تَخَلَّفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ سَافَرْنَاهُ فَأَدْرَكَنَا وَقَدْ أَرْهَقْنَا الصَّلَاةَ صَلَاةَ الْعَصْرِ وَنَحْنُ نَتَوَضَّأُ فَجَعَلْنَا نَمْسَحُ عَلَى أَرْجُلِنَا فَنَادَى بِأَعْلَى صَوْتِهِ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا [ر: ٦٠]

## رجال الحديث

① مسدد رحمه الله: دا مشهورمحدث مسدد بن مسرهد اسدى رحمه الله دې.ددوى مختصر حالات په «كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه» لاندې تيرشوى دى.(٢)

② ابوعوانه رحمه الله: دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله يشكرى رحمه الله دې.ددوى مختصره تذكره هم د «بدء الوحى» كښې د دريم حديث لاندې تيره شوې ده.(٣)

③ ابوبشر رحمه الله: دا ابوبشرجعفربن اياس يشكرى واسطى بصرى دې.ددوى حالات په كتاب العلم كښې د «باب من رفع صوته بالعلم» لاندې تيرشوى دى.

④ يوسف بن ماهك رحمه الله: دا يوسف بن ماهك بن بهز اوفارسى مكى دې.ددوى حالات هم په كتاب العلم كښې د «باب من رفع صوته بالعلم» لاندې تيرشوى دى.

⑤ عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما: دعبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما حالات د «كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوى دى.(٤)

**قوله** قَالَ تَخَلَّفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ سَافَرْنَاهُ فَأَدْرَكَنَا وَقَدْ أَرْهَقْنَا الصَّلَاةَ صَلَاةَ الْعَصْرِ وَنَحْنُ نَتَوَضَّأُ فَجَعَلْنَا نَمْسَحُ عَلَى أَرْجُلِنَا فَنَادَى بِأَعْلَى صَوْتِهِ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا: حضرت عبدالله بن عمروبن

---

(١) قوله عن عبدالله بن عمرو.. قد سبق تخريج هذا الحديث فى كتاب العلم باب من رفع صوته بالعلم رقم ٦٠)
(٢) كشف البارى(٢\١٢)_
(٣) كشف البارى(٤٣٤)_
(٤) كشف البارى(١\٦٧٩گ)_

العاص ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ په یوسفر کښې زمونږ نه روسته پاتې شوې وو .اوبیا نې مونږ رالاندې کړو حالانکه په مونږ باندې دمازیګرمونځ راغلې وو .اومونږ اودسونه کول نومونږ په خپلو پوندو باندې اوبه شیندلې.(یعنی معمولی وینځل موکول لکه چه مسح وه) نو نبی ﷺ په اوچت آواز سره دوه یا درې ځله اوونیل. د پوندو دپاره خرابی ده.

**قوله** فأدركنـا: دکاف په فتحة سره د باب افعال نه د ماضی صیغه ده.دې سره دجمع متکلم صیغې ضمیرمنصوب متصل دې.اود «أدرك» فاعل نبی ﷺ دې.

**قوله** أرهقنـا: دقاف په سکون سره دا دباب افعال نه دجمع متکلم صیغه ده.په دې صورت کښې به «الصلاة، صلاة العصر» منصوب وی.دلته دا امکان هم تشته.چه «ارهقتنا» دقاف په فتحة سره وی.په دې صورت کښې به «الصلاة» د فاعل په وجه مرفوع وی.

داصیلی په نسخه کښې «ارهقتنا» دی.په دې صورت کښې به «الصلاة» مرفوع وی.او «صلاة العصر»هم ظاهره ده.چه د بدلیت په وجه مرفوع دې.(١)

**قوله** مرتين أوثلاثاً: د راوی شك دې.چه نبی ﷺ «ويل للأعقاب من النار» دوه ځله اوفرمائیل که درې ځله.

ددې نه معلومه شوه.چه درې ځله شرط نه دې.بلکه اصل مقصود تفهیم دې.که د دریو ځلونه په کم سره دا مقصود حاصلیږی.نوکافی ده.(٢)

دا حدیث وړاندې په کتاب العلم کښې په «باب من رفع صوته بالعلم» کښې تیرشوې وو .اوددې ضروری تشریح هم هلته شوې ده.دغه شان وړاندې په کتاب الطهارت کښې به هم راشی.

## ٣١=بَاب تَعْلِيمِ الرَّجُلِ أَمَتَهُ وَأَهْلَهُ

**د مخکنی باب سره مناسبت** په دواړو بابونوکښې مناسبت په دې طریقه دې.چه په مخکنی باب کښې دعام تعلیم ذکروو .اوپه دې باب کښې د خاص تعلیم ذکردې.(٣) **والله أعلم.**

**د ترجمة الباب مقصد** حضرت شیخ الهند ﷫ فرمائی.چه ددې باب نه هم هغه مقصد دې.کوم چه د باب سابق وو .یعنی د ضرورت د تعلیم اوتعمیم د تعلم مقصود دې.د دې وجې نې په کښې د «أهله» زیادت اوکړو.حالانکه په حدیث کښې صرف «أمته» ذکردې.(٤)

---

(١)عمدة القاری (١١٧\٢) وفتح الباری (١٨٩\١)_
(٢)فتح الباری(١٨٩\١)_
(٣)عمدة القاری(١١٧\٢)_
(٤)الأبواب والتراجم(ص.٥٣)_

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائي چه د ترجمة الباب مقصد دا دي چه د سړي دپاره د خپلې وينځې نه علم حاصلولو کښې استنکاف (شرم) نه دی کول پکار.دغه شان پکار دی چه مولی ددې په خدمت کښې حرج نه ګڼړی تعليم د وينځې اوبی بی حق دې.لکه څنګه چه دده خدمت دهغوی په ذمه حق دی.(١)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائي چه د ترجمې مقصد دا دې. چه سړې د نبی ﷺ د ارشاد په وجه چه «كلكم راع وكلكم مسؤل عن رعيته»(٢) په وجه دخپلو کور دخلقو د تعليم ذمه وار دې.چونکه په حديث کښې صرف د تعليم امة ذکروو.دتعليم اهل ذکرنه وو نوپه دې خبره باندې د تنبيه ورکولودپاره چه دا حکم د وينځې سره خاص نه دې.بلکه اهل ته په طريق اولی سره شامل دې.په ترجمه کښې ئې د «اهل» زيادت اوکړو.لکه چه دا ئې اوخودل. چه هرکله وينځې ته تعليم ورکول مطلوب دې.نوحرانرو ته خو به تعليم ورکول په طريقه اولی سره مطلوب وی.(٣)

[٩٧] أَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ ابْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ حَيَّانَ قَالَ قَالَ عَامِرٌ الشَّعْبِيُّ حَدَّثَنِي أَبُو بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ() قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَهُمْ أَجْرَانِ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهِ وَآمَنَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَبْدُ الْمَمْلُوكُ إِذَا أَدَّى حَقَّ اللَّهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ أَمَةٌ يَطَؤُهَا فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ تَأْدِيبَهَا وَعَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيمَهَا ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا فَلَهُ أَجْرَانِ ثُمَّ قَالَ عَامِرٌ أَعْطَيْنَاكَهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ قَدْ كَانَ يُرْكَبُ فِيمَا دُونَهَا إِلَى الْمَدِينَةِ [٢٤٠٦، ٢٤٠٩، ٢٤١٣، ٢٨٤٩، ٢٣٦٢، ٤٧٩٥]

---

(١) لامع الدراری (٢\٣٢٩و ٣٣٠)_

(٢) صحيح بخاری (١\١٢٢) كتاب الجمعة باب الجمعة فی القری والمدن رقم ٨٩٣)_

(٣) الكنزالمتواری (٢\٣٢٨)_

قوله عن أبيه الحديث أخرجه البخاری أيضا فی (١\٣٤٦) كتاب العتق باب فضل من أدب جاريته وعلمها رقم ٢٥٤٤ وباب العبد إذا أحسن عبادة ربه ونصح سيده رقم ٢٥٤٧ وباب كراهية التطاول على الرفيق رقم ٢٥٥١ وفی (١\٤٢٢) كتاب الجهاد والسير باب فضل من أسلم من أهل الكتابين رقم ٣٠١١ وفی (٤٩٠) كتاب أحاديث الأنبياء باب ذكر فی الكتاب مريم رقم ٣٤٤٦ وفی (٢\٧٦١) كتاب النكاح باب إتخاذ السراری ومن أعتق جاريته ثم تزوجها رقم ٥٠٨٣ ومسلم فی صحيحه فی كتاب الإيمان باب وجوب الإيمان برسالة نبينا محمد ﷺ إلى جميع الناس ونسخ الملل بملته رقم ٣٨٧و ٣٨٨) وفی كتاب النكاح باب فضيلة إعتاقه أمته ثم يتزوجها رقم ٣٤٩٩ والنسائی فی سننه فی كتاب النكاح باب عتق الرجل جاريته ثم يتزوجها رقم ٣٣٤٦ و(٣٣٤٧) والترمذی فی جامعه فی كتاب النكاح باب ما جاء فی الفضل فی ذلك رقم ١١١٦ وابن ماجه فی سننه فی كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها رقم ١٩٥٦)_

## رجال الحدیث

① محمد رحمه الله: دا ابوعبدالله بن محمدبن سلام بیکندی دي. ددوی حالات په کتاب الایمان کښې د «باب قول النبی ﷺ أنا أعلمکم بالله وأن المعرفة فعل القلب» لاندې تیرشوی دی.(۱)

② المحاربی رحمه الله: دا عبدالرحمن بن محمد بن زیاد محاربی کوفی رحمه الله دي. ددوی کنیت ابومحمد دي.(۲)

دوی دعبدالملك بن عمیر، لیث بن ابی سلیم، اسماعیل بن ابی خالد ، امام اعمش، فضیل بن غزوان، عاصم الاحول، عماربن سیف، اولیث بن سعد رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.

اوددوی نه روایت کونکوکښې امام احمدبن حنبل، ابوکریب، محمدبن العلاء، محمدبن سلام بیکندی، ابوسعید الاشج، حسن بن عرفه، هنادبن السری ، ابوبکربن ابی شیبه. او عثمان بن ابی شیبه رحمهم الله وغیره دی.(۳)

امام یحی بن معین رحمه الله فرمائی. «ثقة»(۴)

امام نسائی رحمه الله فرمائی. «ثقة»(۵)

دغه شان دوی فرمائی «لیس به بأس»(۶)

امام ابن سعد رحمه الله فرمائی. «ثقة کثیرالغلط»(۷)

امام بزار رحمه الله فرمائی. «ثقة»(۸)

ابن شاهین رحمه الله فرمائی. «ثقة»(۹)

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی. «ثقة» (۱۰)

امام ذهبی رحمه الله فرمائی. «الحافظ الثقة..»(۱۱)

---

(۱) کشف الباری(۲\۹۳) _

(۲) تهذیب الکمال(۱۷\۳۸۶)_

(۳) داستاذانواوشاګردانوتودپاره اوګورئ تهذیب الکمال(۱۷\۳۸۶و۳۸۸)وسیر أعلام النبلاء (۹\۱۳۶و ۱۳۷)

(۴) تهذیب الکمال(۱۷\۳۸۹)_

(۵) المصدرالسابق)_

(۶) المصدرالسابق)_

(۷) الطبقات (۶\۳۹۲)_

(۸) کشف الأستارعن زوائد البزار(۳\۲۱۹) کتاب علامات النبوة باب مناقب جماعة رقم ۲۶۰۶)_

(۹) تعلقات تهذیب الکمال(۱۷\۳۸۹)_

(۱۰) تهذیب التهذیب(۶\۲۶۶)_

(۱۱) سیر أعلام النبلاء(۹\۱۳۶)_

دغه شان دوى فرمانى .((ثقة يغرب))(۱) دغه شان دوى فرمانى .((ثقة صاحب حديث))(۲)
ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى.(۳)
البته ابن معين رحمه الله فرمانى ((يروى المناكير عن مجهولين د احاديث منكرى ففسد حديثه بذلك))(۴)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمانى .((صدوق يروى عن مجهولين أحاديث منكرة ففسد حديثه بذلك))(۵)

امام احمد رحمه الله فرمانى .((بلغنا أن المحاربى كان يدلس))(۶)
خلاصه دا چه اكثرو عالمانو رحمهم الله ددوى توثيق كړې دې.خوبعضې عالمانو په دوى باندې كلام هم كړې دې.
تركومې پورې چه په بخارى كښې د دوى د احاديثو د اخراج تعلق دې. نودوى ددې په وجه قابل اعتراض نه دى.چه اول خواكثروحضراتودې ثقه گرخولې دې دويمه دا چه كومو حضراتو پرې كلام كړې دې.نوهغوى په دې وجه كلام كړې دې.چه دوى د مجهولينونه روايت كوى.نوكه دمجهولينونه روايت نه وى.نود دوى احاديث به بې شكه بې شبهې قابل احتجاج وى.
بيا داخبره دې هم معلومه وى.چه امام بخارى رحمه الله صرف په دوو ځايونوكښې ددوى نه داحاديثو تخريج كړې دې.(۷) خو په دواړو ځايونوكښې ددوى متابع موجود دى.(۸)
دوى په ۱۹۵ هـ كښې وفات شوى وو.(۹) رحمه الله تعالى رحمةً واسعةً.

④ صالح بن حيان رحمه الله: دا صالح بن حيان ثورى همدانى كوفى دې بعضې حضراتو صالح بن صالح بن مسلم بن حيان ونيلى دى.(۱۰) خو..حيان.. د..حى.. په لقب سره زيات مشهور دې.(۱۱)

---

(۱)الكاشف(۶۴۲\۱)رقم ۳۳۰۵)_
(۲)ميزان الإعتدال(۵۸۵\۲) رقم ۴۹۵۲)_
(۳)الثقات لابن حبان(۹۲\۷)_
(۴)ميزان الإعتدال(۵۸۵\۲) رقم ۴۹۵۲)_
(۵)المصدر السابق)_
(۶)المصدر السابق)_
(۷)يوخو په حديث باب كښې دې.دكوم تخريج چه وړاندې تيرشو.اودويم مقام صحيح بخارى (۱۳۲\۱) كتاب العيدين باب ما يكره من حمل السلاح فى العيدوالحرم رقم ۹۶۶)_
(۸)هدى السارى (ص.۴۱۹)_
(۹)الكاشف (۶۴۲\۱) رقم ۳۳۰۵)-
(۱۰)تهذيب الكمال(۵۴\۱۳)
(۱۱)فتح البارى(۱۹۰\۱)_

دوی کله نیکه طرف ته منسوب کوی اوصالح بن حی وائی.اوکله صالح بن حیان.([1])
دوی دعلی بن صالح بن حی اوحسن بن صالح بن حی پلار دې.([2])
دوی دسلمه بن کهیل،سماک بن حرب،عاصم الاحول،امام عامرشعبی، عون بن عبدالله اوقاسم بن صفوان رحمهم الله وغیره حضراتو نه روایت کوی.
ددوی نه روایت کونکوکښې ددوی خونې حسن بن صالح بن حی ،علی بن صالح بن حی. حفص بن غیاث،سفیان ثوری،سفیان بن عیینه،امام شعبه، عبدالله بن المبارک،عبدالرحمن بن محمد المحاربی،هشیم بن بشیر،ابوعوانه اویحی بن زکریا بن ابی زائده رحمهم الله وغیره دی.([3]) امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی.«ثقة ثقة»([4])
امام یحی بن معین او اما نسائی رحمهماالله فرمائی.«ثقة»([5])
امام عجلی رحمه الله فرمائی.«كان ثقة»([6])
ابن خلفون رحمه الله فرمائی.«وهوثقة»([7])
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«ثبت»([8])
تنبیه حافظ مزنی رحمه الله د امام عجلی رحمه الله نه د توثیق نقل کولونه پس زیاتی دا لیکی «وقال موضع آخر جائز الحديث يكتب حديثه وليس بالقوى» ([9])
ددوی په تابعداری کښې حافظ ذهبی رحمه الله په «میزان الإعتدال» کښې لیلکی دی.«لیس بقوی»([10]) بیا سبط بن العجمی رحمه الله هم ددوی اتباع کړې ده.اولیکلی ئې دی.«قال العجلی عن صالح بن صالح بن حی لیس بقوی» ([11])حالانکه حقیقت دا دې چه د امام عجلی رحمه الله دا کلام دیوبل راوی صالح بن حیان قرشی کوفی په باره کښې دې.([12])

---

[1])الکاشف(٤٩٥\١) رقم( ٢٣٤٢)-
[2])تهذیب الکمال(٥٥\١٣)_
[3]) داستاذانو او شاګردانودپاره اوګورئ تهذیب الکمال(٥٥\١٣و ٥٦)_
[4])تهذیب الکمال(٥٦\١٣)_
[5])تهذیب الکمال(٥٦\١٣) وتهذیب التهذیب( ٣٩٣\٤)_
[6])المصادرالسابقة)_
[7])تهذیب الکمال( ٣٩٣\٤)_
[8])الکاشف(٤٩٥\١) رقم ٢٣٤٢)_
[9])تهذیب الکمال(٥٦\١٣)_
[10])میزان الإعتدال(٢٩٥\٢) رقم ٣٨٠٠)_
[11])حاشیة السبط علی الکاشف للذهبی (٤٩٥\١) رقم ٢٣٤٢)-
[12])انظر ترجمة، فی تهذیب الکمال(٣٣\١٣) وتهذیب التهذیب( ٣٨٦\٤)_

حافظ ابن حجر رحمه الله په تهذيب التهذيب اوتقريب التهذيب كښې په دې باندې تنبيه وركړې ده.[1]

دصالح بن حن صالح بن حيان وفات په ۱۵۲ هـ كښې شوې وو.[2] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ عامر الشعبى رحمه الله: دا مشهور تابعى، محدث، فقيه امام عامربن شراحيل شعبى كوفى رحمه الله دى. د دوى مختصرحالات مخكښې په كتاب الايمان كښې د«باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوى دى.[3]

⑤ ابوبردة رحمه الله: دا دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه خونې دې.ددوى نوم عامريا حارث دې.ددوى حالات په «كتاب الإيمان» كښې د «باب أى الإسلام أفضل» لاندې تيرشوى دى.

⑥ حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه: د دوى حالات په ذكرشوى باب كښې تيرشوى دى.[4]

**قوله: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَهُمْ أَجْرَانِ:** حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه فرمائى.چه نبى صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى.درې كسان داسې دى.چه درې كسان داسې دى.چه هغوى ته به دوه اجرونه ملاويږى.

«ثلاثة» په «ثلاثة رجال» يا «رجال ثلاثة» په معنى دى.اودا مبتداده. او «لهم أجران» خبر دې.

**ايا دوه اجرونه په درې كسانوكښې محصور دي؟:** دلته اشكال كيږى.چه د حديث نه خو دا معلوميږى.چه درې كسانوته به دوه اجرونه ملاويږى.يو «رجل من أهل الكتاب آمن بنبيه وآمن بمحمد صلى الله عليه وسلم» او دويم كس «العبد المملوك إذا أدى حق الله وحق مواليه» اودريم كس «رجل كانت عنده أمة فأدبها فأحسن تأديبها وعلمها فأحسن تعليمها ثم أعتقها» حالانكه په قرآن كريم كښې د ازواج مطهراتو په باره كښې راغلى دى. ﴿وَمَنْ يَقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ﴾[5]

علامه سراجى الدين بلقينى رحمه الله فرمائى.چه د چونكه د ازواج مطهراتو پورې خاص دې. دقيامت پورې عام حكم نه دې.په خلاف ددغه درې كسانو،څكه چه ددوى حكم ترقيامته پورې دې.نوځكه دلته د درې كسانو ذكر اوشو.[6]

خوپه دې باندې اشكال كيږى.چه ددې نه علاوه نور هم بعضې اعمال اوافعال داسې دى.چه په هغې باندې دوه اجرونه ملاويږى.مثلاً «مثل الذى يقرأ القرآن وهو حافظ له مع السفرة الكرام،

---

[1] تهذيب الكمال(٤\٣٩٣) وتقريب التهذيب(٢٧٢) رقم ٢٨٦٥)-
[2] تهذيب التهذيب(٤\٣٩٣)_
[3] كشف البارى(١\٦٧٩)_
[4] المصدر السابق)-
[5] الأحزاب:٣١)_
[6] فتح البارى(١\١٩١)_

ومثل الذی يقرأ وهو يتعاهده وهو عليه شديد فله أجران»(١)

دغه شان په حديث کښې دی «إذا حکم الحاکم فاجتهد ثم أصاب فله أجران»(٢)
ددې احاديثو په رڼا کښې غوره دا دی چه دا اوونيلې شی چه د دريو عدد د احتراز دپاره نه دې بلکه دصحيح قول مطابق دعدد مفهوم معتبرنه وی نو ديوعدد تنصيص دهغې نه علاوه د نورو اعدادو نفی نه کوی. (٣)
**دوه اجرونه اجرسره د درې کسانوتخصيص وجه** په دې خبره کښې اختلاف دې چه دوی ته دوه اجرونه ملاويږی ددې څه سبب دې؟
بعضې حضرات فرمائی چه چونکه دوی دوه کارونه کړی دی ددې وجې دوی ته دوه اجرونه ملاويږی.
خوپه دې باندې اشکال واردیږی چه په دې کښې ددوی څه خصوصيت دې؟ څوك چه هم دوه عملونه کوی نوهغوی ته دوه اجرونه ملاويږی. (٤)
دبعضې حضراتو رائې دا ده چه دې درې واړو ته به په هريوکارباندې دوه دوه اجرونه ملاويږی.
خوپه دې باندې اشکال دا دې چه دې درې واړو داسې څه لويه کارنامه نه ده کړې چه اوس به دوی ته په هريوعمل باندې دوه دوه اجرونه ملاويږی. (٥)
زمونږ دعالمانواومشائخو ﷺ دا رائې ده چه په کومو اعمالو او افعالوکښې تزاحم وی په هغې کښې به ورته دوه دوه اجرونه ملاويږی. (٦)
په داسې اعمالوکښې د دوه اجرونو ملاويدل څه دعقل نه خلاف خبره نه ده ځکه چه د نبی ﷺ ارشاد دې «مثل الذی يقرأ القرآن وهو حافظ له مع السفرة الکرام، ومثل الذی يقرأ وهو يتعاهده وهو عليه شديد، فله أجران»(٧)

---

(١)صحيح البخاری (٧٣٥\٢) کتاب التفسير سورة عبس رقم ٤٩٣٧)_
(٢)صحيح البخاری (١٠٩٢\٢) کتاب الإعتصام بالکتاب والسنة باب أجرالحاکم إذا إجتهد فأصاب أو أخطاء رقم (٧٣٥٢) وصحيح مسلم کتاب الأقضية باب بيان أجرالحاکم إذا إجتهد فأصاب أو أخطأ ٤٤٨٧ و ٤٤٨٩) وسنن أبی داود کتاب القضاء باب فی القاضی يخطئ رقم ٣٥٧٤ وسنن ابن ماجه أبواب الأحکام باب الحاکم يجتهد فصيب الحق رقم ٢٣١٤)_
(٣)عمدة القاری (١٢٢\٢)_
(٤)الکنزالمتواری (٣٢٩\٢)_
(٥)المصدرالسابق)_
(٦)المصدرالسابق وفضل الباری(١٠٤\٢)_
(٧)أخرجه البخاری فی صحيحه (٧٣٥\٢) کتاب التفسيرسورة عبس. رقم ٤٩٣٧ ) واللفظ له وأخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرين باب فضل الماهر بالقرآن والذی يتتعتع فيه رقم (١٨٦٢ و ١٨٦٣)_

مطلب دا دې چه يواجرد قراءت دې اوبل اجرد محنت دې ددې نه دا نه ثابتيږي.چه انخلې په کښې دهغه درجه د مشاق اوحافظ قرآن نه اوچته ده. بنکاره ده.چه د مشقت په وجه دده ثواب زيات دې.

دلته کښې هم که تاسو غور اوکړئ.نوپه دې درې واړو کښې هريوسره يو مزاحم اومقاوم لګيدلې دې.کوم چه په عمل کښې خلل اورکاوټ جوړيږي.

ګورئ دا اهل کتاب د وړاندې نه په يو حق پيغمبر.اوآسماني دين اوکتاب الهي باندې ايمان راوړونکې دي.په حقيقت کښې چه دهغوی ايمان هرڅنګه وی.که صحيح وی يا غيرصحيح،معتبر وی.اوکه غيرمعتبر،هغه خلق په خپل ګمان کښې خپل ځان داسې ګڼړی.چه مونږ داسې يو.چه زمونږ داسې پيغمبردې.اوداسې کتاب دې.داسې څيز عادة دانسان په طبيعت کښې بعضې وخت روسته راتلونکې پيغمبرباندې ايمان راوړوکښې اودهغه په اتباع کولو کښې استغناء غوندې پيدا کوی.بلکه يوقسم استنکاف پيدا کوی.بيا خاص کرکه چه راتلونکې پيغمبر ﷺ دهغوی د کتاب اوپيغمبر ﷺ د صداقت اوحقانيت، عظمت او وجاهت،اوجلالت اقرارکوی.اوپخپله دهغې په مدح اوتعريف کښې دهغه ژبه لونه وی.څکه چه هغه داګڼړی.چه هرکله مونږ سره داسې عظيم الشان پيغمبراوداسې د اوچتې درجې کتاب شته.دکوم تصديق اوتعظيم پيغمبر ﷺ دهغوی قران هم کوی.نوبيا مونږ ته څه ضرورت دې.چه مونږ ددې دويم کس تابعداری اوکړو.ددې وجې به بعضې يهوديانو نبی ﷺ ته ((رسول الأمين)) وئيل.[1]

خلاصه دا چه داهل کتابو ايمان صحيح دې اوکه غيرصحيح،معتبردې اوکه غيرمعتبر. هرڅنګه چه وی.خوهغه ايمان دهغوی په نيزد استغناء باعث وو.اوپه نبی ﷺ باندې ايمان راوړو.او دهغوی اطاعت کولوسره متصادم،مزاحم او مانع وو.

اوس چه کوم اهل کتاب ددې خواهش نفساني د تابعدرائ نه خالي شي. اودخپلو نفساني جذباتو مقابله اوکړي.اوسوچ اوفکراوکړي.اوحق اوپيژني. او په هغې باندې عمل کوی.او د جذبات نفسانيه لاندې د حق دقبلولو نه استنکاف،غرورو اوعدم توجهی نه کوی.بنکاده ده.چه ده د خپل نفس سره سخته مجاهده اوکړه.حظوظ شهوات او لذات ئې پريخودلوکښې ئې سخت مشقت برداشت کړی وی.حق ته ئې په خواهش نفساني باندې ترجيح ورکړه.په دې حيثيت به ده ته په نبی ﷺ باندې ايمان راوړوباندې د نورومسلمانانوپه نسبت زيات اجر ملاويږي.

چه د قرآن کريم په الفاظو باندې غور اوکړې شي.نوددې مطلب دپاره زياته رڼرا ملاويدې شي.دالله تعالی ارشاد دې ﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا﴾[2] يعنی کوم اهل کتاب چه ايمان راوړی.نوهغوی ته به په خپل ايمان باندې دوه اجرونه ملاويږی.ددې وجې چه هغوی صبر اوکړو.اوصبر خو وائی دې ته .چه يوڅيز دطبيعت نه خلاف وی.نودلته دې خلقوته په

[1])كما فى حديث ابن صياد.أنک رسول الأمين ... أخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الفتن باب ذكر ابن صياد رقم ۷۳۵۴)_

[2])القصص : ۵۴)_

ايمان راوړوكښې په كومو كومو مشكلاتو او شدائدباندې صبر كول وو.په كوم باندې چه الله تعالى تضعيف اجر مرتب كړو.دا هغه شدائد اومشكلات دى.دكومو ذكرچه اوس اوشو.

ددې آيت نه ښكاره معلوميږى.چه داهل كتابو د تضعيف اجر وجه دوه عملونه نه دى.بلكه دطبعت نه خلاف څيزباندې د صبركولوپه وجه ددوى په يوعمل يعنى په محمد ﷺ باندې ايمان راوړو دوه اجرونه ملاويږى.

هم دغه حال دهغه غلام دې.چه دخپل مولى حق كماحقه ادا كوى.اودالله تعالى حقوق په اعلى اواكمله طريقه باندې ادا كوى.هريوكس ته معلومه ده.چه ده ته به دالله تعالى دحقوقو په ادا كولوكښې څومره مشقت اوتكليف وى.دهغه كس په نسبت سره چه هغه آزاد وى.اويا دخپل مولى دحقوقو پوره كولوڅه پرواه نه كوى.نوهركله چه داغلام دا دواړه حقوق په ښه طريقه سره جمع كوى.چه دهغې جمع كول ډيرګران كاردې.ځكه چه دمولى د حقوقو ادا كول د دالله تعالى دحقوقو په ادا كولوكښې مانع اوركاوټ وى.خوچه ددې مزاحم،مانع باوجود هغه دالله تعالى حقوق ادا كوى.نوده ته دوه اجرونه ملاويدل بيخى مناسب اوپه خپل ځائې صحيح دى.

دغه شان دريم كس دې.چه اول خوهغه په وينځه باندې احسانات اوكړل.اوبيا ئې په هغې باندې آخرى احسان دا اوكړو.چه هغه ئې په خپل زوجيت كښې واخستله.لكه چه خپل ځان سره ئې برابر كړه.قرآن كريم د بيبيانود برابرى حقوق ذكر كړى دى.﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾([1]) اوددې نكاح نه دده صرف شهوت پوره كول مقصود نه وو.ځكه چه رقيت موجود وو.نوبيا هم په دې كښې څه دوطى نه څه ممانعت موجود نه وو.

بيا دا چه داسې نكاح په عرف كښې عار ګڼړلې شى.چه د آزادولونه پس ئې ورسره نكاح اوكړه.خودې كس هغه وينځه په خپله نكاح كښې واخسته. اوپه دې ئې خپل احسان مكمل كړو.اوپه دې كښې ئې څه شرم محسوس نكړو .چه يوه وينځه ئې ځان سره برابر كړه.نودې ته په دوو اجرونوملاويدوكښې څه لرې والې نشته.([2])

**قوله**: رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهِ وَآمَنَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

يوهغه كس دې.چه هغه داهل كتابوځنى وى.په خپل نبى ئې هم ايمان ساتل.اواوس ئې په محمد ﷺ باندې هم ايمان راوړو.

دكتاب اطلاق په لغت كښې په هركتاب باندې كيږى.خوپه شريعت كښې د كتاب الطلاق په كتب سماويه باندې كيږى.([3])

فقهاء چه كله دا اووائى.چه په كتاب اوسنت كښې دا دى.نوهلته دكتاب نه مراد قرآن كريم وى.

**داهل كتابو نه څوك مراد دى؟** داهل كتابونه عام طور يهود او نصارا مراد وى.خودلته ترې

---

[1] البقرة:٢٢٨)_

[2] دتفصيل دپاره اوګورئ فضل البارى (١٢\١٠٤و ١٠٧)_

[3] فتح البارى(١١\١٩٠)_

خوك مراد دى.آيا دواړه مراد دى.كه صرف نصارا مراددى.په دې كښې اختلاف دې.
ابوعبدالملك بونى وعلامه توربشتى رحمهماالله وغيره وائى چه ددې نه عيسايان مراد دى.(١)
دوى په خپل موقف باندې دوه دلائل بيان كړى دى.
يوه خودا چه هم ددې حديث په دويم سند كښې دا دى.«وإذا آمن بعيسى ثم آمن بي...» راغلى دى.(٢) دويم دليل دا دې.چه يهوديت دعيسائيت په وجه منسوخ شوې وو.نوپه دين منسوخ باندې ايمان راوړول څه فائده نه وركوى.(٣)
علامه طيبى،علامه كرمانى،حافظ ابن حجر،ملاعلى قارى ﷺ وغيره رائې دا ده چه اهل كتاب عام دى.يهود اونصارا دواړه ترې مراد دى.(٤)
دامام بخارى ﷫ رجحان هم دې طرف ته دې.خكه چه هم دا حديث دوى د حضرت ابوموسى اشعرى ﷜ نه په كتاب الجهاد كښې تخريج كړې دې. اوپه هغې باندې ئې ترجمه قائمه كړې ده.«باب فضل من أسلم من أهل الكتابين»(٥)
ددې حضراتو يودليل دا دې.چه كله په كتاب اوسنت كښې داهل كتابوذكراوشو.نومراد ترې هم دا دواړه وى.
دويم دليل دا دې.چه په قرآن كريم كښې ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِهِ هُمْ بِهِ يُؤْمِنُونَ ۝ وَإِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ قَالُوا آمَنَّا بِهِ إِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهِ مُسْلِمِينَ ۝ أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا﴾(٦)
آياتونود حضرت عبدالله بن سلام اوددوى دملگرو دايمان راوړوپه باره كښې نازل شوى دى.
په طبرانى كښې د رفاعه قرظى ﷜ نه روايت دې.«نزلت هذه الآيات في وفيمن آمن معي»(٧)
دغه شان طبرانى دعلى بن رفاعه قرظى نه په صحيح سند سره نقل كړى دى.«خرج عشرة من أهل الكتاب منهم أبي رفاعة إلى النبي ﷺ فآمنوا به فأوذوا فنزلت﴿ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِهِ هُمْ بِهِ يُؤْمِنُونَ ۝﴾»(٨)
دا ټول د بنى اسرائيلو سره تعلق ساتى.(٩)

---

١)فتح البارى(١١\١٩١)_
٢)صحيح البخارى(١١\٤٩٠) كتاب أحاديث الأنبياء باب واذكر فى الكتاب مريم إذا انبذت من أهلها رقم ٣٤٤٦)
٣)فتح البارى(١١\١٩٠)_
٤)فتح البارى(١١\١٩١) وشرح الطيبى(١١\١٢٦) وشرح الكرمانى(٢\٨٨) والمرقاة (١١\٧٨)_
٥)صحيح البخارى (١١\٤٢٢) كتاب الجهاد والسير)_
٦)القصص:٥٢و ٥٤)_
٧)فتح البارى(١١\١٩١) والمعجم الكبير للطبرانى (٥\٤٢٤) أحاديث رفاعة بن قرظة القرظى رقم ٤٥٦٣و ٤٥٦٤) والدرالمنثور (٥\١٣١) ومجمع الزوائد (٧\٨٨) كتاب التفسير،سورة القصص)_
٨)المصادرالسابقة)_
٩)فتح البارى(١١\١٩١)_

دغه شان دحضرت قتاده رحمه الله نه نقل دى «أنها نزلت فى عبدالله بن سلام وسلمان الفارسى رضى الله عنهما» (١) حضرت عبدالله بن سلام يهودى وو .اوحضرت سلمان فارسى نصرانى وو .دواړو خپل خپل مذهبونه پريخودى وو .اومسلمانان شوى وو .(٢)

تركومې پورې چه د فريق اول د دلائلو تعلق دې.نوهغه يو دحضرت ابوموسى اشعرى رضى الله عنه دحديث باب يو سند دې.اوهغه سند مرجوح دې.

تفصيل دا دې.چه دحضرت ابوموسى اشعرى رضى الله عنه دا حديث دعامر شعبى رحمه الله نه درې كسانو نقل كړې دې.يوفراس بن يحيى همدانى،بل فضل بن يزيد دې.او دې دريم كس صالح بن صالح بن حيان ثورى همدانى دې.په دوى كښې د د فراس بن يحى روايت امام احمد،(٣) اود فضل بن يزيد روايت امام ترمذى،(٤) اودصالح بن صالح روايت په صحيحينووغيره كتابونوكښې نقل شوى دى.(٥)

دفراس بن يحيى اوفضل بن يزيد په روايتونوكښې خوڅه اختلاف نشته،اونه په دې كښې د «آمن بعيسى» تصريح شته.

البته دصالح بن صالح بن حيان نه ددې روايت نقل كونكى په صحيح بخارى كښې عبدالرحمن بن محمد بن زياد محاربى،سفيان ثورى،سفيان بن عيينه،عبدالله بن المبارك اوعبدالواحد بن زياد رحمهم الله دى.

په صحيح مسلم كښې دصالح نه ددې روايت نقل كونكى هشيم،عبدة بن سليمان،سفيان بن عيينه،اوشعبه رحمهم الله دى.

په سنن نسائى كښې دا روايت دصالح بن صالح نه يحى بن ابى زائده نقل كړې دې.

اوپه سنن ابن ماجه كښې دصالح بن صالح شاګرد عبدة بن سليمان دې.(٦)

په دې ټولواسنادوكښې صرف يو سند كښې دعبدالله بن المبارك رحمه الله نه د «آمن بعيسى» تصريح ده.اوپه بل طريق كښې نشته.(٧) البته دسفيان ثورى رحمه الله په شاګردانوكښې اختلاف دې.په صحيح بخارى كښې د سفيان ثورى دشاګرد محمد بن كثيرپه طريق سره د «أهل الكتاب» حصه نه ده ذكر.(٨) حالانكه په مسنداحمد كښې دسفيان ثورى شاګرد عبدالرحمن

---

(١)المصدر السابق)_

(٢)المصدر السابق)_

(٣)مسند أحمد (٤٠٥\٤)_

(٤)جامع ترمذى كتاب النكاح باب ما جاء فى الفضل فى ذلک (أى فى فضل الرجل يعتق الأمة ثم يتزوجها)) رقم ١١١٦)_

(٥) دحديث باب تخريج اوګورئ.

(٦) ددې ټولوتخريج په مخكښې حديث كښې شوې دې)

(٧)صحيح بخارى (٤٩٠\١) كتاب أحاديث الأنبياء باب ﴿واذكر فى الكتاب مريم...﴾ رقم ٣٤٤٦)_

(٨)صحيح بخارى (٣٤٦\١) كتاب العتق باب العبد إذا أحسن عبادة ربه ونصح سيده رقم ٢٥٤٧)_

بن مهدی په طریق کښې «آمن بما جاء به عیسی» نقل کوی.(١)
لکه چه د صالح په شاګردانو کښې څوتنو خلق عام لفظ ذکرکوی.صرف دابن المبارک‌رحمه‌الله په طریق کښې د «آمن بعیسی» نقل کوی.اودسفیان ثوری رحمه‌الله په روایت کښې اختلاف دې.یوصاحب «آمن بعیسی» نقل کوی. اوبل صاحب عام لفظ نقل کوی.نود روایت په حیثیت سره به «رجل من أهل الکتاب» یا ددې پشان بل عام لفظ ته ترجیح حاصله وی.
ددې حضراتو دویم دلیل دا دې.چه یهودیت دنصرانیت په وجه منسوخ شوې دې.اوپه منسوخ دین باندې ایمان ساتل څه فائده نه ورکوی.
په دې باره کښې حافظ ابن حجررحمه‌الله فرمائی.چه دلته د نسخې دشرط لګولوڅه ضرورت نشته.ځکه چه حضرت عیسیٰ‌علیه‌السلام هم بنی اسرائیلو طرف ته لیږلې شوې وو.په دې کښې څه اختلاف نه وو.په هغوی کښې چه چا په حضرت عیسیٰ علیه‌السلام باندې ایمان راړو.هغه ته،،مسیحی،، ،ونیلی شی.اوچا چه پرې ایمان راونړلو.بلکه تکذیب ئې اوکړو.اوپه خپل یهودیت باندې قائم پاتې شو.نوهغه مومن نه دې.اودا حدیث داسې کسانوته شامل نه دې.ځکه چه په دې کښې دا شرط دې.چه «مؤمن بنبیه» دې.
البته هغه کسان کوم چه په یهودیت کښې داخل شوی وی.اوهغوی په بنی اسرائیلوکښې نه وو.اویا هغوی حضرت عیسیٰ‌علیه‌السلام سره نه وو.اونه ورته دحضرت عیسیٰ‌علیه‌السلام دعوت رسیدې وو.نوداسې کسانو په باره کښې وئیلی شی.چه دغه یهودیان دی.اودحضرت عیسیٰ‌علیه‌السلام د بعثت نه پس هم هغوی مومنان دی.ځکه چه هغوی په حضرت موسیٰ‌علیه‌السلام باندې ایمان لری.اودهغوی نه پس دوی د هیڅ پیغمبرتکذیب نه دې کړې.نوکه داسې یوکس د نبی ﷺ نبوت بیا موندو(یعنی دده په ژوند پیغمبرد نبوت دعوه اوکړه).نوهغه به ددې خبرپه مصداق کښې داخل وی.دیمن بعضې قبائل هم داسې قسم وې.چه هغوی یهودیان وو.اودحضرت عیسیٰ‌علیه‌السلام دعوت هغوی ته نه وو رسیدلې.
دلته اصل اشکال دهغه یهودیانوپه باره کښې دې.کوم چه د نبی ﷺ په زمانه کښې په مدینه منوره کښې وو.مخکې مونږ د آیت کریمه،﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ﴾(٢) اودرفاعه قرظی، علی بن رفاعه قرظی،اودامام قتاده رحمه‌الله د آثارو په باره کښې خودلی وو.چه ددهغې مصداق حضتر عبدالله بن سلام اووغیره حضرات دی.دهغې ټولوتعلق د بنی اسرائیلو سره وو.
دا حضرت په یهودیت باندې برقرار پاتې شول.اوددوی په حضرت عیسیٰ‌علیه‌السلام باندې ایمان هم نه وو.نوددوی په حق کښې دوه اجرونه ثابت دی.
حافظ رحمه‌الله ددې جواب دا ورکړې دې.چه دمدینې دغه یهودیانوته د حضرت عیسیٰ علیه‌السلام

(١) مسند أحمد (٣٩٥/٤)_
(٢) القصص: ٥٤_

دعوت نه وو رسيدلې.خکه چه د دوی دعوت ډيرو خايونوته نه وو رسيدلې.ددې وجې هغوی په يهوديت باندې قائم پاتې شو.اوپه حضرت موسى عليه السلام باندې دهغوی ايمان باقي پاتې وو.تردې چه نبي ﷺ پيغمبرشو.نوهغوی په نبي ﷺ باندې ايمان راوړلو.په دې طريقه به اشکال لرې شي.(١)

ددې تفصيل دا دې.چه بخت نصر کله دشام په علاقه کښې په بنو اسرائيلو باندې ظلمونه کول.نوهغه خائې نه ډيرو يهوديانو هجرت اوکړو. د هغوی د تلو نه په صدو روسته حضرت عيسى عليه السلام مبعوث شو.دحضرت عيسى عليه السلام په واسطه باندې د توحيد اوشريعت دعوت د شام يهوديانو ته اورسيدل.دمدينې منورې يهوديانو ته نه وو رسيدلې.(٢) لکه څنګه چه د وفاء الوفاء د يوې واقعه نه معلوميږي.چه مدينې منورې سره نزدې په «جماء أم خالد» نومې غرباندې يوه قبر دې.په هغې باندې ليکلي دي.«أنا أسود بن سوادة رسول رسول الله عيسى بن مريم إلى أهل هذه القرية» دابن شهاب زهرى نه منقول دى.چه «وجد قبر جد على جماء أم خالد أربعون ذراعاً في أربعين ذراعاً مكتوب في حجر فيه، أنا عبد الله من أهل نينوى رسول رسول الله عيسى بن مريم عليه السلام إلى أهل هذه القرية فأدركني الموت فأوصيت أن أدفن في جماء أم خالد»(٣)

ددې دويم جواب علامه طيبى رحمه الله دا ورکړې دې.چه د مدينې منورې يهود اګرچه په منسوخ دين باندې عمل کونکي وو.خوپه دې کښې څه بعد نشته.چه په نبي ﷺ باندې د ايمان راوړو په برکت دهغوی اديان د منسوخيت باوجود قبول کړې شو.اوپه دې طريقه هغوی د دوو اجرونو مستحق جوړ شو.(٤)

**اهل کتاب دلته عام دى اوکه هغه خلق مراد دى چاچه تحريف اوتبديلى نه ده کړې؟** بيا په دې کښې اختلاف دې.چه ددې نه صرف هغه اهل کتاب مراد دى.چا چه تحريف اوتبديلى نه وه کړې.اوکه ټول اهل کتاب ترې مراد دى؟

امام طحاوى اوقرطبى رحمهما الله فرمائى.چه داهل کتاب نه صرف هغه خلق مراد دى.چا چه تحريف اوتبديلى نه وه کړې.خکه چه اجر اوثواب د حق په اتباع باندې ملاويږى.(٥)

علامه سراج الدين بلقينى ،حافظ ابن حجر ،علامه عينى اوملا على قارى رحمهم الله فرمائى.چه

---

(١) فتح البارى(١١٠/١٩٠و١٩١)_

(٢) فيض البارى(١٩٣/١)_

(٣) وفاء الوفاء بإخباردارالمصطفى للعلامة نورالدين على بن أحمد السمهودى المتوفى ٩١١ هـ (١٠٦٤/٣) الباب السابع فى أوديتها وبقاعها الفصل الرابع فى جماواته ... الطبعة الثالثة (١٤٠١هـ ١٩٨١م) دارإحياء التراث العربى ،بيروت ، لبنان)_

(٤) الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبى (١٢٦/١) كتاب الإيمان الحديث الحادى عشر)_

(٥) مشكل الآثار (٢٢٦/٥و ٢٢٨) كتاب بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ من قوله ((ثلاثة يؤتون أجرهم مرتين.. وإكمال إكمال المعلم للأبى ومكمل إكمال الأكمال للسنوسى (٢٦٣/١و ) وفتح البارى(١٩١/١)_

اهل كتاب عام دی.(١) ددې دليل دا دې چه په آيت كريمه كښې ﴿ أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ ﴾(٢) كوم چه ددې حديث هم معنى دې. د تحريف اوتبديلۍ نه پس نازل شوی دی.
دويم دليل دا دې چه نبی ﷺ هرق ته كوم خط ليكلې وو.په هغې كښې ئې دا ليكلي وو. «أسلم تسلم يؤتك الله أجرك مرتين»(٣)هرقل په عيسائيت كښې د تحريف اوتبديلۍ نه پس داخل شوې وو.

دغه شان كله چه نبی ﷺ هرقل ته خط ليكلې وو.چه «أسلم تسلم يؤتك الله أجرك مرتين» نوهلته نبي ﷺ دا هم ليكلي وو.چه «ياأهل الكتاب تعالوا إلى كلمة سواء بيننا وبينكم» سره خطاب كړې وو.(٤) معلومه شوه.چه په دې كښې هغه ټول اهل كتاب شامل دی.ځوك چه د سابقه دين منونكي وو.برابره خبره ده.چه هغوی د تحريف نه وړاندې داخل شوی وی اوكه دتحريف نه پس،والله اعلم.

**دتضاعف اجر دا حكم دنبی ﷺ د زمانې پورې خاص دې اوكه عام دې؟** بيا په دې كښې هم اختلاف دې.چه دا حكم د نبی ﷺ زمانې پورې خاص دې.اوكه عام دې؟علامه سراج الدين بلقينی رحمه الله فرمائی.چه دا حكم عام دې.ترقيامته پورې هم دا حكم دې.كوم كتابی چه هم ايمان راوړی.نوهغه ته به دوه اجرونه ملاويږی.(٥) كوم غلام چه هم د الله تعالى اود مولى حق ادا كوی .هغه ته به دوه اجرونه ملاويږی.دغه شان هريوكس چه خپلې وينځې ته تعليم وركوی.اوآزاده ئې كړی اوبه خپله نكاح كښې ئې راولی.نوهغه ددوو اجرونو مستحق دې.
خوعلامه كرمانی رحمه الله فرمائی.چه دا د نبی ﷺ د زمانې پورې خاص دې.خكه چه د نبی ﷺ د بعثت نه پس خو دټولې دنيا پيغمبر هم نبی ﷺ دې .نوديوكس په حضرت عيسى عليه السلام اوحضرت موسى عليه السلام باندې ايمان راوړی.دا دهغه په خپل پيغمبر باندې ايمان نه دې.خكه چه دهغه نبی حضرت موسى اوحضرت عيسى عليهماالسلام نه دی.بلكه دهغه پيغمبرحضرت محمد ﷺ دې.(٦)
په دې باندې اشكال دې.هغه دا چه بيا خو د نبی ﷺ په زمانه كښې هم دا حديث معمول به نشی كيدې.خكه چه كله د نبی ﷺ بعث اوشو.نو د ټولو پيغمبر به محمد ﷺ وی.نو د يوكس په حضرت موسى يا حضرت عيسى عليه السلام باندې ايمان راوړل .پكار ده چه نافع نه وی.

---

١)فتح الباری(٣٨/١) كتاب بدء الوحی حديث هرقل و(١٩١/١) وعمدة القاری(١١٩/٢) ومرقاة المفاتيح (٧٨/١و ٧٩)-
٢)القصص: ٥٤)_
٣)صحيح بخاری (٤/١) كتاب بدء الوحی رقم ٧)_
٤)المصدرالسابق)_
٥)فتح الباری(١٩١/١و ١٩٢)_
٦)شرح الكرمانی(٨٨/٢)_

كه ددې جواب داسې ورکړې شي چه د حديث تعلق دهغه کسانو سره دې چاته چه د نبي ﷺ د بعثت علم نه وو شوې نوبيا د نبي ﷺ د زمانې پورې دخاص کولو څه ضرورت نشته. دنبي ﷺ نه پس هم که يوکس دا اووائي.چه دا هغه يهودي يا نصراني دې.چه د نبي ﷺ د بعثت علم ورته نشته.اوبيا هغه مسلمان شي.نوپه دې صورت کښې به هغه ته په خپل پيغمبرباندې د ايمان راوړو ثواب ملاويږي.اوزمونږ په پيغمبرد ايمان راوړو ثواب هم ملاويږي.(١)

نوصحيح خبره هم هغه ده.کومه چه علامه بلقيني رحمه الله فرمائيلې ده.چه دا حکم عام دې.د نبي ﷺ په زمانې پورې خاص نه دې.والله اعلم.

**قوله**: وَالْعَبْدُ الْمَمْلُوكُ إِذَا أَدَّى حَقَّ اللَّهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ: اويوهغه غلام دې.چه هغه دالله تعالى حق هم ادا کوي.اودخپل مولى حق هم.

دلته کښې د«عبد»سره د مملوك قيد ددې وجې لګولې شوې دې.ځکه چه هسې خو ټول خلق دالله تعالى بندګان اوهغه غلامان دي.خودلته دا خودل مقصود دی.چه دا کس دالله تعالى دغلامۍ سره سره د خلقوغلام هم وی.(٢)

بيانې دلته «حق مواليه» فرمائيلى دی.«حق مولاه» ئې نه دی فرمائيلى .يعنى د جمعې صيغه راوړې شوې ده.د مفرد صيغه نه ده.ددې وجه يا دا ده.چه دلته د «العبد»نه مراد يوغلام نه دې.بلکه جنس مراد دې.په کوم کښې چه دکثرت هم احتمال شته.ددې وجې د «موالي» لفظ استعمال کړې شو.يا وجه دا ده.چه بعضې وخت يوغلام د څومالکانوپه مينځ کښې مشترك وی.هغه صورت ته هم د شاملولوپاره دلته د«موالي» جمع صيغه استعمال کړې شوه.(٣)

عبدمملوك ته دوه اجرونه ولې ملاويږی؟ ددې تفصيل مونږ وړاندې بيان کړې دې.

**قوله**: وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ أَمَةٌ فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ تَأْدِيبَهَا وَعَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيمَهَا ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا: يوهغه کس دې.چه هغه سره يوه وينځه وی.اوهغه ورته ښه ادب اوښائى اوتعليم ورته ورکړى.ښه تعليم ورته ورکړی.اوبيا ئې آزاده کړی.اوبيا ورسره نکاح اوکړی.

علامه کرماني رحمه الله فرمائي.چه د تاديب تعلق د مروت سره متعلق ادابوسره دې اود تعليم شرعی احکامو سره دې.لکه چه د تاديب تعلق دعرف سره دې اودتعليم تعلق د شريعت سره دې.يا دا اووايه.چه د تاديب تعلق د دنياوی امورو سره دې اود تعليم تعلق د اخروی امورو سره دې.(٤) والله اعلم

---

(١)فتح الباري(١٩١١١و ١٩٢)

(٢)عمدة القاري(١٢١١٢)_

(٣)المصدر السابق)_

(٤)شرح الكرماني(٨٩١٢)

دغه شان دوی فرمائي چه د ((أدبها)) نه پس چه ئې كوم ((فأحسن تاديبها)) فرمائي. ددې مطلب دا دې چه ((أدبها من غير عنف وضرب بل باللطف والرفق)) دغه شان د ((علمها)) نه پس د ((فأحسن تعليمها)) مطلب دې چه ((علمها بالرفق والخلق))(١)

**پواشكال اوهغې جواب** دلته څلوراعمال مذكور دي يوتاديب.دويم تعليم.دريم اعتاق. څلورم تزويج هر كله چه دا څلور اعمالو شول نوپكاردي چه اجر هم په دې مقدار سره وي.

علامه عيني رحمه الله فرمائي.چه اصل كښې د وينخوپه باره كښې صرف د اعتاق اوتزويج اعتبار كړې شوې دې.ځكه چه دتاديب اوتعليم په وجه اجر صرف د وينځوسره خاص نه دې بلكه دا خو د پردى اوخپل اولاد په باره كښې هم د اجرباعث دې هم دا وجه ده چه دلته ئې ((فله أجران)) دوباره اعاده كړې ده.مقصود دا دې چه دا مه ګنړئ چه دا څلوراعمال دى نو څلور اجرونه به ملاويږى بلكه په حقيقت كښې دا هم دوه علمونه دي نودوه اجرونه به ملاويږى (٢)

په دې باندې بيا اشكال كيږى چه بيا دلته د تاديب اوتعليم ذكركولو څه فائده وه صرف داعتاق اوتزويج ذكركول كافي وو.

علامه عيني رحمه الله فرمائي.چه چونكه دتعليم يافته وينځې سره نكاح كول د زيت بركت باعث وى.ځكه چه تعليمافته اوادبناكه ښځه دخپل خاوند په ديني اموركښې ښه اعانت كولې شي.نوځكه ئې تاديب اوتعليم د تمهيد په طورسره ذكر كړل.(٣)

علامه كرماني رحمه الله فرمائي.چه ددې كس دپاره دوه اجرونه د دوو متنافي امورو په وجه دى.دوه متنافي امور رقيت اوحريت دې.درقيت تقاضې جدا وى.اودحريت تقاضې جدا وى.په دې حيثيت ده ته دوه اجرونه ملاويږى.(٤)

امام بخارى رحمه الله په كتاب النكاح كښې دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه معلق حديث ذكركړې دې.په هغې كښې دى.((ثم أعتقها ثم أصدقها)) (٥)ددې مطلب دا دې چه دا آزده كړې.اودې سره كومه نكاح اوكړى.په دې كښې عتق لره مهر اونه ګرځوى بلكه مستقل مهر ورته وركړى.والله اعلم.

**قوله: فَلَهُ أَجْرَانِ:** په شروع كښې ((ثلاثة لهم أجران)) راغلى وو.اواوس ئې دلته دوباره

---

(١)المصدر السابق)_

(٢)عمدة القارى(١١٩/٢) وشرح الكرماني(٩٠/٢)_

(٣)المصادر السابقة)_

(٤)شرح الكرماني(٩٠/٢)_

(٥)صحيح البخارى (٧٦١/٢) كتاب النكاح باب إتخاذ السرارى ومن أعتق جاريته ثم تزوجها رقم ٥٠٨٣) ووصله أبواود الطيالسى فى مسنده (٦٨) رقم ٥٠١) وانظرفتح البارى(١٢٧/٩و ١٢٨) كتاب النكاح باب إتخاذ السرارى )_

ذکرکوی.ددې وجه یاخوهغه ده.کومه چه علامه عینی رحمه الله ذکرکړې ده.چه دلته تنبیه ورکول مقصود دې.چه د وینځو په تعلیم اوتربیت اواعتاق اوتزویج باندې به دوه اجرونه ملاویږی.
زیاتی نه.(١) په دې صورت کښې ددې جملې تعلق صرف ددې آخری صورت سره دې.
خوظاهره دا ده.چه ددې تعلق ددې ټولو سره دې.اودلته ددې تکرارد طول کلام اوپه مینځ کښې د فصل په وجه راغلې دې.(٢)

**قوله** ثُمَّ قَالَ عَامِرٌ أَعْطَيْنَاكَهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ قَدْ كَانَ يُرْكَبُ فِيمَا دُونَهَا إِلَى الْمَدِينَةِ: بیا عامرشعبی رحمه الله فرمائی.چه مونږ تاته دا روایت په مفتوکښې درکړو. حالانکه ددې نه هم د کم روایت دپاره به دمدینې منورې پورې سفرکولې شو.

په دې کښې خطاب په ظاهره باندې ابن الصالح رحمه الله ته دې.ددې وجې هم په دې ظاهر باندې علامه کرمانی رحمه الله جزم کړې دې.اومخاطب نې د شعبی رحمه الله شاګرد ابن الصالح ګرځولې دې.(٣) خوحقیقت دا دې.چه دا یو خراسانی کس ته خطاب دې.دچا د سوال په جواب کښې چه امام شعبی رحمه الله دا حدیث بیان کړې وو.په صحیح بخاری کښې صالح تصریح کړې ده.چه ((إن رجلاً من أهل خراسان قال للشعبی رحمه الله فقال الشعبی رحمه الله أخبرنا أبوبردة عن أبي موسی اشعری رضی الله عنه ...)) (٤)

په ذکرشوی روایت کښې تپوس ذکرنه دې.امام مسلم تپوس هم ذکرکړې دې.((قال رأيت رجلاً من أهل خراسان سأل الشعبي فقال يا أبا عمرو،إن من قبلنا من أهل خراسان يقولون في الرجل إذا أعتق أمته ثم تزوجها فهو كالراكب بدنته فقال الشعبي رحمه الله حدثني أبوبردة بن أبي موسی عن أبيه ...)) (٥)
بیا په اهل خراسان کښې چه دا کومه خبره مشهوره وه.دا بې بنیاده هم نه وه.ځکه چه د حضرت عبدالله بن مسعود،حضرت عمر،حضرت انس رضی الله عنهم او حضرت سعیدالمسیب، او ابراهیم نخعی رحمهما الله نه هم دامنقول دی.(٦) غالباً دې حضراتوته دحدیث باب علم نه وو.

---

١) عمدة القاری(١٢\١١٩)_
٢) فتح الباری(١\١٩٢)_
٣)شرح الکرمانی (٢\٩٠)-
٤)صحیح البخاری (١١\٤٩٠) کتاب أحادیث الأنبیاء باب ﴿ وذکرفی کتاب مریم ﴾ رقم ٣٤٤٦)_
٥)صحیح مسلم کتاب الإیمان باب وجوب الإیمان برسالة نبینا محمد صلی الله علیه وسلم إلی جمیع الناس ونسخ الملل بملته (رقم ٣٨٧)_
٦)قال الحافظ فی فتح ا لباری(٩\١٢٧) کتاب النکاح باب إتخاذ السراری ومن أعتق جاریة ثم تزوجها أخرج الطبرانی بإسناد رجاله ثقات عن ابن مسعودأنه کان یقول ذلک.وأخرج سعیدبن المنصور عن ابن عمرمثله وعند ابن أبی شیبةبإسناد صحیح عن أنس أنه سئل عنه فقال ..إذا أعتق أمته لله.فلا یعود فیها ومن روی سعید بن المسیب وإبراهیم نخعی رحمها الله أنهما کرها ذلک)_

# مصادر و مراجع کشف الباری دریم جلد

القرآن الکریم: کلام رب العالمین.

الابواب والتراجم لصحیح البخاری شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب (متوفی ۱۴۰۲ھ مطابق ۱۹۸۲ء) ایچ ایم سعید کمپنی پاکستان چوک کراچی

الأبواب والتراجم حضرت شیخ الهند مولانا محمود حسن صاحب دیوبندی رحمہ اللہ المتوفی (۱۳۳۹ھ) ادارۃ تالیفات اشرفیہ ملتان.

اتحاف السادۃ المتقین بشرح أسرار إحیاء علوم الدین: علامہ سید محمد بن محمد الحسینی الزبیدی المشهور بمرتضیٰ رحمہ اللہ (متوفی ۱۲۰۵ھ) دار احیاء التراث العربی

الاتقان فی علوم القرآن: حافظ جلال الدین عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ھ) شرکۃ مکتبۃ ومطبعۃ مصطفی البابی الحلبی مصر، طبع رابع (۱۳۹۸ھ مطابق ۱۹۷۸ء

الإحسان بترتیب صحیح ابن حبان امام ابوحاتم محمد بن حبان بُستی رحمہ اللہ متوفی ۳۵۴ھ موسسة الرسالة بیروت.

إحیاء علوم الدین مع شرح اتحاف السادۃ المتقین: امام محمد بن محمد الغزالی رحمہ اللہ (متوفی ۵۰۵ھ) دار احیاء التراث العربی. بیروت،

إختصار علوم الحدیث أبوالفداء عماد الدین إسماعیل بن شهاب الدین عمر المعروف بابن کثیر رحمہ اللہ المتوفی ۷۷۴ھ دار التراث: القاهرة ۱۳۹۹ھ ۱۹۷۹ء.

الأدب المفرد مع شرح فضل الله الصمد، امیرالمومنین فی الحدیث محمد بن اسماعیل البخاری المتوفی (۲۵۶ھ) مکتبة الإیمان المدینة المنورۃ۔

إرشاد الساری شرح صحیح البخاری: ابوالعباس شهاب الدین أحمد بن محمد القسطلانی رحمہ اللہ (متوفی ۹۲۳ھ) المطبعة الکبریٰ الأمیریة. مصر طبع سادس ۱۳۰۴ھ

إزالة الخفاء عن خلافة الخلفاء حضرت شاہ ولی اللہ محدث دهلوی رحمہ اللہ المتوفی (۱۱۷۶ھ) سهیل اکیڈمی.

الاستیعاب فی اسماء الأصحاب بهامش الإصابة ابوعمر یوسف بن عبداللہ بن محمد بن عبدالبر رحمہ اللہ متوفی ۴۶۳ھ) دار الفکر بیروت۔

أسد الغابة عزالدین أبوالحسن علی بن محمد الجزری المعروف بابن الأثیر المتوفی ۶۳۰ھ دار الکتب العلمیة بیروت_

الأشموني للعلامة نورالدین أبی الحسن علی بن محمد رحمہ اللہ المتوفی ۹۰۰ھ مع حاشیته للشیخ محمد بن علی الصبان رحمہ اللہ المتوفی ۱۲۰۶ھ دار الإحیاء الکتب العربیة—

الإصابة فی تمیز الصحابة شهاب الدین ابوالفضل أحمد بن علی العسقلانی المصری المعروف بابن حجر رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ) دار الفکر. بیروت

أصول البزدوی: فخر الإسلام أبوالحسن علی بن محمد البزدوی رحمه الله (متوفی ٤٨٢ھ) الصدف پبلشرز کراچی
الأعلام: خیرالدین بن محمود بن محمد الزرکلی رحمه الله (متوفی ١٣٩٦ھ مطابق ١٩٧٦ء)
أعلام الحدیث: إمام أبوسلیمان احمد بن محمد الخطابی رحمه الله (متوفی ٣٨٨ھ) مرکز إحیاء التراث الإسلامی جامعة أم القری مکة المکرمة،
إکمال إکمال المعلم شرح صحیح مسلم أبوعبدالله محمد بن خلفة الوشتانی الأبی المالکی رحمه الله المتوفی ٨٢٧ أو ٨٢٨ دار الکتب العلمیة بیروت۔
الإلماع إلی معرفة أول الرواة وتقیید السماع أمام قاضی عیاض بن موسی الیحصبی رحمه الله المتوفی ٥٤٣ مجلس تعاون إسلامی کراچی الطبعة الأولی ١٤٢٠ھ ١٩٩٩م،
الإمام علی بن المدینی ومنهجه فی نقد الرجال دکتور إکرام الله إمداد الحق حفظه الله دار البشائر الإسلامیة بیروت الطبعة الأولی ١٤١٣ھ ١٩٩٢م
الإنتقاء فی فضائل الأئمة الثلاثة الفقهاء الإمام الحافظ أبوعمر یوسف بن عبدالبر رحمه الله المتوفی ٤٦٣ھ مکتب المطبوعات الإسلامیة حلب الطبعة الأولی ١٤١٧ھ ١٩٩٧م،
الأنساب أبوسعد عبدالکریم بن محمد بن منصور السمعانی رحمه الله المتوفی ٥٦٢ھ دار الجنان بیروت الطبعة الأولی ١٤٠٨ھ ١٩٨٨م،
(٣٣) أنوار الباری: مولانا سید أحمد رضا بجنوری مد ظلهم. مدینه پریس بجنور
(٣٦) أوجز المسالك إلی مؤطأ مالك: شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا صاحب کاندهلوی رحمه الله (متوفی ١٤٠٢ھ) إدارۂ تالیفاتِ اشرفیه ملتان،
إیضاح البخاری: حضرت مولانا فخر الدین محمد صاحب رحمه الله (متوفی ١٣٩٢ھ) مجلس قاسم المعارف دیوبند
البحر الرائق علامة زین العابدین بن ابراهیم بن نجیم رحمه الله المتوفی ٩٦٩ھ أو المتوفی یا المتوفی ٩٧٠ھ مکتبه رشیدیه کوئٹه
بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ملك العلماء علاء الدین ابوبکر بن مسعود الکاسانی رحمه الله المتوفی ٥٨٧ھ ایچ ایم سعید کمپنی کراچی.
البدایة والنهایة: حافظ عماد الدین أبوالفداء إسماعیل بن عمر المعروف بابن کثیر رحمه الله (متوفی ٧٧٤ھ) مکتبة المعارف. بیروت. طبع ثانی ١٩٧٧م
بذل المجهود: حضرت العلامه خلیل أحمد سهارنپوری رحمه الله (متوفی ١٣٤٦ھ) مطبع ندوة العلماء لکنهو. ١٣٩٣ھ مطابق ١٩٧٣م

البرهان فی علوم القرآن بدرالدین محمدبن عبداللہ زرکشی رحمہ اللہ المتوفی ۷۹۴ھ دارالمعرفة للطباعة والنشر، بیروت۔

بیان القران: حکیم الأمت حضرت مولانا أشرف علی صاحب تھانوی نوراللہ مرقدہ (متوفی ۱۳۶۲ھ) شیخ غلام علی اینڈ سنز لاہور،

تاج العروس من جواھر القاموس: ابوالفیض سید محمد بن محمد المعروف بالمرتضی الزبیدی رحمہ اللہ (۱۲۰۵ھ)۔ دار مکتبة الحیاة بیروت لبنان،

تاریخ بغداد ومدینة السلام: حافظ احمد بن علی المعروف بالخطیب البغدادی رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ ھ)۔ دارالکتب العربی بیروت لبنان،

تاریخ الخمیس فی احوال أنفس نفیس: شیخ حسین بن محمد بن الحسن الدیار بکری المالکی رحمہ اللہ (متوفی ۹۶۶ھ)، مؤسسة شعبان بیروت،

التاریخ الصغیر للأمیر المومنین فی الحدیث محمد بن اسماعیل البخاری رحمہ اللہ المتوفی ۲۵۶ھ المکتبة الأثریة شیخوپورہ

تاریخ عثمان بن سعید الدارمی المتوفی ۲۸۰ھ عن أبی زکریا یحیی بن معین المتوفی ۲۳۳ھ دار المأمون للتراث ۱۴۰۰ھ

التاریخ الکبیر: أمیر المؤمنین فی الحدیث محمد بن إسماعیل البخاری رحمہ اللہ (متوفی ۲۵۶ھ)۔ دار الکتب العلمیة بیروت،

تبصیر المنتبہ بتحریر المشتبہ حافظ أحمد بن علی المعروف بابن حجر العسقلانی رحمہ اللہ المتوفی ۸۵۲ ھ، المکتبة العلمیة بیروت۔

تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف أبوالحجاج جمال الدین یوسف بن عبدالرحمن المزی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۲ھ) المکتب الإسلامی بیروت طبع دویم ۱۴۰۳ ھ مطابق ۱۹۸۳ء

تدریب الراوی بشرح تقریب النواوی: حافظ جلال الدین عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ ھ) المکتبة العلمیة مدینہ منورہ،

تذکرة الحفاظ: حافظ أبوعبداللہ شمس الدین محمد بن أحمد بن عثمان ذھبی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۸ ھ)۔ دار المعارف العثمانیہ الھند،

الترغیب والترھیب للإمام عبدالعظیم بن عبدالقوی المنذری رحمہ اللہ المتوفی ۶۵۶ دار احیاء التراث العربی بیروت الطبعة الثالثة ۱۳۸۸ ھ، ۱۹۶۸م،

تعریف أھل التقدیس بمراتب الموصوفین بالتدلیس حافظ احمد بن علی المعروف بابن حجر رحمہ اللہ المتوفی ۸۵۲ ھ، دار الکتب العلمیة بیروت۔

تعلیقات جامع بیان العلم وفضلہ لأبی الأشبال الزھیری، دار ابن الجوزی الطبعة الرابعة ۱۴۱۹ ھ،

تعليقات الرفع والتكميل في الجرح والتعديل، الشيخ عبدالفتاح أبوغدة رحمه الله المتوفى ١٤١٧ ھ، مكتب المطبوعات الإسلامية حلب طبع سوم ١٤٠٧ و گ، ١٩٨٧م،
تعليقات على تهذيب الكمال، للدكتور بشار عواد معروف حفظه الله تعالى مؤسسة الرسالة الطبعة الأولى ١٤١٣ ھ،
تعليقات على الكاشف للذهبي شيخ محمد عوامة شيخ أحمد محمد نمر الخطيب حفظهما الله مؤسسة دار القبلة موسسة علوم القرآن الطبعة الأولى ١٤١٣ ھ، ١٩٩٢م،
تعليقات كتاب الزهد لابن المبارك رحمه الله للعلامة حبيب الرحمن أعظمي رحمه الله المتوفى ١٩٩٢م،
تعليقات كتاب الضعفاء الكبير للعقيلي للدكتور عبدالمعطي أمين قلعجي دار الكتب العلمية بيروت۔
تعليقات على لامع الدراري شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله المتوفى ١٤٠٢ھ. الموافق ١٩٨٢م، مكتبة إمدادية مكة المكرمة۔
تعليقات نور الدين عتر على علوم الحديث لابن الصلاح تصوير ١٤٠٦ ھ، ١٩٨٦م، دار الفكر بدمشق۔
تغليق التعليق للحافظ أحمد بن علي المعروف بابن حجر رحمه الله المتوفى ٨٥٢ ھ، المكتب الإسلامي ودار عمار۔
تفسير الطبري (جامع البيان) إمام محمد بن جرير الطبري رحمه الله المتوفى ٣١٠ ھ دار المعرفة بيروت۔
تفسير القران العظيم: حافظ أبوالفداء عماد الدين إسماعيل بن عمر ابن كثير دمشقي رحمه الله (متوفى ٧٧٤ ھ) دار الفكر بيروت،
التفسير الكبير (مفاتيح الغيب): إمام أبوعبدالله فخر الدين محمد بن عمر الحسين رازي رحمه الله (متوفى ٦٠٦ھ). مكتب الاعلام الإسلامي إيران،
تقريب التهذيب: حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله (متوفى ٨٥٢ھ) دار الرشيد حلب ١٤٠٦ھ
التقريب والتيسير لمعرفة سنن البشير النذير مع تدريب الراوي ابوزكريا يحيى بن شرف الدين النووي رحمه الله (متوفى ٦٧٦ھ) المكتبة العلمية مدينه منوره،
تقرير بخاري شريف اردو: شيخ الحديث مولانا محمد زكريا صاحب كاندهلوي متوفى رحمه الله (١٤٠٢ ھ مطابق ١٩٨٢ء، مكتبة الشيخ كراچي،
التقييد والإيضاح لما أطلق وأغلق من كتاب ابن الصلاح: حافظ أبوالفضل زين الدين عبدالرحيم بن الحسين العراقي رحمه الله (متوفى ٨٠٦ھ) مكتبه سلفيه مدينه منوره طبع اول ١٣٨٩ھ
تكمله فتح الملهم: حضرت مولانا محمد تقي عثماني مد ظلهم. مكتبه دار العلوم كراچي،
تلبيس الإبليس للإمام أبي الفرج عبدالرحمن بن علي المعروف بابن الجوزي رحمه الله المتوفى ٥٩٧ ھ، إدارة الطباعة المنيرية الطبعة الثانية ١٣٦٨ ھ،

التلخیص الحبیر فی تخریج أحادیث الرافعی الکبیر: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ ھ). دار نشر الکتب الإسلامیہ لاہور، ۶۰

تلخیص المستدرک (المطبوع بذیل المستدرک): حافظ شمس الدین محمد بن أحمد بن عثمان ذہبی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۸ ھ). دار الفکر بیروت،

تمہید فی أصول الفقہ للعلامۃ محفوظ بن أحمد بن الحسن أبو الخطاب الکلوذانی الحنبلی رحمہ اللہ المتوفی ۵۱۰ ھ، جامعۃ أم القری مکۃ المکرمۃ

التمہید لما فی المؤطا من المعانی والأسانید: حافظ أبو عمر یوسف بن عبد اللہ بن محمد بن عبد البر مالکی رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ ھ). المکتبۃ التجاریۃ مکۃ المکرمہ،

تہذیب الأسماء واللغات: إمام محی الدین ابوزکریا یحیی بن شرف النووی رحمہ اللہ (متوفی ۶۷۶ ھ) إدارۃ الطباعۃ المنیریہ،

تہذیب التہذیب: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ ھ) دائرۃ المعارف النظامیہ حیدر آباد دکن ۱۳۲۵،

تہذیب الکمال: حافظ جمال الدین أبو الحجاج یوسف بن عبد الرحمن مزی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۲ ھ). مؤسسۃ الرسالۃ

التہذیب للنووی رحمہ اللہ طبع اول ۱۴۱۳، (انظروا تہذیب الأسماء واللغات)۔

توضیح الأفکار لمعانی تنقیح الأنظار للإمام محمد بن اسماعیل المعروف بالأمیر الصنعانی رحمہ اللہ المتوفی ۱۱۸۲ ھ دار الکتب العلمیۃ بیروت الطبعۃ الأولی ۱۴۱۷ ھ، ۱۹۹۷ م،

تیسیر مصطلح الحدیث للدکتور محمود الطحان حفظہ اللہ قدیمی کتب خانہ کراتشی.

الثقات: لابن حبان حافظ أبو حاتم محمد بن حبان بستی رحمہ اللہ (متوفی ۳۵۴ ھ) دار المعارف العثمانیہ حیدر آباد ۱۳۹۳ ھ،

جمع الجوامع (مع شرحہ ہمع الہوامع) للعلامۃ جلال الدین عبد الرحمن بن أبی بکر السیوطی رحمہ اللہ المتوفی ۹۱۱ ھ، منشورات الرضی قم ایران)

جامع البیان فی تفسیر القرآن للإمام محمد بن جریر الطبری رحمہ اللہ المتوفی ۳۱۰ ھ دار المعرفۃ بیروت۔

جامع بیان العلم وفضلہ وماینبغی فی روایتہ وحملہ: حافظ أبو عمر یوسف بن عبد اللہ بن محمد بن عبد البر مالکی رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ ھ). دار الفکر و دار العلم الجوزی الطبعۃ الرابعۃ ۱۴۱۹ ھ ۱۹۹۸ م احیاء التراث العربی بیروت،

جامع ترمذی (سنن ترمذی) إمام أبو عیسی محمد بن عیسی بن سورۃ ترمذی رحمہ اللہ (متوفی ۲۷۹ ھ) ایچ ایم سعید کمپنی کراچی/ دار إحیاء التراث العربی

الجامع الصغیر مع شرح فیض القدیر: حافظ جلال الدین عبد الرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ ھ). مکتبہ إسلامیہ سمندری لائل پور،

